


## مشخصات کتاب


• **عنوان:** وروستی خبرداری

• **مؤلفین:** هدایت‌الله ذاهب، سید میثم تمار

• **برگ‌آرایی:** محمدهادی شجاعی

• **ناشر:** انتشارات سعید

• **چاپ و صحافی:** چاپ‌خانه سعید

• **شماره‌گان:** ۱۰۰۰ نسخه

• **نوبت و سال چاپ:** اول، بهار ۱۳۹۸ هـ ش

• **بها:** 180 افغانی

**شابک:** ؟؟؟؟





آدرس: ابتدای جاده‌ی آسمایی،آسمایی پلازا، منزل دوم، کابل افغانستان

تلفن: ۰۲۰۲۱۰۶۴۲۸

موبایل: ۰۷۰۵۸۱۴۶۴۲ / ۰۷۰۷۵۷۵۹۳۵ / ۰۷۸۸۱۰۰۱۵۷

ایمل: Sayeedbook@gmail.com

## ډالۍ:

- هغو اسلامي علماوو ته چې د حق د رابرسېره کولو له پاره يې د الله ﷻ په لاره کې سرونه اېښي دي.
- او د ابوبکر صديق رضي الله عنه د مدرسې مهتمم مولوي نعمت الله (عثماني) ته!

## مننه کوو

له هغه خدای ﷻ څخه مننه او ستاینه چې د هغه د قدرت او توان اغېزې د روښانه ورځې په څېره کې ځرګندې دي او د هغه د حکمت انوار د تورې شپې په زړه کې لیدای شو. هغه خدای ﷻ چې موږ ته یې ځان راوپېژانده، د علم دروازې یې مونږ ته خلاصې کړې او موږ ته یې ژوند راکړ، ځو خپلو ناچاره او بې وسه بندګانو ته علم او پوهه ورکړي او وروسته له سلام ویلو د الله ﷻ ټولو پیغمبرانو ته چې لومړی یې حضرت ادم ؑ او وروستی یې خوږ نبي محمد ﷺ، له ټولو ملګرو چې د دې کتاب په لیک او خپرولو کې یې له موږ سره مرسته کړې ده، ډېره مننه کوو.

له ښاغلي پوهاند انجنیر زلمي ذاهب، محمد شریف سمسور، سید جواد نهضت یار، عبدالرحمن رومل باختري، انجنیر فواد سخي، محمد سمیر سروري، انجنیر نصار احمد تمکین او انجنیر احمدالله سیفي د کتاب د متنونو تصحیح او علمي نقد نه مننه کوو.

او له ښاغلي انجنیر نېکمل عبدالله مزاري څخه د دغه کتاب د لیکلو د بهیر او مالي ملاتړ له کبله مننه کوو.او دخپلې مبارزې ډلې له ټولو هغو غړو مننه چې نومونه یې په دغه کتاب کې نه دي لیکل شوي او موږ یې د دغه کتاب لیکلو ته وهڅولي یو او همکاري یې کړې.

## پېژندنه

حمد او ثنا هغه خدای ﷻ ته چې د اسلام لاره یې پرانیسته او د تږو کسانو لـه پـاره یې د اوبو څرګنده لاره اسانه کړه. د اسلام ستنې (پایې) یې د شخړې غوښتونکو له پـاره امن کړې او هغه امن ځای یې پناه وړونکو ته وښود. ګډونوالو ته یې ارام ځای جـوړ کـړ، اسلام د دلیل ویونکو له پاره ثبوت، د دفاع کوونکو له پاره روښانه ګواه، د رڼا خوښـوونکو له پاره روښانه رڼا، د هوښیارانو له پاره د پوهې سرچینه، د پوهې اندازه کوونکـو لـه پـاره عقـل او انـدازه، د حـق لټوونکـو لـه پـاره روښـانه نښـانه، د عـزم او اراده کوونکـو لـه پـاره روښنایي، د عبرت کوونکو له پاره نصـیحت او مننـه، د توکـل کوونکـو لـه پـاره اسـانتیا او نېکمرغي او د صبر کوونکو له پاره هم صبر دی.

اسلام روښانه او څرګنده لاره ده، لارې یې روښانې، نښـانې یـې لـوړې، څراغونـه یـې روښانه او لګېدلي، د جګړې میدانونه یـې ښـکلي او د ښـکلو لـه پـاره دي. پـه پـای کـې جګړې یې روښانه او بې پایه او جګړه کوونکي یې مخکښ او ګړنـدي دي. د دې جګـړې خپرونه حق ته تصدیق، د صالحو اعمالو ښوونه، پای یې مړینه، د نړۍ د جګړې میـدان، د جګړو د وګړو یو ځای کېدل او جایزه یې جنت دی.

د جګړې د ډګر په وروستـۍ پېـړۍ کـې، ډېـرى دغـو جګـړه کوونکـو لـه بـده مرغـه د شیطان لار غوره کړې او د الله ﷻ د رڼا له لارې بې لارې شوي او له دې امله دغه ننـۍ حالت راغلی چې په هغه کې د تیارې د مشعل لارویانو په چټکۍ سره هڅـه وکـړه څـو د حق روښانه مشعل مړ کړي.

کله چې د امریکا عصري لوېدیځ تمدن، د تیـارو مشـعل لرونکـي چـې نـاوړه نـړۍ د حق له نړۍ سره جنګوي. د تیارې لارې جګړه کوونکي په بوسنیا کې د لېونو سپیانو پـه څېر د پنځوس زرو مسلمانو ښځو عزت لوټ کړ. نارینه مسلمانان یې په یـوازې بنـد کـې اچولي، څو له لوږې ومري، اسلام خـاورې د بمونـو پـه اچولـو د منځنـۍ پېـړۍ پـه څېـر جوړوي. کشمیرۍ ښځې له ډلـه ییـز لـوټ سـره مـخ شـوي دي. منځنـی ختـیځ چـې د تمدنونو مور بلل کېږي. د دوی د اټومي بمونو سـیمه جـوړه شـوې او پـه پـای کـې ټولـه اسلامي نړۍ یې له افغانستان څخه تـر تانزانیـا او لـه چـین څخـه تـر لیبیـا پـورې د دې شیطاني ځواکونو تر لاس لاندې راوستې ده او د حق جګـړه کـوونکي ناتوانـه ښـکاري او دغه حالت د رڼا د لارې هر یوه جګړه کوونکي ته د زړه درد جوړ شوی او په دې سـوچ او فکر کې دي چې د دې حالت بدتر حالت سرچینه چېرته ده او حل لاره یې څه ده؟

دغه درد د دې لامل شو څو موږ هم، د یوې کوچنۍ هڅې په توګه ، په دې فکر کې شو چې د دې ستونزو د سرچینو پر وړاندې د جګړه کوونکو پر لیکه کې ودرېږو او د خپل لاس په قلم، د دې دردېدلي اسلامي ملت غږ هغو د رڼا لارې جګړه کوونکو ته لږ نوره رڼا د دوی په ناهموارو لارو چې د دوی د لارې خند شوې دي واچوو. هیله ده د دې وړوکي کوښښ په موده کې، الله ﷻ موږ ته پوره ایمان راکړي څو وکولای شو د خپلو لیکنو له لارې مو له اسلامي امت او ځورېدلي ملت څخه لږترلږه یو څه ستونزې لیرې کړې وي.

**و من الله توفیق**

# په دې کتاب کې

## لومړی فصل: د اسلامي تمدن پیل او پای

په ټولنه کې د دین اړتیا، مخکې له اسلام څخه د نړۍ څرنګوالی، د اسلام پیل، د اسلام او تبعید ستونزې، د اسلام د پرمختګ چل، یاجوج او ماجوج او د خزر قوم، له نننۍ پوهې او تکنالوژۍ سره د اسلام مرسته، صلیبي جګړې، د شیطان پالونکو ښکاره کېدل د صلیبیانو په منځ کې د فریمیسن پټې ډلې پیدا کېدل، د عصري غربي تمدن پیل، د عصري تمدن اړیکه، صهیونستان او له اسلام سره د دوی دښمني، د خلافت د له منځه وړلو توطیې، دجال او غربي عصري تمدن، د لومړۍ نړیوالې جګړې او د خلافت د له منځه وړلو توطیې.

## دویم فصل: استعمار او استثمار

د عصري غربي تمدن له خوا د اسلامي نړۍ استعمار، د بلشویکانو د کمونېستي انقلاب حقیقت، د عصري غربي تمدن په زړه پورې والی، په فلسطین کې د یهودیانو حکومت جوړول، د اسراییلو حکومت د جوړولو له پاره چلونه، د اسراییلو جوړېدل او له یاجوج او ماجوج سره د دوی اړیکې، د ملګرو ملتونو حقیقت، له اسلامي نړۍ سره فکري او فرهنګي جګړه، د پرمختګ او نړیوال جوړولو شیطاني تمدن، سېکولرېزم او د هغه نړیوال کېدل، د عصري غربي تمدن په واسطه د فحشا نړیوال کول، رسنۍ په حقیقت کې علمي انحصارول.

## درېیم فصل: اقتصادي استعمار

د برېښنایي او کاغذي پولي سېستم حقیقت، د پیسو تاریخ، د نړیوالو پانګو د غلا کولو چلونه، د برېټن او ووډز مجلس حقیقت، د نړیوال پانګوال نظام لکه نړیوال بانک، نړیوال سوداګریز سازمان او د پیسو نړیوال صندوق، د سټاک مارکېټ حقیقت او اوسني اقتصادي سېستم ته د اسلام ځواب.

## څلورم فصل: نورې ننګونې او حل لارې

ملت پالنه او د اسلامي اصولو مخالفت، په اسلام کې قوم پالنه او بندیز، تعصبونه، ناپوهي او غربي توب، د اسلام محاصره او حل لارې.

## پنځم فصل: راتلونکې

له بېلابېلو لیدلوریو د تاریخ پای، اسلام او د تـاریخ پـای او اخرالزمـان ، نړیوالـه لویـه طرحــه د صهیونېســتانو پــه واســطه، د نــړۍ لــه پــاره د اســراییلو کــړنلارې او د دجــال ماموریت، اتومي جګړه او یا ملاحم او د امام مهـدي او د عیســی ﷺ راڅرګندېـدل او د مسلمان له پاره یوه زرینه پېړۍ.

## تر لوستلو وړاندې

• سره له دې چې د دې کتاب منځپانګه د اسلامي موضوعاتو په اړه ده، خو ديني فتواګانې په کې شاملې نه دي او ليکونکی يې ځان د يو مفتي په علمي درجه کې نه ګڼي، نو ځکه له دې کتاب څخه بايد د يوې ديني فتوا په توګه کار وانه خيستل شي.

• د دې کتاب په هر اړخيزو ديني، اقتصادي، ټولنيزو او سياسي تحليلونو کې ليکوالانو ډېره هڅه او زيار کښلی دی، خو بيا هم له لوستونکو غواړي چې د هرې موضوع په اړه څېړنه وکړي او تر هغې چې دې څېړنو قانع کړی نه وي، ويې نه مني.

• د دې کتاب هره موضوع بايد د يو ځانګړي کتاب په بڼه وليکل شي، خو د کتاب د حجم د زياتوالي د مخنيوي هڅه شوې چې د هرې موضوع په هکله عمومي نظريه را واخيستل شي، نو ځکه له درنو لوستونکو څخه د لا زياتې څېړنې هيله کېږي.

• دا کتاب په ساده او د پوهېدو وړ (عام فهمه) ژبه د لوستونکو له پاره ليکل شوی دی، څو يې ډېری خلک په خپل ژوند کې اغېزمن او حياتي موضوعات درک کړي.

• دې اثر ته د ډېرو خلکو د لاسرسي په پار، د دې کتاب د ژباړې، چاپ، تکثير او خپرېدو حقونه نورو ژبو ته محفوظ نه دي او هر څوک چې دغه کتاب خپروي او خلکو ته يې رسوي مننه ترې کوو.

• ليکوال د دې کتاب په اړه هر ډول علمي نقد ستايي او ګران لوستونکي کولای شي چې ارزښت لرونکي او علمي نقدونه لاندې برېښناليک ته راولېږي.


هدايت الله ذاهب hzaheb@gmail.com

سيد ميثم تمار smt.mytham@gmail.com

د (مبارزې) فېسبوک پاڼه

Facebook: Mubareza

## د ژباړونکي سریزه

الحمدلله رب العالمین و الصلاة و السلام علی اشرف الانبیاء و المرسلین.
امابعد!

د ادم ﷺ له پیدایښته، الله ﷻ خپلو بندګانو ته د لارښوونې مطالب د خپلو استازو په وسیله را استولي دي. دوی یې له زیانمنو شیانو منع کړي او د ګټورو پر لور یې هڅولي او پرې مامور کړي یې دي، خو شیطان یې پر وړاندې تل خپلې هلې ځلې جاري ساتلې دي. انسان یې تل له سمو لارو، بدو ته کاږلی او په زړه کې یې وسواس او اندېښنې ور اچولې دي.

زموږ خوږ پیغمبر ﷺ ته د خپل کتاب (قران) د نازلېدو پر مهال د (فمن زحزحه عن النار و ادخل الجنه، فقد فاز) ایت نازل شو. دې ایت سره د ژوند مفهوم او قاعده په خورا ځرګنده توګه رابرسېره شول. هر چا چې ځان د دوزخ له اوره وساته او جنت ته ننه ووت، همدا بریالی دی، نو اوس که چا د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ اوامرو او نواهیو ته پام وکړ، نو ښکاره خبره ده چې بریالي دي.

اسلافو دا کار تر ډېره پر ځان عملي کړی و، ځکه خو د خپل اسلامي دښمن له دسیسو او توطیو په امن وو. هغوی؛ هغه څه چې له اسلامي دښمن سره د کړنو او چلند په اړه ورته ویل شوي وو، کټ مټ پر ځان عملي کول. هماغه وخت شیطان او پلویان یې ورځ تر بلې د مسلمانانو د ایمانونو پر زیاتېدو او پیاوړي کېدو سره په شا کېدل. دوی له اسلامي نړۍ کډه وکړه، داسې کډه چې بېرته یې د دوی سیمو ته د راستنېدو تمه نه لرله. په کډوالو سیمو کې یې کار پیل کړ. هلته یې ځان ته نوي پیروان او مریدان پیدا کړل. هغه مریدان په انساني جامه کې شیاطین وو.

هغوی له پخوا راهیسې د همداسې یوه رهبر او لارښود په تمه وو. له بلې خوا دلته مسلمانان د خپل دښمن په کډه کېدو سره بې غوره شوي وو. د خپلو اسلافو په پلونو یې قدم نه ایښود. له مشرکینو سره یې د چلند په اړه د الله ﷻ د اوامرو پر تګلارې عمل

ونه کړ. د پیغمبر ﷺ له بهرني سیاست یې کار وانه خیست. الهي ستراتیژیو ته یې ارزښت ورنکړ، ډېر مسایل یې بابېزه وګڼل تر دې چې په نني سرګردانه برخلیک اخته شول.

نن ورځ اسلامي نړۍ د شیطاني کفري نړۍ له دسیسو هره ورځ په اور کې سوځي، ارامه ورځ ترې نه لري او بالاخره دومره یې ورک کړي دي چې د خپل رب ﷻ په سمه توګه فردي عبادات او پالنه نشي کولای.

اوس نو اسلامي نړۍ په رښتیا ویده ده، ځکه خو د کتاب اصلي لیکوالانو (هدایت الله ذاهب او سید میثم تمار) کتاب ته د ویښتیا او بیدارۍ نوم ورکړی دی. داسې مسایل یې پکې رانغاړلي چې که اسلامي امت ورته پام وکړي او د هڅو په پایله کې د دوی د جوړو کړو دسیسو پر وړاندې سره یو شي، نو خامخا یې پایله راویښوونکې او مثبته وي.

د کتاب اصلي بڼه د اسلامي امت د ویښتیا په پار په پراخه توګه وړیا وویشل شوه. بریښنایي بڼه یې هم تر ډېره په اسانۍ د خلکو لاسته ورتلی شي. نورو ژبو ته د ژباړې او خپراوي اجازه یې هم په اصلي متن کې ټول اسلامي امت ته ورکړې ده. ما هم د یو اسلامي ناچیز مسوولیت په توګه دا کار وکړ.

ورور (م. الله یار) د کتاب د پې ډي ایف ترڅنګ د استاد د لارښوونو اجازه لیک هم راکړ. په لومړي سر کې مې استاد ته د ګړندۍ ژباړې وعده ورکړې وه. دا وعده مې په خپل وخت ترسره نشوای کړی. دلته به په خبرو کې له استاده ښښنه وغواړم، ځکه دا کتاب باید له پښتون اسلامي امت سره لا ژر شریک شوی وای، څو پښتانه لوستونکي هم د فاسدې غربي نړۍ له رازونو او دسیسو خبر شي او پر وړاندې یې د مخنیوي لارې چارې وګوري، خو د ځینو اړینو بوختیاوو له امله وځنډېد.

د کتاب د متن ځینې هغه کلمې چې پښتو بدیل یې نه لاره، کټ مټ لیکل شوې دي. هڅه مې کړې چې په روانه توګه یې وژباړم، خو دا چې د ژباړو په برخه کې نوی یم نو کېدای شي له ځینو پاراګرافونو په سم ډول مفهوم وانه خیستل شي، له دې امله مې هم عذر ومنئ.

له ځینو هغو ملګرو مننه چې د ژباړې په برخه کې یې راسره همکاري وکړه. د الله یار ورور ګوتې دې الله ﷻ بې درده لري. سره له دې چې په ابډېټ کې یې ډېر ځان نه دی ستړی کړی خو بیا هم د هغه ستړیا د ستاینې وړ ده. ما د ژباړې پر مهال ځینې تېروتنې د الله یار د سمون په تمه پرېښې وې او ګړندی پرې تېر شوی وم، خو وروسته

پوه شوم چې هغه هم ډېر سر نه دی پرې خوږولی. بیا یې هم که په ځینو ځایونو کې املایي تېروتنه لرله نو هیله ده ومې بښئ.

په پای کې مې له اسلامي لیکوالانو هیله ده چې د دې کتاب په څېر نور ګڼ ویښوونکي کتابونه چې د غرب شوم پلانونه پکې رابرسېره شوي وي، اسلامي ژبو ته را وژباړي، څو اسلامي نړۍ د فکري ویښتیا له مخې د دې دسیسو د خلاصون لارې چارې وپلټي.

په نړۍ کې د یو اسلامي نظام د رامنځ ته کېدو په هیله

وحیدالله اسلام

شهید اباد

# فهرست مطالب

## لومړی فصل

## د اسلامي تمدن پیل او پای



## دویم فصل

## استعمار او استثمار

## درېیم فصل
## اقتصادي استعمار



## څلورم فصل
## نوري ننګونې او حل لارې



## پنځم فصل
## راتلونکې

# لومړی فصل
# د اسلامي تمدن پیل او پای

## د اسلام پیل

الله ﷻ اراده کړې چې پر ځمکه کې خپل خلیفه پیداکړي او الله ﷻ په خپل لوړ حکمت سره دا نعمت (کرامت) *حضرت ادم ؑ او د هغې اولادې ته ورکړ*[1]. د ادم ؑ تر پیدا کولو وروسته الله ﷻ ملایکو ته امر وکړ چې خلیفه ته سجده وکړي، ټولو ملایکو سجده وکړه؛ *خو ابلیس چې پېری*[2] و، *د کبر له امله یې له سجدې له کولو سرغړونه وکړه*[3].

د ابلیس تکبر له الهي رحمت څخه د هغه د شړلو لامل شو. ابلیس له الله ﷻ څخه د محشر تر ورځې پورې د هغه د ژوندي پاتې کېدو او د بني ادم د بې لارې کولو فرصت وغوښت او مهربان ذات الله ﷻ هغه ته تر ټاکلې مودې پورې وخت ورکړ.

ابلیس په جنت کې حضرت ادم ؑ او د هغې مېرمن بي بي حوا ته وسوسه پیداکړه څو هغې ونې ته نږدې شي چې ترې منع شوي وو. د پروردګار د امر نافرماني له جنت څخه د هغوی د وتلو لامل شو او ځمکې ته را ولېږل شول. ادم ؑ او بي بي حوا د ځمکې پر سر خپل لومړنی ژوند پیل کړ او الله ﷻ په هماغه وخت د ژوند څرنګوالي ته

---

۱. اسراء سورهٔ؛ ۷۰ ایهٔ؛ وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِي آدَمَ (۷۰) ، ژباړه: په یقین سره مو د ادم اولادې ته کرامت ورکړ.

۲. د الله ج په مخلوقاتو کې ځیني هغه نه محسوسېږي او په عادي او طبیعي حواسو نه درک کېږي. یو یې پېری یا جن دی. پېری چې په اصل کې د پټوالي په معنا دی د انسان له سترګو پټ دی. قران د دې موجود شتون منلی او په کې د (جن) په نامه سورت هم موجود دی. د قران کریم په ځینو ځایونو کې د جان په نامه هم یاد شوی دی.

۳. بقره سورهٔ؛ ۳۴ ایهٔ؛ وَإِذْ قُلْنَا لِلْمَلَائِكَةِ اسْجُدُوا لِآدَمَ فَسَجَدُوا إِلَّا إِبْلِيسَ أَبَى وَاسْتَكْبَرَ وَكَانَ مِنَ الْكَافِرِينَ (۳۴) ژباړه: کله مو چې پرښتو ته وویل: ادم ته سجده وکړئ، نو له ابلیس پرته ټولو سجده وکړه، ابلیس سرغړونه او تکبر وکړ او له کافرانو وشمېرل شو.

## 2 ❐ وروستی خبرداری

په کتو، په لسو صحیفو کې د ژوند د طریقې د څرنګوالي او درک له پاره الهي لارښوونې ولېږلې.

د ادم ﷺ نسل د وخت په تېرېدو سره زيات شو او د ځمکې پر مخ خواره شول. الله ﷻ په خپل لوړ حکمت او مکاني، زماني او د ژوند د طريقې د تکامل سره، روښانه لارښوونې د پيغمبرانو په واسطه بني ادمو ته را استولې چې ورته دين ويل کېده. دين د هغو احکامو، لارښوونو او عقايدو مجموعه ده چې بشريت ته سمه لاره روښانه کوي څو له باطل څخه حق تفکيک کړي. د بشري تکامل څرنګوالي ته په پام سره دين په بېلابېلو زمانو کې د بېلابېلو پيغمبرانو په مرسته، بني ادم ته نازلېده.

د بشري تاريخ مطالعه د دې کار شاهده ده چې کله بشري کاروانونو خپله لاره ورکه کړې ده او يا له حرکته غورځېدلي دي، الله ﷻ د هر کاروان اړتياوو ته په کتو او د ژبنی، احساسي، فکري، عقيدتي، د نړۍ ليدنې ډول او نورو پاړکيو (طبقو) په نظر کې نيولو سره هغوی ته پيغمبر لېږلی دی.

ټولنې د تمدنونو په تاريخي مزل کې د شيانو په څېر د ژوندانه تر بېلابېلو فضاوو او شرايطو لاندې د بدلون په حال کې وي او د سرغړونې او کوږوالي خواته تللي دي چې د دې موضوع بيان د يوې فرضيې په طرحې او شرحې سره څېړو.

داسې ګڼو چې د تاريخ په اوږدو کې د نړۍ ليدنې او تفکر درې طريقو د بشر په ژوندانه کې ډېر رول لاره چې هغه د A، B او C حالت نوموو. په A حالت کې ټولنه دومره اخرت پالونکې شوې ده چې دنيوي ژوند يې هېر کړی دی او تقوا کوي. خپل انساني مسووليتونه د ځان، کورنۍ، ټولنې، ځمکې او چاپېريال پر وړاندې هېروي.




دومره چې له هېڅ يو هنرونو، صنايعو، مسلکونو او د ژوند له نورو موضوعاتو خبر نه وي او خپل جسم او روح يې عارفانه عباداتو ته ځانګړی کړی وي. ټول ارزښتونه په اخلاقو کې لټوي او ډېری مهال مظلوم واقع کېږي. په C حالت کې، ټولنه د A له حالت څخه په پوره توګه راوتې ده، اخرت يې هېر کړی دی.

## لومړی فصل: د اسلامي تمدن پيل او پای 3

الله ﷻ يې له خپل ژوندانه لرې کړی دی او په پوره توګه ماده پالونکي وي چې په دې حالت کې ټولنه د خپلو اعمالو له پاره د هېڅ ډول مسووليت او د ځواب ورکولو د حس احساس نه کوي او دا پاړکی (طبقه) بيا معمولاً په يوې مصرف پالونکې، فرد پالونکې، بد پالونکې او کبرې ټولنې بدلېږي.

B يو تعادلي حالت دی؛ د دې ټولنې پايله نيمګړې نه وي؛ ځکه چې له اخرت پالنې پرته دنيا ته هم پام کوي. په داسې حال کې چې ظالم نه وي مظلوم هم نه واقع کېږي، غلام کېږي نه او غلامي نه مني. دا ډول ټولنه په عمومي صورت سره عدالت محوره وي او په کې د بې عدالتۍ هر ډول کړنې او نظريې مردودې وي.

هرکله چې بشري کاروانونه (بشري ټولنې) د بې عدالتۍ، استبداد او ظلم ښکار شوي دي، الله ﷻ په خپل الهي رحمت سره يو پيغمبر را استولی دی چې په لارښوونو او پيغامونو کې يې د بې عدالتۍ، ظلم او استبداد پر وړاندې پر ډېرې مبارزې تاکيد کړی دی.

*بني اسراييل د فرعونيانو د حکمرانۍ پر مهال تر داسې ظلم او استبداد لاندې وو چې تل يې خپل اولادونه وژل او يا يې تري د کاري حيواناتو په څېر ګټه اخيسته. خپلې مېرمنې او لونې يې د وينځو په توګه ساتلې.*[1] په همدې وخت کې الله ﷻ د بني اسراييلو د ژغورنې له پاره يو پياوړی او مبارز انسان (موسی ؈) د ظالمو فرعونيانو پر وړاندې له سختې حربې (جهادي) مبارزې له لارښوونو سره راولېږه. د دې اولوالعزم پيغمبر پر لارښوونو کې، ډېر تاکيد د ظالمو پر وړاندې پر جګړه شوی دی.

د بني اسراييلو په ژغورنې او د دې قوم په بدلېدلو له يوې غلامې او مظلومې ټولنې څخه يوې خپلواکې ټولنې ته ، دوی د تورات له لارښوونو څخه په ناسم درک او ان تحريف سره، د ظلم او استبداد پر وړاندې مبارزه يو ډول تاوتريخوالی او وحشي پالنه وګڼله او په دې کار سره يې د تورات[2] له پيغامونو بده ګټه واخيسته او دهرې ټولنې پر وړاندې يې (که څه هم مستبده به نه وه) له تاوتريخوالي کار اخيسته، په داسې حال کې چې دا مبارزه په تورات کې له ظالمانو او مستبدينو سره مقابلې ته ځانګړې شوې ده، دې ناسم درک او د بني اسراييلو تحريفونو دا قوم د C ډول ټولنې ته بدل کړ.

---

۱. بقره سورهٔ؛ ۴۹ ايهٔ؛ وَإِذْ نَجَّيْنَاكُمْ مِنْ الِ فِرْعَوْنَ يَسُومُونَكُمْ سُوءَ الْعَذَابِ يُذَبِّحُونَ أَبْنَاءَكُمْ وَيَسْتَحْيُونَ نِسَاءَكُمْ وَفِي ذَلِكُمْ بَلَاءٌ مِنْ رَبِّكُمْ عَظِيمٌ (۴۹) او (په ياد کړئ) کله مو چې تاسو د فرعونيانو له منګلو ازاد کړئ، هغوی تاسو سخت شکنجه کولی، ستاسو له اولادونو يې سرونه غوڅول او ښځې يې ژوندۍ درته ښخولې او په دې کې د الله ﷻ له لوري ستر ازماينښت وو.

۲. تورات: هغه اسماني کتاب چې په موسی ؈ نازل شوی دی.

## 4 ❐ وروستی خبرداری

دا انحراف د یو داسې پیغمبر د رالېږلو له پاره دلیل شو چې په لارښوونو کې یې (انجیل)[1] ډېر تاکید په دوستۍ، سولې، مینې، ګډ ژوندانه او د تاوتریخوالي پر ضد مبارزې ته بېل شوی دی. لکه څنګه چې د عیسی ﷺ په یو پیغام کې راغلي دي: *«له شریرو سره مقاومت مه کوئ، بلکې هر چا چې په ښي مخ څپېړه درکړه نو بل مخ هم ورته ور وګرځوئ.»*[2]

په همدې توګه د شپږمې پېړۍ په وروستیو او د اوومې مېلادي پېړۍ په لومړیو کې بشري کاروان په ټوله نړۍ کې د کوږوالي او انحطاط پر لور په حرکت و. د بیزانس امپراتوري (ختیځ روم) چې د روم د امپراتورۍ تر زوال وروسته په ختیځه اروپا کې منځ ته راغلې ده او د بالکان، ختیځې اروپا، ننني ترکیې، شام (سوریه، فلسطین او لبنان) او د عراق په ځینو برخو کې یې د یوې پیاوړې امپراتورۍ په توګه د تاریخ په اوږدو کې واکمني کوله، ځانونه یې د مسیحیت د دین او د مسیح عیسی ﷺ استازي ګڼل.

له دې دین څخه یې د ارستوکراسي[3] د حکومت د دوام د یوې وسیلې په توګه کار اخیست. دې امپراتورۍ د مسیحیت پاک دین داسې تحریف کړی و چې سیاسي، اقتصادي او نورې ګټې یې د کلیسا او اشرافیانو د حاکمیت د کلکوالي له پاره تامین کړې وې چې په کې د خلکو له عامه حقونو سترګې پټې شوې وې او د دین ټوله پوهه او درک یې د دین په ټیکه دارانو او روحانیونو پورې منحصره کړې وه.

له بلې خوا غربي اروپا د روم د امپراتورۍ تر زوال وروسته په شاهي او ډول ډول مستبدو حکومتونو له هغه فیوډالي سیستم سره چې پر هغوی حاکم و[4] بدلون وکړ او دومره په جهالت کې ننوتل چې انساني ژوند یې هېر کړ. له هرو لسو تنو څخه یې نهه تنه هغه رعایا وو چې د اشرافو او نجیب زاده ګانو پر ځمکو یې کار کاوه او د کار تولید یې ان د دوی د خوړو او اغوستلو له پاره هم بسنه نه کوله.

ډېر لږ خلک وو چې په میاشت کې له یو ځل څخه زیات ځان ووینځي، حتا شتمن خلک. په رعایاوو ژوند دومره سخت و چې ډېرو لږو خلکو په کې تر څلوېښتو کلونو ډېر

---

۱. انجیل: هغه اسماني کتاب چې په عیسی ﷺ نازل شوی دی.

۲. متی انجیل؛ ۳۹ فصل؛ ۵مه ایه

۳. ارستوکراسي د ارستوس (Aristos) له یوناني کلمې اخیستل شوی چې د بهترین او ښه په مانا دی او د یونان په سیاسي فلسفه کې د هغو خلکو د حکومت په مانا دی چې د انساني کمال د اېډیال حالت ته له هر څه نږدې وي، په بل عبارت د حکومت یو ډول دی چې پکې په نسبي توګه د هېوادوالو یوه کوچنۍ برخه د سیاستونو په تدوین او د عمومي مقاماتو په ټاکنه کې رول لري.

٤. فیوډالي: د عمده مالکانو، اشرافو او فیوډالو حکومت، ملوک الطوایفي حکومت، څوک چې ډېر رعایا او املاک لري او پرې پوره تسلط ولري؛ ستر ملاک.

عمر کاوه. کلیسا هم په یو شتمن او فیوډال سازمان بدله شوې وه او په عوامو خلکو یې دومره اغېز لاره چې هغوی په زائدالوصف شور سره د قدیسانو[1] پاتې شونو ته عبادت کاوه (د توماس قدیس هډوکي، د پیټروس قدیس د وېښتو یوه ګېډۍ او د اګوستن قدیس د لیکلو یو پوستکی) د طبیعي او فزیکي الوهیت بېلګې وې چې روحاني او معنوي قدرت شمېرل کېده او عوام په دې عقیده وو چې قدیسان معجره کوي (د ناروغانو تداوي، د سربازانو ساتنه او د ګنهګارانو بښنه) ان خلک په جګړو کې د بریا او د بښنې غوښتلو له پاره د قدیسانو عبادت ځایونو ته د دعا له پاره ورتلل.

د فارس (ساساني) زردشتي امپراتوري د هغه وخت یو له سترو امپراتوریو څخه وه چې هغوی هم د ارستوکراسۍ د حکومت په ډول سره، د بیزانسي سیال په څېر ژوند کاوه او په کې عامو خلکو تر ټولو ټیټ سیاسي، اقتصادي او ټولنیز حقوق لرل. د دغه دوو سیالو تر منځ یوازې د بېلتون وجه وه. ساسانیانو پر زردشت دین عقیده لرله او له اور پالنې پرته یې نور زرګونه رواجونه او کړې او الحادي عقیدې لرلې، ټولنه یې په څلورو روحانیونو، بزګرو، نظامیانو او بډایو ډلو ته وېشل شوې وه او قدرت او حاکمیت د زردشتي روحانیونو په لاس کې وو چې په عامو خلکو یې زرګونه غیر انساني ظلمونه او درانه مالیات وضع کول. ساساني مېرمنې د نارینه وو د عامه ملکیت په توګه ګڼل کېدې.

د هند په نیمه وچه کې د خلکو تر ټولو ستره ستونزه *طبقه پالنه*[2] ګڼل کېده، انسانان انسانان یې پر لوړو او ټیټو طبقو (برخو) وېشلي وو او له ټیټو طبقو څخه یې په ډېره بده توګه ګټه اخیسته.

هندوییزم د نړۍ د یو تر ټولو عجیب دین په توګه و او هېڅکله یو نړیوال دین نه ګڼل کېده؛ ځکه هندوان په دې عقیده دي چې یو هندو، هندو پیدا کېږي او د دین بدلون هندوانو ته د منلو نه و. هندوان د الحاد او شرک تر ټولو غیر منطقي عقاید لري، له غوا نیولې تر ونې او تاریخي څېرو پورې (لکه رام، لکشمن، کرشنا او نورو) ته عبادت کوي.

د سویولړۍ[1] چې له ۵۸۱ څخه تر ٦١٨ میلادي کلونو پورې په چین کې حاکمه وه، د بودا د دین له نامه څخه په ګټې اخیستو یې له چین څخه د وینو حمام جوړ کړی

---

۱. هغه خلک چې په مسیحیت کې سپېڅلي ګڼل کېږي.

۲. طبقه پالنه یا Casteism: طبقه پالنه تر اوسه هم په هندوستان کې روانه ده او دا چې په دې وروستیو کې ډېرو ټیټ پوړیو خلکو اسلام راووړ، د هند دولت ورته په تعلیمي او د دولتي دندو د جلب او جذب په سېستم کې ځانګړي حقوق په پام کې ونیول.

و. په چین کې یو دین چې تایویېزم[2] نومېده تل له بودایېزم سره په جگړه و چې دغه دین هم د بشري ټولنې غوښتنو ته سم ځواب نه وایه او له شک پرته په دې جگړو کې عام خلک قرباني کېدل.

په داسې حال کې چې افریقا د اروپایي بېلابېلو قومونو (اواریانو، فرانکیانو، جرمنیانو، بلغاریانو) له بربریت څخه ځورېده، هغو یهودیانو چې ورته ډېر شمېر پیغمبران رالېږل شوي وو او ځان یې د خدای ټاکل شوی قوم گاڼه، غربي اسیا او شمالي افریقا خپله مستعمره گڼله.

هغو یهودیانو چې نومونه یې تل له خیانت سره مترادف وو، د موسی الهي دین یې داسې تحریف کړ چې هر ډول ظلم او بې عدالتي یې له یهودیانو پرته پر نورو باندې روا گڼله او د برترۍ په همدې طریقې سره یې په خپلو مستعمرو کې ظلم کاوه.

د عربو جزیره چې د بېلابېلو قومونو استوگنځی او تل له یو بل سره د جنگ جگړې په حال کې وو، ژوند یې په ډېر بد حالت کې و. هغوی د ابراهیم عليه السلام د یو خدای پالنې دین په بت پالنې، شیطان پالنې او ملایکو پالنې بدل کړی و او د کعبې کور یې چې د اسماعیل عليه السلام او ابراهیم عليه السلام په واسطه د یو خدای جل جلاله د عبادت له پاره راغلی و، د بتانو په مرکز بدل کړ. په دې سیمه کې د قومي جگړو له امله تل وینه تویېدله او د قومونو مشران چې معمولاً شتمن خلک وو، د غریبو پر غلام کولو یې لاس پورې کړی و.

لنډه دا چې په ټولو ځایونو کې بشري کاروانونه منحرف او یا هم له حرکت پاتې وو. ظلم ټوله نړۍ نیولې وه، له دینونو څخه د استعمار، استثمار، بې عدالتۍ او برتروالي په توگه کار اخیستل کېده. نابرابري، قومي او طبقاتي نښه والی اوج ته رسېدلی و او بشري تمدنونه د زوال په حال کې وو. ملتونه په اوږده خوب ویده وو، کارونه سره گډوډ وو او په هر ځای کې د جگړو اور لگېدلی و.

---

Sui Dynasty ۱. د سویانو لړۍ چې یوازې د ۳۸ کلنو له پاره د دریو امپراتوریو له خوا اداره کېده او په چین کې حکومت لري.

۲. د تایویزم (Taoism) یا دایویزم (Daoism) فلسفي مکتب یا دین په لایوتسه حکیم پورې منسوب دي چې د کیهاني له جوړښتي نظم (تایو) یا طبیعي بهیرونو سره په همغږۍ کې په ژوند تاکید کوي.




د اسلام تر راتګ وړاندې د ۶۰۰ میلادي کال نقشه

نړۍ ناپوهۍ، تیارې او ګناه خیره کړې وه، دوکه ډېره وه د بشر د ژوندانه د ونې پاڼې زېړې شوې وې او په پای کې د خلکو زړونه وېرې نیولي وو، له تورې پرته یې بله پناه نه لرله. په داسې حال کې چې الله ﷻ په خپل ستر حکمت او بشري حالاتو او اوضاعو ته په کتو سره، د تېرو لارښوونو په لړۍ کې یو وار بیا او د وروستي ځل له پاره یوه لارښوونه (قران) چې د خدای ﷻ د دین تکمیلوونکی و (اسلام) د حضرت محمد ﷺ په واسطه چې په امانت، رښتینولۍ، حق ویلو، نېکو اخلاقو، شرافت او سخاوت کې یې سارې نه و، د ټول بشریت له پاره ډالۍ کړ.[1]

اسلام د پوره دین په توګه د ټول بشریت له پاره د خوښۍ یو زېری شو او د نړۍ له اوسني کړکېچن حالت څخه د راوتلو له پاره د نړۍ د خالق له لوري را واستول شو. د اسلام لارښوونې په داسې حال کې چې د عیسی ؑ د محبت، ګډ ژوندانه، صبر، ملګرتیا، ورورولۍ او سولې څخه برخمنې دي، د موسی ؑ په څېر د بې عدالتۍ پر وړاندې د سختې مبارزې او مقاومت ټینګار هم کوي. اسلام یو علمي، عملي، څو

۱. اسلام هېڅکله دا ادعا نه ده کړې چې یو نوی دین دی بلکې د پخوانیو اسماني دینونو پوره کوونکی او تصدیق کوونکی دی.

بُعدي، پوره او هر اړخيز دين دی چې لارښوونو يې د بشري ژوندانه ټول اړخونه، زاويې او ابعاد په ښې طريقې سره تر څېړنې لاندې نيولی دي. انسان يې له ټولنې څخه له يوازې کېدو ژغورلی دی. بې عدالتي يې د هر انسان پر وړاندې (که مسلمان او که غير مسلمان دی) منع کړې ده، خپل *عقايد يې پر غير مسلمانانو باندې تحميل کړي نه دي*[1] او ټولې لارښوونې يې د الهي عدالت پر محور راڅرخي.

قران کريم پېژندنه د ټول اسلام د لارښوونو او د اسلام د پيغمبر حضرت محمد ﷺ د لارښوونو د پېژندلو وسيله ده.

قران کريم د تورات او انجيل تکميلوونکی دی چې د انسان د ژوندانه ټول اړخونه د فلسفې، حکمت، قصص، عقايدو په قالب کې له اخلاقي او روحي احکامو نيولې تر اقتصادي، ټولنيزو، فرهنګي، حقوقي، سياسي، ان د حمام، معاشرت، څښاک، خوراک، ملګرتيا، غيرت، سخاوت او ګډ ژوندانه تر ادابو پورې ټول په ځان کې لري او کورونو ته د کورني ژوند، ګاونډېتوب او د خوب تر کوټې او کوروالي تر مسايلو پورې په کې نغښتې دي.

د قران د لارښوونو تاکيد يو اړخيز نه دی، اسلامي قوې د عدالت د ترسره کېدو په پار ټول اړخونه او لوري په نظر کې نيولي دي او د عدالت په محور کې يې د هر اړخيز پيوستون اساس اېښی دی. د بېلګې په توګه د نفساني غريزو او معنوي تمايلاتو تر منځ عدل؛ په داسې حال کې چې انسانانو ته د لمونځ، روژې، تقوا او ذکر امر کوي، جسماني، شهواني، مادي او نفساني اړتياوې هم له ياده نه باسي. په يوه اسلامي ټولنه کې عدالت له استثناء پرته د قوميت، ژبې، نژاد او سياسي، ټولنيز او اقتصادي حالت پرته په ټولو د پلي کېدو او عملي کېدو وړ دی.

سوله او جګړه په اسلام کې مطلقې پديدې نه دي، تل يې خپل پيروان سولې ته هڅولي دي او د سولې هرې غوښتنې ته يې لبيک ويلی دی؛ خو هېڅکله يې عدالت د سولې او امنيت قرباني کړی نه دی او کله چې د حق او عدالت د ترازو پله کم وزنه شوې ده، نو د براق او بران (ښو او بدو) په تورو يې ترمنځ اندازه برابره کړې ده.

د اسلام تګلاره د نړيوالې سولې د رامنځ ته کولو له پاره د انسان له باطن څخه پيل او هغه يې له خپل ځان سره په سوله کې راوستی دی، بيا يې سوله په کورنۍ کې تر رواج وروسته په ټولنه کې راوستې او په پای کې يې نړيواله کړې ده.

---

۱. بقره سورهٔ؛ ٢٥٦مه ايهٔ؛ لَا إِكْرَاهَ فِي الدِّينِ... (٢٦٥) ژباړه: په دين کې هېڅ اکراه او زور نشته (څوک دا حق نه لري چې بل يو په زور سره د دين منلو ته مجبور کړي، بلکې هر څوک په خپلواکه توګه له عقل څخه په کار اخيستو او د څېړنې او مطالعې په پايله کې بايد دين ومني).

اسلام هېڅکله پر خلکو د ځان تپلو له پاره پر خلکو تـوره نـه ده را ایسـتې، بلکـې پـه اسلامي هېوادونو کې د ټولو دینونو پیروان په سوله او امنیت کې ژوند کوي، خو د تاریخ په اوږدو کې د ځینو هغو خلکو له خوا چې د اسلامي دعوت له بنسټونو یـې ناسـم درک کړی و ځینې ښویېدنې ترسره شوې دي، خـو د اسـلام روح او روان لـه دا ډول ښـویېدنو څخه پاک دی.

بشر له غلامۍ رنځېده، قران د یو علمي او عملي لارښود پـه توګـه، د دې سـتونزې د حل له پاره یوه سېستماتیکه اوږدمهاله تګلاره وړاندې کړه، ان تر دې چې هر ایت یـې د ازادۍ ناري وهي. د اسلام پـه اقتصـادي او سیاسـي نظـام کـې د غلامـۍ ځـای نـه دی پاتې. د ازادۍ په رامنځ ته کېدو سره، غلامان په ټولنه کې داسې مدغم شول چـې ان د ولسواکۍ په عصري سېستم کې یې تصور ناشونی دی.

لکه څنګه چې حضرت بلال رضي الله عنه په ازادېدو سره د اسلامي ټولنې پر سردارانو بـدل شو. په عیني حال، په شلمه پېړۍ کې د امریکا د غلام ساتنې سېستم په له منځـه وړلـو کې کلونه تېر شول څو تور پوستان په ټولنه کې مدغم شي او ان تر اوسه هم دا سـتونزه نه ده حل شوې او لا هم مدغم نه دي.

په اسلام کې تعصب، قوم پالنه، نژاد پالنه، ملیت پالنه او اشـرافیت ځـای نـه لـري او اسلام په خپل قلمرو کې د دا ډول ناروغیو په له منځه وړلو سخت ټینګار کړی دی. لکـه څنګه چې الله تعالی فرمایي: *اې خلکو! موږ تاسې له یوه نارینه او یوې ښځـې څخـه پیـدا کړئ او بیا مو تاسې قومونه او قبیلـې وګرځـولئ چـې تاسـې یـو او بـل سـره وپېژنـئ. پـه حقیقت کـې د الله تعالی پر وړاندې له تاسې څخه تـر ټولـو زیـات عزتمنـد هغـه څـوک دی چـې پـه تاسـې کـې تـر ټولـو زیـات پرهېزګـار وي. پـه بـاوري ډول اللـه تعالی پـه هـر څـه پوهېدونکی او باخبره دی*[1].

اسلام د ټولنې د بنسټ تشکیل له خلکو او اشخاصو پیلوي چـې محـور یـې وجـدان، مینه او ښه اخلاق دي. لکه څرنګه چې الله تعالی خپل خوږ پیغمبر ته خطاب کوي: *او تـه (اې پیغمبره!) د اخلاقو لوړه مرتبه لرې.*[2] نیک اسلامي اخلاق یـوازې تـر انسـانانو پـورې منحصر نه دي؛ بلکې ټول مخلوقات پکې شامل دي. پیغمبر صلی الله علیه وسلم *وفرمایل: یو کـس پـه لاره روان و، د لارې په منځ کې تږی شو، یوه څـاه یـې پیـدا کـړه، لانـدې لاړ او اوبـه یـې وڅښلې، پورته راغی، ویې لیدل چې یو سپی له تندې مري، سرې لـه ځـان سـره وویـل:*

---

۱. الحجرات سورۀ؛ ۱۳مه ایۀ؛ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَاكُمْ مِنْ ذَكَرٍ وَأُنْثَى وَجَعَلْنَاكُمْ شُعُوبًا وَقَبَائِلَ لِتَعَارَفُوا إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِنْدَ اللَّهِ أَتْقَاكُمْ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ (۱۳)

۲. القلم سورۀ؛ ۴مه ایۀ؛ وَ اِنَّكَ لَعَلي خُلُقٍ عَظيمٍ (۴)

*دا سپي هم زما په څېر تږی دی. ځاه ته وګرځېد او خپله پنه (د پښو بوټ) يې له اوبو ډک کړل په غاښونو کې يې ونيوه او پورته شو او سپي يې موړ کړ. خدای ته يې شکر اداء کړ او خدای ﷻ بښنه ورته وکړه. ورته وويل شول: ای د الله ﷺ رسوله! ايا موږ ته د چارپايانو پر ترحم هم اجر او ثواب شته؟ ويې فرمايل: هو! د هر ژوندي موجود په مرستې سره اجر او ثواب شته.*[1]

محمد ﷺ يو نالوستی يتيم، شپون، غريب او د عيسی او موسی عليهما السلام يو ترکيب دی؛ کله د بې عدالتيو پر وړاندې پر مبارزې او د الله ﷻ د کلمې د لوړوالي له پاره له تورې سره په وينو له يارانو مخکې وي او کله يې شفقت دومره په لوړه کچه وي، هغه څوک چې ايرې وربادې اچوي ملګری ورته وايي او د ناروغۍ پوښتنې ته يې ورځي.

د مکې د فتحې پر مهال د قدرت په اوج کې، هغو کسانو ته چې خپله د ده، ديارانو او ملګرو په ازار او ځورولو يې لاس پورې کړی و، له خپل ديار څخه يې تبعيد کړي وو او ان د ګران کاکا د سيدالشهدا (حضرت حمزه) سينه يې څيرلې وه او نورې څېرې چې د ظلمونو، توطيو او شکنجو ښکار شوې وې، ورته وايي: ای قريشو! اندېښنه مه کوئ چې له تاسو سره به څه وکړم او په پای کې د مهربانۍ او بښنې په توګه وايي چې: ځئ ټول ازاد ياست!

اسلام تر ټولو د پوره دين په توګه د بشري ژوندانه ټول اړخونه رانغاړي ان د ځمکې او چاپېريال ساتنې مسايل هم په کې دي. ډاکټر ويلينګ، دين په لنډه توګه داسې تعريف کړی دی: *دين د خالق او انسان ترمنځ د ځمکې د کُرې د ساتنې له پاره تړون دی*[2]. اسلام هم له دې تعريف وتلی نه دی، ځکه چې د اسلام ټولې لارښوونې په خاورينه کُره کې د بشر د ارامه ژوندانه او د انسانانو او ټولو مخلوقاتو له پاره د دې کرې د ساتنې او جوړونې له پاره نازل شوې دي. الله ﷻ بني ادم ته په ځمکه کې خپل خليفه وايي، لکه څنګه چې فرمايي: *او کله چې ستا پروردګار پرښتو ته وويل: (زه په ځمکه کې خليفه ګمارم، پرښتو وويل: ايا داسې څوک ګمارې چې په ځمکه کې فساد وکړي او وينې تويې کړي، په داسې حال کې چې موږ په پاکۍ سره ستا ستاينه کوو، ويې فرمايل: زه پر هغه څه پوه يم چې تاسو پرې نه پوهېږئ.)*[3]

---

۱. صحيح بخاري؛ حديث ۵٦٦۳ او صحيح مسلم؛ حديث ۲۲۴۴

2. Willing Daun; Money the Twelfth and Final Religion; p 12-13

۳. بقره سورة؛ ۳۰مه ايهٔ؛ وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَائِكَةِ إِنِّي جَاعِلٌ فِي الْأَرْضِ خَلِيفَةً قَالُوا أَتَجْعَلُ فِيهَا مَنْ يُفْسِدُ فِيهَا وَيَسْفِكُ الدِّمَاءَ وَنَحْنُ نُسَبِّحُ بِحَمْدِكَ وَنُقَدِّسُ لَكَ قَالَ إِنِّي أَعْلَمُ مَا لَا تَعْلَمُونَ (۳۰)

## اسلام په مکه کې

محمد ﷺ له پیغمبر کېدو وړاندې، کله چې د عربو جزیره د بت پالنې، الحادي او شرکي عقایدو، اشرافیت او قومي او نژادي جنګونو او تجملاتو په مستۍ کې ډوبه وه او دومره ناپوهي پرې حاکمه وه چې خپلې لوڼې یې ژوندۍ ښخولې، ځان یې له دا ډول ټولو اعمالو او افکارو لرې وساته او خپلې ډېرې شپې یې د خپل یوازیني معبود د عبادت له پاره په حرا غار کې تېرولې. اسلام له بعثت وړاندې حاکمو شرایطو ته د جاهلیت د وخت خطاب کړی دی.

## په اسلام کې د جاهلیت زمانه

هغې ټولنې ته ویل کېږي چې فساد، بې عدالتي، ظلم او نهلېزم Nihilism یا د پوچ پالنې عقیدې په کې حاکمې وي. د ٦١٠ میلادي کال په روژه کې د حرا[1] په غار کې یوه پېښه وشوه، د بشریت د تاریخ جریان یې بدل کړ. یوه شپه چې محمد ﷺ د رب العلمین درګاه ته په زاریو بوخت و، الله ﷻ هغه ته د جبراییل علیه السلام په واسطه د بشري ټولنې د رهبرۍ له پاره ماموریت بیان کړ. د بعثت په دریوو لومړیو کلونو کې د اسلام دعوت یوازې د پیغمبر ﷺ تر خپلوانو پورې منحصر و او له عامه بلنې څخه ځان ساتل کېده.

بیبي خدیجه رضي الله عنها د محمد ﷺ لومړۍ مېرمن، د سوداګرۍ شریکه او د ژوند همرازه او لومړنۍ څوک وه چې د هغه نبوت یې ومانه او اسلام یې راووړ او بیا ورپسې د هغه د کاکا زوی حضرت علي او بیا د هغه نږدې ملګری حضرت ابو بکر صدیق رضي الله عنه هم پر اسلام مشرف شول.

د بلنې په عامېدو سره د اسلام د پیروانو شمېر زیات شو او په عین حال کې مخالفتونه هم پیل شول د اسلام لاربښوونې د مکې د قومونو د مشرانو، سوداګرو او اشرافو له پاره د هضم وړ نه وې؛ ځکه چې د هغوی سیاسي، اقتصادي او ټولنیز تسلط یې له ګواښ سره مخ کاوه.

---

۱. د حرا غار د ثبیر په غره کې د حضرت محمد ﷺ د بعثت ځای و. د غار خوله شمال لور ته ده او په کې شاوخوا پنځه تنه ناست کسان ځایېدلی شي او لوړوالی یې هم د انسان د ونې په اندازې دی. د حرا غار د حضرت محمد ﷺ د عبادت ځای و د کال ځینې ورځې په ځانګړې توګه د روژې مبارکه میاشت یې په کې عبادت کاوه.

هغوی ډېر کلونه پر ټولنه له سیاسي، ټولنیز او اقتصادي مطلق تسلط څخه خوند اخیست. د دې تسلط د له منځه وړلو له امله یې ځان ناخوندي احساساوه او له داسې اسلام سره چې د دې تسلطونو پر خلاف یې پر عدالت ټینگار کاوه، دښمني پیل کړه. ابوالحکم چې وروسته د محمد ﷺ له خوا په ابوجهل ونومول شو، ابوسفیان، امیه او د مکې څو تنو نورو مشرانو د مسلمانانو په ځورولو لاس پورې کړ او د اسلام د مخکښو مسلمانانو څو تنه یې په شهادت ورسول.

بلال رضي الله عنه چې د محمد ﷺ له لیدنې وړاندې یې د ایمان نور په زړه کې ځلېده او د هغه ایات لېوال و چې لږ لږ یې غوږ ته رسېدلی و او اسلام ته د را اوښتو له پاره یې د خپل ارباب له امر څخه سرغړونه وکړه او په زړورتیا سره یې اسلام راوړل ښکاره کړل، څو ورځې یې په لوږې او تندې سره گرم او سوځېدونکي لمر ته شکنجه کړ؛ خو د ایمان نور یې داسې زړه او روح نیولی و چې هېڅ درد هغه له احد احد ویلو څخه را ونه گرځاوه.

محمد ﷺ او د هغه یارانو ته د مشرکینو له خوا ازار او ځورونه هغوی له مقدسې دندې (رسالت) څخه را ونه گرځول او تل یې د الله ﷻ لور ته پرته له کومې وېرې او د مشرکینو د تهمت له شرم څخه پرته دعوت ته دوام ورکاوه. *یوه ورځ یې د صفا په غره کې د (یا مباحاه) په کلمې سره چې عربان یې د خبرداري پر ځای کاروي، د ټولو پام ځان ته را واړوه.*

*هلته یې له خپل ممتاز شخصیت او په امانت داری او ربښتینولی یې د پخوانی سابقې له مخې خلکو ته په داسې حال کې چې غرونو یې اواز منعکساوه وویل: اې خلکو! که تاسو ته ووایم چې د دې غره شاته ستاسو دښمنانو موضع نیولې او ستاسو پر مالونو او ځانونو د تېري اراده لري، باور کوئ؟ ټولو ومنله او ویې ویل: هو! ځکه چې مونږ تر اوسه له تاسې دروغ نه دي اورېدلي. ویې فرمایل: ای د قریش ډلې! خپل ځان له اوره وساتئ! زه تاسو ته د خدای پر وړاندې څه نشم کولای، زه تاسو له سخت عذابه وېروم، زه د هماغه نندارچي په څېر یم چې دښمن له لرې ویني او بیا سمدستي خپل قوم ته د نجات له پاره ورځغلي او په یو ځانگړي شعار سره هغوی ته د دې دښمن په هکله خبر ورکوي،*[1] خو مشرکینو بیا هم انکار وکړ او د حضرت محمد ﷺ ویناوو ته یې پام ونکړ، له دې سربېره یې د حضرت محمد ﷺ د درانه شخصیت او د هغه پاک دین (اسلام) د تخریب له پاره هڅې او دښمني پیل کړه.

---

۱. طبري تاریخ؛ ۳ ټوک، ۱۱۷۰ مخ، السیره الحلبیه؛ لومړی ټوک؛ ۳۱۱ مخ

د محمد ﷺ د تعهد پر وړاندې یې د حق پیغام رسولو (اسلام) له پاره لـه زور څخـه کار اخیستل مایوسوونکي وو؛ ځکه نو مشرکینو له بېلابېلو لارو چـارو کـار واخیسـت او د زر، ښځې او سیاسي حاکمیت وړاندیز یې وکړ؛ خو د حضرت محمد ﷺ ستر شخصیت له دا ډول دنیوی شیانو څخه لوړ و او بالاخره یې خپل وروستی کار د محمـد ﷺ د تـره په وینا ترسره کړ؛ *خو محمد ﷺ خپل تره ته په خطاب کې داسې وفرمایل: (اې کاکا! که لمر راته په یوه لاس او سپوږمۍ راته په بل لاس کـې کېـږدې، تـر مرګـه بـه لـه خپـل رسالته لاس وانخلم.)*[1]

د مکې د اغېزمن، قدرتمنـد او مشـر شخصـیت او د وراره لـه سرسـخت ملاتـړي کاکـا ابوطالب او د اقتصادي ملاتړې او همرازې بي بي خدیجې تر مرګ وروسته د مشرکینو د فشار او ځورونې په زیاتېدو سره حضرت محمد ﷺ له یـارانو سـره مـدینې تـه د هجـرت کولو اراده وکړه او په هجرت سره یې د اسلام د جنتـری تـاریخ چـې د هجـري تـاریخ پـه نامه یادېږي، پیل وکړ.

## په مدینه کې اسلام او د جګړې پیل

د یثرب (اوسنۍ مدینې) مېلمه پالنې د مکې څو کلنه ځورونه، نا ارامي او همدارنګـه د سوزنده او وچې صحرا او اوږدې لارې ستړیا په خوښیو واړوله. هغـه پیغمبـر ﷺ چـې تر دې وړاندې یې تل د مسلمانانو په *عقیده جـوړونې*[2] فکـر کـاوه، اوس یـې لـه عقیـدې جوړونې پرته د اسلامي دولت پر جوړولو پیل وکړ.

انحضرت ﷺ په لومړي قدم کې د دولت جوړونې له پاره، د یو مرکز جوړولـو چـارې پیل کړې چې په کې مشورو د یویشتمې پېـړۍ پارلمـا غلـي کـوي، شـاګرد یـې اوسـنی اکاډمېسن حیراناوي او د عبادتونو سېستم په کې هندي زاهدان پـه تعجـب کـوي چـې نن ورځ د مسجد النبوي په نوم پېژندل کېږي.

حضرت محمد ﷺ په پیل کې، د لومړني اساسي قانون په جوړولو چـې د عصـري او کتبي اساسي قانون په توګـه ګڼـل کېـږي، د دسـتور المـدینې پـر نـوم جـوړ کـړ. د دې

---

۱. ابن هشام؛ السیرة النبویه؛ لومړی ټوک؛ ۲٦٥-۲٦٦ مخونه

۲. اسلام، تر هر څه وار د مخه د شخص په اصلاحاتو پیل کوي او د هغه عقیده پوره کوي، ځکه چې همدا عقیده ده چې هغه له مهمل او کمزوري فکر څخه ژغوري او د مخلوقاتو له تلپاتې نړۍ او پیاوړتیا سره یې تړي او همدا عقیده د دې لامل ګرځي چې خپل فاني عمر د نه پناه کېدونکي ژوند د لاسته راوړلو له پاره تېر کړي او د هر ډول بې عدالتۍ پر وړاندې په زړورتیا سره ودرېږي.

اساسي قانون له مخې، غير مسلمانانو له مسلمانانو سره په يوې ټولنه کې ژوند کاوه او له مساوي حقونو څخه برخمن وو. ځينې ازادۍ چې په دې قانون کې راغلې دي:

- الهي امنيت د ټولو خلکو له پاره مساوي دی.
- غير مسلمانان له مسلمانانو سره يو ډول سياسي او فرهنگي حقونه لري، هغوی له خپل دين څخه د پيروۍ حق هم لري.
- غير مسلمانان د امت پر وړاندې په جنگونو کې شريکېږي. د دې دوو تر منځ بايد د خيانت هېڅ ډول حس موجود نه وي.
- غير مسلمانان د مسلمانانو په جگړو کې په شريکېدو مجبور دي.

د دې اساسي قانون د پلي کېدو پايلې د فاضلې مدينې (د ارمان ښار) منځته کېدل و. فاضله مدينه هغه ښار دی چې ارستوکراسي، فيوډالېزم، سوسيالېزم، فاشېزم، لېبرالېزم او فکري بشري مکتبونه په کې نه ځايېدل او هرڅه د الهي عدالت پر محور څرخېدل؛ غلام په کې سردار کېده او اشراف زاده گانو په کې وهل خوړل، د هغو قبيلو دښمنان چې کلونه کلونه يو د بل وينو ته تږي ناست وو، په ورورولۍ او خوشالۍ يې يو بل ته غېږې خلاصې کړې.

ښاريانو يې د خوږ اذان د غږ په اورېدو سره، خپل مالونه په عام محضر کې پرېښودل او له کوچنۍ وېرې پرته يې د يوازيني معبود عبادت کاوه. هغو پانگوالو چې کلونه کلونه يې په عيش او عشرت کې ژوند کړی و، په صدقه او بخشش کې يې خوښې وليده او خپلې شتمنۍ يې د الله ﷻ په لاره کې مصرفولې. حاکم يې له عامو خلکو سره توپير نه لاره. اقتصادي وضعه يې له هغوی سره برابره او ان کله کله به راښکته هم وه.

د الله ﷻ د امر پر وړاندې هېڅ ولسواکي نه وه او په پای کې يو داسې ښار و، خيالي او ارماني چې افلاطون او ارسطو يې تصور نشو کولای او د بشريت تاريخ يې ساری نه لاره.

هو! د محمد ﷺ فاضله مدينه او اسلامي دولت داسې و.

د محمد ﷺ مدينه يوازې تر اخلاقياتو پورې تړلې نه وه؛ بلکې د بل هر دولت په څېر له امرالله سره سم يې د قدرت پر جوړولو لاس پورې کړ[1]. د مدينې فاضله او اسلام

---

۱. سورۀ الانفال؛ ٦٠مه ايۀ؛ وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ وَمِنْ رِبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُونَ بِهِ عَدُوَّ اللَّهِ وَعَدُوَّكُمْ وَاخَرِينَ مِنْ دُونِهِمْ لَا تَعْلَمُونَهُمُ اللَّهُ يَعْلَمُهُمْ وَمَا تُنْفِقُوا مِنْ شَيْءٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ يُوَفَّ إِلَيْكُمْ وَأَنْتُمْ لَا تُظْلَمُونَ (٦٠) ژباړه: او تاسې تر خپلې وسې وسې ډېر زيات طاقت او تيار زين کړي اسونه، د هغوی د مقابلې له پاره برابر کړئ، څو په دې وسيله د الله ﷻ پر دښمنانو، پر خپلو دښمنانو او پر هغو نورو دښمنانو هيبت راولئ، چې تاسې يې نه پېژنئ خو الله ﷻ يې پېژني. د

د قدرت بنسټ یوازې په اقتصاد، وسلې او پوځ نه دی (دا د قدرت مهم اجزاء دي)، بلکې د قدرت بنسټ په ایمان، ارزښتونو، علم، ازادی، یووالي، نظم او رهبرۍ کې نغښتی دی.

له همدې امله ده چې مسلمانانو ته تر هغې د جنګ اجازه ونه شوه چې د سیاسي او عمومي ازادیو، فردي او داخلي ازادیو څخه برخمن شوي نه وو. مسلمانان د قدرت د بنسټونو تر جوړېدو وروسته د جنګ (جهاد) اجازه ترلاسه کړه او همدا وه چې نوی پر پښو درېدلي پوځ له کمزورو او کوچنیو وسلو سره د حضرت محمد ﷺ تر مشرۍ لاندې، د قریشو ستر پوځ په ګونډو کړ.

## د اسلام د خلافت پیل او له خزر قوم سره ټکر

د حضرت محمد ﷺ په رحلت سره د اسلامي ټولنې مشري حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه ته وسپارل شوه او هغه امپراتوري چې د اسلام ستر پیغمبر یې وعده کړې وه، تر اسلامي خلافت لاندې یې په پراختیا پیل وکړ. د ځینو داخلي ستونزو له راڅرګندېدو سره سره لکه د دروغجنو پیغمبرانو او مرتدینو راپیدا کېدل او د مسلمانانو قبیلو بغاوت بیا هم اسلامي خلافت د فارس (ساسانیانو د امپراتورۍ) او بیزانس (ختیځ روم) پر لور د پرمختګ په حال کې و.

د مسلمانانو دویم خلیفه حضرت عمر رضي الله عنه، د بیت المقدس په نیولو سره اسلامي خلافت د ختیځ اروپا تر سرحدونو او په نني ایران کې د فارس د زردشتي امپراتورۍ په رانړولو سره را ورساوه.

د مسلمانانو د درېیم خلیفه (حضرت عثمان رضي الله عنه) د خلافت پر مهال د مسلمانانو تر منځ د دوو لومړنیو خلیفه ګانو په پرتله جنجالونه زیات شول او د حضرت عثمان رضي الله عنه شهادت د اسلامي امت تر منځ د لومړنۍ فتنې د رامنځ ته کېدو لامل شو. د اسلام د پیغمبر مېرمن حضرت عایشه رضي الله عنها، له حضرت علي کرم الله وجهه سره چې د محمد ﷺ د تره زوی و او د اسلام د څلورم خلیفه په توګه ټاکل شوی و، په جمل جنګ کې پرخلاف شوه چې د مبارک ﷺ د امت تر منځ د لومړنۍ فتنې لامل شوه.

نن ورځ باید مسلمانان په دې جنګ کې د طرفینو د سموالي او ناسموالي په اړه له قضاوتونو ډډه وکړي او قضاوت دې یوازیني قاضي ته پرېږدي؛ ځکه چې د دې مخالفت

---

الله ﷻ په لاره کې چې تاسې هر څه ولګوئ، د هغو پوره بشپړ مکافات به ستاسې لوري ته راوګرځول شي او تاسې سره به هېڅکله ظلم ونه شي.

په اړه قضاوتونو د اسلام د نننۍ امت وضعیت ته کومه ګټه نه ده کړې، بلکې د اسلامي امت د پارچه پارچه کېدو لامل شوي او د دښمن ژرندې ته اوبه اچول دي؛ نو له دې امله باید اسلامي امت ځان د دواړو لوریو د حقانیت پر اثبات بوخت نه کړي.

د حضرت علي رضي الله عنه په شهادت سره د قدرت واګې معاویه په لاس کې واخیسته چې ولیعهد په توګه یې د خپل زوی (یزید ابن معاویه) په ټاکلو سره یې د اسلام په تاریخ کې دویمه لویه فتنه منځته راوسته.



د امویانو په واسطه جوړه شوې سکه

د رسول الله صلی الله علیه وآله وسلم لمسی حضرت امام حسین پوهېده چې له خلیفه کېدو سره د وینې اړیکه اړه نه لري او بیعت د اسلامي خلافت بنسټ دی؛ نو د یزید ابن معاویه پر وړاندې یې قیام وکړ چې د کربلا غمجنه پېښه وشوه. سره له دې چې امام حسین رضي الله عنه د اسلامي راشده خلافت د بیارغونې له پاره خپل ځان، کورنۍ او یاران قربان کړل؛ خو تر اوسه اسلامي خلافت په ښه شکل سره پر پښو ونه درېد او د کربلا له پېښې وروسته اسلامي امت د امام حسین د پاڅون په ناسم درک سره پر خپلمنځي اختلافاتو لاس پورې کړ او د اسلامي امت تر منځ د یو ستر درځ د جوړېدو لامل شو.

د یزید تر حکومت وروسته، نظام یو ډول په یو شاهي حکومت بدل شو. د امویانو پر مهال د خلافت اصلي معنا له منځه تللې وه، د امویانو کورنۍ د اشرافیت ژوند کاوه، نه د حضرت عمر رضي الله عنه له عدالته څه خبره وه او نه هم د حضرت علي رضي الله عنه له حکمته، پرته د عمر ابن عبدالعزیز د خلافت له دورې څخه چې د هغه عدالت تاریخ لیکونکي حیران

کړل؛ خو له بلې خوا د امویانو پر مهال په هنر، معماری، د منسوجاتو صنعت، فلزي صنعت او مالداری کې ډېر پرمختګونه وشول چې ترګې ترې پټېدای نه شي.

امویانو همدارنګه د اسلام د امپراتورۍ په پراختیا لاس پورې کړی و. د ختیځ روم د بیزانس امپراتورۍ په شړلو سره د اسلام قوي او ستر پوځ له یوې بلې ډلې سره چې خزر نومېده، مخ شوه.

خو له بده مرغه چې د غرب ډېریو تاریخي کتابونو او ان د اسلامي معاصر تاریخ کتابونو یې په اړه هېڅ یادونه نه ده کړې. آرتر کوستلر د کوپن هاګن له پوهنتون څخه د سنینګ جایزې ګټونکی، د اروپایي فرهنګونو په مطالعاتو کې د ارزښت لرونکې برخې له پاره په خپل کتاب (دیارلسمې قبیلې) کې د خزر د تاریخ په اړه داسې لیکي: *لکه څنګه چې ورو ورو څرګندېږي، د خزرانو د امپراتورۍ کیسه یو تر ټولو بې رحمانه چل دی چې تاریخ تر اوسه ترسره کړی دی.*[1] خزران، هغه قبیله چې د قفقاز په غرونو کې یې ژوند کاوه او په بشري تاریخ کې د یوه جلا تاریخ درلودونکي وو چې د نړۍ ستر تاریخ لیکونکي یې د پیدایښت، ژوند او له منځه تلو په اړه مغشوش دي.

*په نوموړي کتاب*[2] کې د خزرانو ځانګړتیاوې داسې په ګوته شوې دي:

- په بدو څېرو او د وحشي حیواناتو په خویونو سره، وحشي انسانان.
- د ښځو په څېر ویښته (اوږده ویښته) یې لرل او ډېرو یې لویې او بدې څېرې لرلې.
- خزران دوه ډوله دي: تور پوستي خزران چې له هندیانو سره ورته والی لري او سپین پوستي خزران چې ډېر ښکلي دي.

دا امپراتوري چې لومړی د کُن په امپراتورۍ پېژندل کېده، د خزر قوم په راتګ سره د خزر په نوم ونومول شوه. خزرانو د ژوند عجیب طرز، رواجونه او فرهنګ لاره، پادشاهان یې له څو ټاکل شوو کسانو څخه پرته بل چا نشو لیدلی. له هېڅ پېژندل شوو دینونو یې پیروي نه کوله. په ځینو غونډو کې به یې انسانان قرباني کول. په داسې حال کې چې دوی په سیمه کې تر ټولو شتمنه امپراتوري ګڼل کېده، هېڅ ډول صادرات او صنایع یې نه لرل، بلکې تر ټولو ستره سوداګري یې د غلامانو پېر او پلور، جنسي سوداګري او د سوداګریزو کاروانونو غلا کول وو.

---

1. Arthur Koestler; The Thirteenth Tribe; p 5

2. Ibid; p 6

د یهودیت په تاریخ کې د لومړي ځل لـه پـاره *غیـر سـامي*[1] خلـک پـه ډېـر مرمـوز او ماهرانه توګه هغه دین ته چې پیروان یې تر یو ځانګړي نژاد پورې تړلي بولي (یهودیت)، ته واوښتل.

خـزران نـه یـوازې یهودیـان شـول، بلکـې یـو شـمېر یـې عیسویان شول او ډېر لږ شـمېر یې مسلمانان هم شول. هغـوی دیـن د خپلـو عقیـدو لـه پـاره ټاکلی نه و، بلکې اصـلي هـدف یې په نړۍ کې سیاسي نفوذ و.



**د خزري عسکر د شپږ مخیز ستوري نښان چې د اوسني اسراییل د بیرغ نښه هم ده.**

د یهـودو دیـن پـه دوولسـو اسراییلي قبیلو پـورې تـړاو لـري او غیر اسراییلي نژادونه یې دې دین ته نشي داخلېـدی. همـدا لامـل دی چـې ارتـر کوسـتلر د خزر یهودیـان پـه یهودیـت کـې دیارلسمه قبیله ګڼي.

ابن فضلان چې دې سـیمې تــه یـــې د عباســـي خلیفــه د استازي په توګه سفر کړی و، په خپل کتاب (د ابن فضلان یونلیک) کې خپلې د سـترګو لیدلې خاطرې په دې توګه را اخلي:

*د خزر د پادشاه عادت دا دی چې پنځـه ویشـت ښـځې بایـد ولـري، هـره یـوه یـې د ګاونډیو پادشاهانو لونې وي او که یې خوښه وي او کنه په نکاح کوي یې. هغه لـه ځـان سره د خوب کولو له پاره شپېته وینځې هم لري. د هغه د واکمنـۍ دوره ځلوښـت کالـه ده او که یوه ورځ هم پرې واوښته، عام وګړي او خپـل نـږدې خپلـوان یـې وژنـي او وایـي چې:*

---

[1] . سامي قومونه نن ورځ عربو په ځانګړې توګه اسراییلیانو (عبرانیانو) ته کارول کېږي. د سامي ژبو تر ټولو ژوندۍ نمونې هم عربي، عبربي او اشوري دي. نن ورځ که څوک د یهودیانو حقیقتونه را برسېره کړي، سامي ضد ورته ویل کېږي.

*د دې کس عقل کم شوی دی، د پادشاه تر خنبولو وروسته د هغه چا ځت هم وهي چې د ده په دفن کولو کې موجود وو ځو دا معلومه نشي چې قبر یې په کومه کوټه کې دی.*

*کله چې یې د خپلو عسکرو ټولگی کوم خواته لېږه په هېڅ وجې باید شاتگ ونکړي، که یې ماتې خوړه، هر یو یې چې بېرته راگرځېده، وژل کېده؛ خو که د لښکر مشر ماتې وخوري؛ نو هغه یې راغوښته او د هغه لوښې او ښځې یې د هغوی پر وړاندې نورو ته ورښبلې.*[1]

*خزران او د هغوی پاچایان یهودیان دي. موږ باید پوه شو چې په موسوي (په موسی ﷷ پورې تړلې) قبیلوي حاکمیت کې خزر حاکمې قبیلې او ملت ته ویل کېږي. بلغاریان او نور گاونډیان یې د (شاه) تر واکمنۍ لاندې وو او شاه ته یې د خدای په څېر عبادت کاوه، ځینې په دې نظر دي چې خزران یاجوج او ماجوج دي.*[2]

د یاجوج او ماجوج په اړه بدبختانه ډېرې افسانې جوړې شوې دي روایات او دروغ جوړ شوي چې تر ډېره یې مسلمانان هم اغېزمن کړي دي، ځینې یې ډېر کوچني او ځیني یې ډېر لوی او ځینې یې عجیب او غریب موجودات گڼي. یاجوج او ماجوج عادي انسانان دي او له نورو انسانانو سره په جسمي، فزیکي او بیولوژیکي شکل او کړو وړو کې توپیر نه لري. لکه څنگه چې د ابن قتاده په روایت کې راغلي دي: *یاجوج او ماجوج د یافث بن نوح*[3] *له نسل څخه دوه قبیلې دي.* او په بل روایت کې له ابوهریره ﷺ څخه نقل دي چې: *هغوی هم د نورو انسانانو په څېر د ادم ﷷ په نسل کې شامل دي.*[4] ابن کثیر په خپل مشهور کتاب (الدایه و النهایه) کې لیکي: *د یاجوج او ماجوج په اړه بېلابېل اقوال چې ځینې یې وایي ډېرې لوړې ونې لري او ځینې وایي ونې یې ډېرې لنډې دي، ناسم او بې دلیله دي، بلکې هغوی د نوح ﷷ له اولادې څخه دي او د بني ادمو په څېر شکلي او جسماني ځانگړنې لري.*[5]

په قران مجید کې د یاجوج او ماجوج په اړه دوه ځله یادونه شوې ده، یو وار په کهف سورت کې چې د ذوالقرنین له داستان سره داسې پیلیږي:

*۱. ذوالقرنین داسې ځای ته رسېږي چې فکر کوي لمر په ختینو او تورو*

---

۱. ابن فضلان؛ د ابن فضلان سفرنامه؛ ۱۱۵- ۱۲۸ مخونه

2. The Thirteenth Tribe; Arthur Koestler; p 16

۳. فتح الباري؛ شپږم ټوک؛ ۲۹۷مخ

٤. هماغه سرچینه

۵. حافظ عمادالدین ابن کثیر؛ الدایه و النهایه؛ شپږم ټوک؛ ۱۱۰ مخ

*اوبو کې ډوبېږي.*

*۲. وړاندې تر دې چې ذوالقرنین یاجوج او ماجوج ته ورسېږي وايي: کـه هر چا ظلم وکړ نو عذاب به ورکړم، یعنې هغه ظالمانو ته عـذاب ورکـاوه او نـه يې بښل.*

*۳. د لارې په اوږدو کې یاجوج او ماجوج تـه رسـېږي چـې د دوو دېوالونـو تر منځ پراته دي او داسې خلک دي چې په هېڅ ژبه نه پوهېږي.*

*۴. هغه خلک ذوالقرنین ته د یاجوج او ماجوج د فساد کیسې کوي.*

*۵. ذوالقـرنین د دوو غرونـو تـر مـنځ د اوسـپنیز دېـوال پـر جوړولـو سـره د یاجوج او ماجوج د تګ راتګ لاره بنـدوي او وايـي: تـر هغـې چـې د الله ﷻ وعده نه وي را رسېدلې له دې ځایه نشي راوتلی.*

*٦. یاجوج او ماجوج د ځمکې پر مخ مفسدین دي.*[۱]

د قراني حقایقو له مخې، د یاجوجو او ماجوجو جغرافیوي موقعیت د تورو اوبو (تـورې بحیرې) په شاوخوا کې دی. د تورې بحیرې په شـاوخوا کـې هغـه دوه دېوالونـه چـې پـه قران او نبوي احادیثو کې يې ځانګړنې یادې شوې دي، د ققفـاز غرونـه دي. پـه دې اړه ابن خلدون داسې لیکي: *د اووم اقلیم په نوو برخو، په لویدیځه برخـه کـې تُـرک قبیلـې ژوند کوي چې ورته ققفاز وايي او په ختیځه خوا کې يـې یـاجوج او مـاجوج دي او د دې دوو فاصلو تر منځ د قاف غر دی او د غره په منځ کې د سکندر دېوال دی چې قران هم ورته اشاره کړې ده.*[۲]

ذوالقرنین به ټولو ظالمانو ته عذاب ورکاوه، خو یاجوج او ماجوجو ته يې عذاب ورنکړ. د یاجوجو او ماجوجو قبیله ډېره پیاوړې وه؛ ځکه چې ذوالقرنین يې هم په عذاب ورکولو ناتوانه شول او یو اوسپنیز او مسي دېوال يې د هغوی پر وړاندې جوړ کړ.

په دې سیمو کې ځینې قبایل د ساونتي په څېر اوسېدل چې د نړۍ لـه مروجـو ژبـو څخه يې ژبه بدله وه او ان تر اوسه يې ژبه په لیکلې بڼه رسم او خط نـه لـري. د ققفـاز د غرونو تر منځ یو تنګی دی چې د داریال جورج (Darial Gorge) په نوم یـادېږي چـې د اوسپنې او مسو میدګي هلته پیدا شوي دي. لکه څنګه چې مولانا ابوالکلام ازاد لیکي: *دا دېوال د خزر او تورې بحیرې تر منځ واقع دی او یو داسـې ځـای دی چـې د ققفـاز د غرونو لړۍ، د یو طبیعي دېوال په څېر د جنوب او شمال تر منځ لاره پرې کـوي او د دې*

---

۱. سوره کهف؛ له ۸۳ څخه تر ۹۸ پورې ایاتونه

۲. ابن خلدون؛ شپږم اقلیم؛ سریزه (د ابن خلدون دا وینا په قصص القران کې مولانا محمد حفظ الرحمن په ۱۵۰مخ کې نقل کړې ده)

*غرونو په منځ کې يوازې په يو تنگۍ کې يوه لاره موجوده ده، دا لاره په اوس وخت کې د داريال تنگي په نامه يادېږي او د کيوکز او تفليس په برخو کې واقع ده.*

*اوس هم په دې برخو کې د اوسپنيز دېوال پاتې شونې شته دي او له شک پرته به د کوروش دېوال وي. د ذوالقرنين د دېوال په اړه ويل کېږي چې ډېره اوسپنه په کې کارېدلې او د دوو غرونو تر منځ هم جوړ شوی دی. د داريال معبر او تنگۍ هم د دوو لوړو غرونو تر منځ واقع دی او دا دېوال هم چې ډېره اوسپنه په کې ليدل کېږي، په همدې دره کې موجود دی. په دې اړه له ارمني کتابونو څخه د نبه مدرک او شاهد په توگه کار اخيستل کېدای شي؛ ځکه چې له پېښو څخه له نږدې بلد دی.*[1]

د اسلام امپراتورۍ د امويانو د قدرت پر مهال غوښتل چې امپراتوري پراخه کړي او د قفقاز له غرونو تېر شي چې د خزرانو له سخت مقاومت سره مخامخ شول. له دې دېوال څخه د تېرېدو له پاره د اسلام امپراتورۍ په څو سختو حملو لاس پورې کړ؛ خو تل د خزرانو له مقاومت سره مخ شول او له سختو جگړو وروسته يې ماتې ومنله. د مسلمانانو د نه ماتېدونکي پوځ له ماتې څخه د دې قوم پياوړتيا په ډاگه کېدای شي.

د عمر بن عبدالعزيز تر خلافت وروسته چې په دويم عمر مشهور و، د امويانو د امپراتورۍ له يو سخت بحراني حالت سره مخ شوه. قوي اختلافات زيات شول، د دين علماء له سياست لرې وساتل شول او مخالفت يې وشو او تر ټولو مهمه دا چې عباسيانو د اموي حکومت پر وړاندې مخالفت کاوه او غوښتل يې چې خليفه بايد د حضرت محمد ﷺ له کورنۍ څخه وي. په ۷۴۹ ميلادي کال عباسيان په عراق کې د امويانو د وروستي خليفه (منصور) په ماتې بريالي شول او د امويانو خلافت پای وموند.

## عباسيان، صليبي جگړې او د فرېمېسنانو (FREEMASONS) منځته راتگ

د عباسيانو د لومړي خليفه ابوالعباس السفاح په خليفه کېدو سره، پلازمېنه له دمشق څخه کوفې ته او بالاخره بغداد ته ولېږدول شوه. عباسيانو هم د خپلو پخوانيو سيالانو (امويانو)، په څېر د اسلامي خلافت اصل (بيعت) ته پاملرنه ونکړه او سلطنتي او ميراثي لړۍ يې پياوړې کړه.

---

۱. مولانا ابوالکلام ازاد؛ ذوالقرنين او ستر کوروش؛ د باستاني پاريزي ژباړه؛ ۷۲ مخ

له ځينو تېروتنو سره سره بياهم اسلامي او غير اسلامي مؤرخين د عباسيانو دوره د اسلام زرينه دوره ګڼي، ځكه چې په دې موده كې د علم، هنر، فلسفې، شعر، طبابت، رياضياتو، ساينس، ستورو، معمارۍ او نورو بېلابېلو برخو كې د پام وړ پرمختګونه وشول.

عباسيان د رسول الله ﷺ د علم په اړه له ويناوو څخه ډېر اغېزمن وو. د بېلګې په توګه ويل به يې چې د *يو عالم د قلم رنګ د شهيد له وينې څخه پاک دی*[1] او *يقيناً عالمان د پيغمبرانو وارثان دي.*[2] همدا لامل و چې په بغداد كې يو علمي مركز جوړ شو. په دې ځاى كې به مسلمان او غير مسلمان عالمان سره يو ځاى كېدل او د ټولې نړۍ پوهه به يې راټولوله.

د مسلمانانو د هماغه مهال پوهنتونونه د نړۍ په كچه پياوړي پوهنتونونه وو. په هغه وخت كې به مسلمانانو له هرې ممكنه زاويې او طريقې سره علم، كه له اسلامي اساساتو سره په ټكر كې هم و، تر څېړنې لاندې نيوه. هغه وخت د فكر، تعقل او علم وخت و. هغه وخت علماء يوازې ملايانو ته نه ويل كېده. علماء پرته له دې چې ديني علم به يې لاره، له نورو علومو سره به يې هم بلدتيا لرله. هغه چا چې يوازې په دين كې يې څېړنه كوله فقهاء ورته ويل كېده.

هغه وخت علماوو په هر ايت او حديث لكه څنګه چې الله ﷻ او د هغه رسول ﷺ ويلي و، *فكر او سوچ كاوه.*[3] لكه چې د يو حديث په مفهوم كې راغلي دي:

*الله ﷻ له علاج پرته ناروغي پيدا كړې نه ده.*[4] علماوو د همدې حديث په اړه د هماغه وخت د ټولو ناروغيو د علاج په څېړنه پيل وكړ.

د نن ورځ عصري طبي علم د هماغه وخت د اسلامي علماوو د فكر او څېړنو پايله ده. په هغه وخت كې اسلامي عالمان يوازې د مسلمانانو استادان نه وو بلكې د اروپايانو استادان هم وو. اسلامي علماوو د ساينس په بشپړتيا كې عمده او ستر رول لوبولی دی چې له دې ډلې (الرازي، البيروني، ابن الهاثم، الجبرتي، التواسي، خوارزمي او نور) د خپل وخت تر ټولو پياوړي ساينس پوهان وو.

د طب په برخه كې د ابن سينا په څېر اغېزناک او ګټور شخصيت بې جوړې و؛ ځكه چې د اوسني طب بنسټ يې كېښود. د هغه وخت د سترګو مسلمانو ډاكټرانو، د سترګو

---

۱. جامع البيان العلم؛ لومړی ټوک؛ ۱۵۰ حديث

۲. سنن ابو داوود؛ ۳٦۴۱ حديث؛ سنن ترمذي ۲٦۸۲، سنن احمد بن حنبل؛ ۲۱۷٦۳

۳. د قران په ډېرو ايتونو كې الله ﷻ انسانان د فكر نه كولو په لامل نيولي دي او د (افلا تعقلون)، (افلا تتفكرون) او (افلا يتدبرون القران)، سره يې په بېلابېلو مباحثو كې فكر او سوچ كولو ته رابللي دي.

٤. صحيح بخاري؛ ٥٦٧٨ حديث

د عمليات له پاره نرمې او پرمختللې الې کشف کړې وې. همدارنگه اسلامي علماوو د انسان د سترگې د مطالعې له مخې د نور له فزيک سره ډېره مرسته وکړه.

اسلامي علماء په الجبر او رياضياتو کې له ډېرو هڅو وروسته په دې وتوانېدل چې د باينري اعدادو (Binary Code) د رازونو په پراختيا سره د ساعت، ابياری سېستمونو (هايدروفزيک) او ميخانيکي سېستمونو په کشفولو کې مهمه ونډه واخلي. کرن ارمسترانگ د لويديځې نړۍ مشهور دين پوه داسې ليکي: *د هغه وخت د اسلامي علماوو ساينسي کشفيات د پخواني تاريخ له ټولو کشفياتو څخه زيات دي.*[1]

د ديني مطالعو په برخه کې د نعمان ابن ثابت (امام ابوحنيفه)، امام احمد بن حنبل، محمد بن ادريس شافعي، امام مالک ابن انس او امام جعفر صادق ﷺ په څېر پياوړو ديني علماوو او مجتهدينو د دين په بېلابېلو برخو څېړنې وکړې او بېلابېلې فتواگانې او اجتهادونه يې صادر کړل چې نن ورځ يې د اسلام ستر مذهبونه تشکيل کړي دي.

د دوی پر خلاف د عباسيانو دوره له دې ټولو پرمختگونو سره سره، بيا هم له بحرانونو او کمزوريو خالي نه وه. اقتصادي حالت مخ په کمزوتيا و او د خلافت د ټولې ساحې کنټرول ورته يو ستونزمن کار و. د هسپانيې په څېر ځينو سرحدي ولايتونو ترې ځان بېلول پيل کړل او هارون الرشيد د دې ستونزې د حل له پاره غوښتل چې امپراتوري د خپلو دوو زامنو تر منځ وويشي چې دا کار يې تر مرگ وروسته د دواړو زامنو تر منځ د کورنيو جگړو لامل شو. د لسمې پېړۍ په وروستيو لسيزو کې د اسماعيليه ډلې په مصر کې بغاوت وکړ او د فاطميانو امپراتوري يې جوړه کړه چې تر دوه سوه کلونو پورې يې دوام وکړ.

له بلې خوا سلجوقيان چې د تصوف د مکتب ډېر ترړي وو او د نظام الملک فارسي په واسطه اداره کېدل، د سلجوقيانو په نوم يې يوه نوې امپراتوري جوړه کړه چې جنوب لور ته تر يمن، ختيځ ته تر امو سينده او لويديځ ته يې تر سوريې ادامه لرله. د سلجوقيانو په حکومت کې اسلامي ټولنه د اسلامي شريعت له مخې اداره کېده. په داسې حال کې چې مسلمانان پر خپلو داخلي جگړو او خپلمنځي اختلافاتو اخته شول او يو خلافت يې په څو سياسي واحدونو بدل شو.

---

1. Karen Armstrong (2002(; Islam: A Short History; p 56

د نړۍ بلې خواته (غربي اروپا کې) د کاتولیک کلیساوو پاپانو د خپلو داخلي جګړو د له منځه وړلو له پاره، مسلمانان د مسیحیت د دین یوازیني دښمنان ور وپېژندل چې وروسته دا کار د مسلمانانو په ستر سردرد واوښت.

د مسیحیت دین د یوې عقیدتي اختلافونو د لړۍ پر بنسټ په شرقي مسیحیت (ارتودوکس) او غربي مسیحیت (کاتولیک) وېشل شوی و چې یو بل ته یې د دښمن په سترګه کتل. د روم د امپراتورۍ تر زوال وروسته ارتودوکس مسیحیت د ختیځ روم امپراتوري (Byzantine) جوړه کړه او غربي مسیحیان یې په ملک الطوایفۍ، فیوډالۍ او جهالت کې اوسېدل.

د غربي اروپا وګړو تر ټولو بد ژوند لاره. د فیوډال اقلیت، د خلکو له اکثریت څخه د جنګي حیواناتو په توګه کار اخیست او داخلي جګړې یې د خپلې اعاشې او اباطې د ترلاسه کولو له پاره کاروبار ګرځولې وې. له دې حالت څخه کلیسا ستړې شوې وه او د جګړې د مهار کېدو له پاره یې یو الهي اوربند اعلان کړ.

د پوهانو تر منځ د شنبې، یکشنبې، دوشنبې او ټولو هغو ورځو په اوږدو کې چې د کلیسا له خوا ورته د تقدس په خاطر رسمي رخصتي ورکړل شوې وې، جګړه منعه شوه. د خلکو زیاتوالی، له علم څخه لرې والی او د اغېزمنتیا نشتوالی د فقر او بیچارګۍ د زیاتوالي لامل شو او کشیشان هم په فیوډالي نجیبانو بدل شوي وو چې د الهي اوربند د له منځه تلو لامل شول.

تر دې وروسته جګړې او بې وزلۍ نورې هم ډېرې شوې، کلیسا د یوې بلې حل لارې په فکر کې شوه. د جنګ د لورې د بدلولو له پاره یې د مسلمانانو په راپرځولو پیل وکړ، کلیسا خپلو خلکو ته مسلمانان د حضرت عیسی ﷺ د زېږېدو د پاک ځای (اورشلیم) د ځمکې غاصبین، بد ملت او وینه تویوونکو هیولاګانو په توګه ور وپېژندل.

په ۱۰۹۵ زېږدیز کال کې دویم اوربانس پاپ د کلیسا له مشرانو څخه د فرانسې په جنوب کې یوه شورا جوړه کړه. هغه هلته خپلو مخاطبینو ته د تاریخ تر ټولو حیرانوونکې وینا وکړه. نوموړي په دروغو سره د مسلمانو قومونو د بریاوو او تاوتریخوالو یو بد انځور وړاندې کړ چې په کې بیت المقدس د دې وینه تویوونکو تر پښو لاندې شوی و.[1]

ملعون نژاد د بیت المقدس په ځمکه په بېرحمۍ سره حمله وکړه، اور یې ور پورې کړ او خلک یې ترې وویستل. هغوی له ځانه سره خپلو هېوادونو ته یو څه بندیان هم یوړل او یو څه یې په وحشیانه توګه تر شکنجو او ځورونو وروسته له تېغه تېر کړل. هغوی

---

۱. تیموتي لوی بیئل؛ صلیبي جګړې؛ د سهیل سمي ژباړه؛ ۴۲ مخ

محرابونه، په خپلو ناپاکه وجودونو سره تر مردارولو وروسته وران کړل.[1] په ۱۰۹۹ م کال صلیبیان د بیت المقدس شاوخوا سیمو ته په رسېدو او محاصره کولو بریالي شول چې د همدې کال په وروستیو کې یې په دې ښار، وروستۍ حمله پیل کړه او بیت المقدس د صلیبیانو لاس ته ورغی.

صلیبیانو ښار ته له ننوتو سره سم د حیواناتو په څېر لیونی حالت غوره کړ. د غچ اخیستنې له پاره یې د مسلمان په وژلو او ډول ډول ظلمونو لاس پورې کړ. صلیبیانو هر مسلمان او یهودي له ښځې او ماشوم سره په خورا بې رحمۍ وواژه. د بیت المقدس لارې یې له وینو ډکې کړې او هېڅ یو داسې صلیبي به مو نه و لیدلی چې په وینو یې کالي تر ځنګنونو لړل شوي نه وي.

تاریخ پوهان په دې باور دي چې که مسلمانان په خپلو داخلي بې نظمیو او کشمکشونو اخته نه وای، نو د صلیبیانو غیر متمدنه، وحشي، جاهله او نامنظم پوځ به هېڅکله د مسلمانانو په ماتولو او په بیت المقدس کې په عام وژنه بریالی شوی نه و. په بیت المقدس کې د معبد د قهرمانانو (Knight Templars) په نوم ډله راپیدا شوه. د ډېرو سرچینو په باور د معبد قهرمانان یا د سلیمان د معبد فقیر قهرمانان په نوم ډله، په ۱۱۱۸م کال جوړه شوه، خو داسې شواهد شته چې دا ډله ځلور کاله وړاندې هم موجوده وه.[2]



د بافومت مجسمه چې شیطاني عابدان ورته د شیطان په توګه عبادت

له ۱۱۲۸میلادي کال راهیسې دا ډله په غیر معمول ډول پراخه شوې ده، نه یوازې یې ګمارنه زیاته شوې ده، بلکې ملکیتي او مالي مرستې

1. Frederick A.; Medieval History; Pop Orobanche II speach

2. Desmond Seward; The Monks of War; p 37

یې هم لاسته راوړې دي. د یوه کال په موده کې پـه فرانسـې، انګلیسـتان، هسـپانیې او پرتګال کې د ځمکو خاوندان شول. د یوې لسیزې په اوږدو کې یـې ملکیتونـه ایتـالیې، اتریش، جرمني، هنګري او قسطنطینیې (اوسـني اسـتانبول) تـه ورسـېدل. پـه ۱۱۳۱م کال اروګان (Oregon) پادشاه د خپلې واکمنۍ درېیمه برخه ور وسپارله.

د دوولسمې پېړۍ پـه منځنیـو وختونـو کـې معبـدیان پـه مسـیحیت کـې د یـوازیني پیاوړي او شتمن سازمان په توګه پېژندل کېدل، البته د پاپانو په کچه نه وو. د معبـدیانو اړیکې هغو حاکمانو سره چې په کې یې ځمکې لرلې ضـد او نقیضـې وې، د بېلګـې پـه توګه په فرانسه کې یې اړیکې تل خچنې وې. له بلې خوا په هسپانیه کې بیـا دا اړیکـې په پرلپسې توګه ښې وې او په انګلیستان کې هم معبیان د شاهي کورنۍ له ملاتړ څخه برخمن وو. د صلیبیانو تر منځ به ډېرې لړې پرېکړې وې چې معبـدیانو پـه کـې رول نـه لاره. تاریخي شواهد ښیي چې معبدي قهرمانان په ژوره توګه د اروپا د شاهي حکومتونو په ننیو او بهرنیو چارو کې لاس لاره.[1]

معبدیانو یو ځانګړی نظم لاره او غړي یې په بېلابېلو درجو کې وو چې تـر ټولـو سـتر یې د اعظم استاد (Grand Master) په نامه یادېده. مـاریون ملـول لیکـي: *معبـدیانو د دوو اعظمـو اسـتادانو (Hugues de Payens & Richard de hastings) تـر مشـرۍ لاندې د تورات په لاسوهنه پیل وکړ.*[2] تورات هغه کتـاب دی چـې د الله ﷻ لـه خـوا پـه موسی ﷷ نازل شوی دی. مخکې هم د بني اسراییلو له خوا په کې لاسوهنه شـوې وه، خو د معبدیانو لاسوهنه یوه پیاوړې اقتصادي، سیاسي او جیو پـولیټیکي ریښـه لـري، د بېلګې په توګه د غیر یهودو له پاره د سود حلالول او د بین النهـرین (د فـرات لـه سـیند څخه د نیل تر سیند پورې) سیمه د بني اسراییلو د حکومت حق ګڼل.

معبدیانو د ډېرې شمتنې، بشري قوې، نظـامي او دیپلومـاتیکو مهـارتونو پـه راټولولـو سره نظامي او سیاسي اغېزمنتیا لاسته راوړه، خو د دوی اقتصادي پیاوړتیا له سیاسي او نظامي هغې څخه کمه نـه وه. ډېـرې مـورخین پـه دې عقیـده دي چـې اوسـنی عصـري تکاملي اقتصادي سېتسم د یهودو د سود خوړلو او په ځانګړې توګـه د معبـدیانو د کړنـو پایله ده.

په داسې حال کې چې په مسیحیت کې سود خوړل حرام دي او په هغې وخـت کـې هم دا کار حرام ګڼل کېده، خو معبدیان ترې مستثناء وو او په ډېـره لویـه کچـه یـې پـور

1. Reichard Leigh & Michael Baigent; The Temple and the Lodge; Ch. 2

2. Marion Melville; Life of Templers; p 93

وړاندې کاوه چې بیا به یې د هغې سود راټولاوه [١]. ان تر دې چې د انګلیستان شاهي کورنۍ هم د معبدیانو پوروړې وه.

د انګلیسانو شاه (جان) له معبدیانو څخه ډېر پور اخیستی و. همدارنګه درېیم هنري پادشاه له معبدیانو څخه دومره پوروړی و چې د انګلیستان ټول نظامي لګښتونه یې له هغې څخه ورکول او د انګلیس ملکه هم شخصاً د معبدیانو پوروړې وه؛ د اوسني سویسي بانک په څېر به معبدیانو اوږدمهالي پیسې راټولولې چې پیسې به د مالک تر مرګ وروسته (هغه چې خپله یې له معبد نه امانت اخیستې وي) بېرته د معبد کېدې. دیماند سیوارد لیکي: *د معبدیانو په څېر هېڅ یو سازمان د سرمایه دارۍ (Capitalism) له پرمختګ سره مرسته نه ده کړې*[٢]. *د پام وړ ټکی دا دی چې د معبدیانو ټول اعظم استادان خزران وو.*[٣]

د فرانسې پادشاه (پنځم فیلیپ) چې په لویل فیلیپ هم مشهور و، د معبدیانو د ورځ تر ورځې اقتصادي او سیاسي قدرت له زیاتېدو څخه یې د ګواښ احساس کاوه او د دې ډلې د وژنې او نیولو فرمان یې صادر کړ. تر فرانسې وروسته څو نورو اروپایي هېوادونو هم د معبدیانو د نیولو امر صادر کړ، خو دا کار سکاټلېنډ ونکړ، ځکه چې د فرانسې دښمن و او خپلې دروازې یې د معبدیانو پرمخ پرانیستې. د فرانسې د پادشاه له ستر قدرت سره سره بیا هم هغه په دې ونه توانېد چې د معبدیانو ستر استادان ونیسي او د هغوی خزانې لاسته راوړي. معبدیانو په مرموزه توګه له خپلو خزانو سره سکاټلېنډ ته پناه یوړه.

فیلیپ د نیول شوو معبدیانو په شکنجه کولو لاس پورې کړ چې د معبدیانو په عجیبو رازونو یې اعتراف وکړ. په اعترافونو کې مهم دا وو چې معبدیان د بافومت (Baphomet) یو شیطاني قدرت عبادت کوي.[٤] معبدیان په داسې عباداتو تورن وو چې له امله یې د ماشومانو وژل، د جنین د سقط له پاره تدریس، د نابالغو د شوندو ښکلول او همجنس بازي وه.

---

1. Eleanor Ferris; The Financial Relations of the Knights Templars to the English Crown; pp 15-16

2. Desmond Seward; The Monks of War; p 213

3. Lev Gumilev; The Ethnosphere; p 423

٤. بافومت یا وزه (مندز) د عبادت کوونکو په وینا یې هماغه ستر مار دی چې حوا ته یې دوکه ورکړه، ابلیس، شیطان، لوسیفر یا د بافومت وزه. بافومت (لاوي) د پټو علومو له پلټونکو او شیطان پالونکو سره په اړیکه کې بیا ژوندی شو. هغه انځور چې موږ یې په اصلي رسنیو کې وینو د (الیفانس لاوي) کابالیست په واسطه په نولسمې پېړۍ کې تحسین شوې ده دنده یې له جادو څخه د رازونو را برسېره کول وو.

دې مسيحي عسکرو به هغه څوک چې د مسيحيت لـه پـاره جنګېـدل او ځانونـه يـې قربانول، د مسيحيت په بې احترامۍ او رد يـې تورنـول او ان پـه صـليب يـې لاړې ورتـه توکولې.[1] معبديانو په سکاټلېنډ کې د فريمسن (Freemasons) په نوم يوه بلـه پټـه ډلـه جوړه کړه. که څـه هـم پـه دې اړه کـافي شـواهد نشـته چـې د فريمسـنيانو ډلـه دې تـر معبديانو پخوا موجوده نه وه، خو د فريمېسنيانو نوی نظام په پـوره توګـه د معبـديانو يـوه لاسته راوړنه ګڼل کېږي.

له معبدي قهرمانانو سـره د فريمېسـنيانو لـومړۍ ځـل اړيکـه د جرمنـي تبعـې بـارون کارل ګوتليب په واسطه افشا شوه چې د فريمېسنرۍ لوړې درجې تـه رسـېدلې وو او پـه ۱۷۴۲م کې د فريمېسن له ډلې سره يو ځای شوي وو. هغه وايي: *د لومړي ځل له پـاره معبديانو د فريمېسنري نوی شکل جوړ کړ.*[2]

د فريمېسنيانو ډله د معاصرې پېړۍ يوه ګرمه موضوع ده. د بېلابېلو دينونو عالمـان، څېړونکي، ليکوال او توطيه جوړوونکي د فريمېسنيانو پـه اړه بېلابېـل نظريـات او اندونـه لري. په دې کتاب کې د هغوی د ښه پېژندلو له پاره هڅه شوې چـې دا ډلـه د دوی لـه خپلو ادرسونو څخه وڅېړي.

والتر لسلي هغه څوک چې د غربي لوژ يارک شاير يو مهم غـړی دی پـه خپـل کتـاب (د مېسنرۍ مانا) کې دا ډله خلکو ته ورپېژندلې ده. د هغـه پـه وينـا مېسـنري پـه خپـل ذات کې يو دين نه دی، بلکې د دينـــي پروســـو يـــو ســـخت او ډراماټيــک شــکل دی، چـــې د نړۍ د هر دين د سېستم ځـای نيـولی شـي. فريمېسـنري څـو درجې لري چې په لومړۍ درجه کې نور ورکوونکي (شـيطان) تـه د رسـېدلو لـه پـاره د نفـس پـه تزکيې تاکيد شوی چې دا تزکيه د ژوند رازونو ته د رسېدو له پـاره ده. د فريمېسـنري پـټ رازونـه د ژوند د رازونو په څېـر ډېـر پـټ او



**د فريميسنانو نښان چې يوه سترګه (د دجال سترګه) شيطاني نور او هرم په کې دي**

1. Richard Leigh & Michael Baigent; The Temple and the Lodge; Ch. 3

2. Rene Le Froestier; Freemasonry Templars and Occultists; pp 109,135,136

پوښلي ساتل کېږي.

د فرېمېسنري بنسټیز اصول وايي چې د دې ژوند تر ټولو ستر سازونه د صهیون[1] د سندرې پر وړاندې هېڅ ګڼل کېږي. کبالېزم[2] د مېسنري یو بل عمده سېستم ګڼل کېږي. د مېسنري تر ټولو ستره درجه اعظم مېسن دی چې هېڅکله تېروتنه نه کوي او په ځمکه کې د اسماني پادشاهۍ خاوند دی. سلیمان ستر مېسن دی چې اسماني پادشاهي يې خپله وه او په خپلو عباداتو کې وايي چې هغوی زموږ خدای ونیوه او پوهېږو چې چېرته يې یووړ. د فرېمېسنري ټولې کړنلارې په بیت المقدس کې د اسماني پادشاهۍ په جوړولو تاکید کوي.

د صلیبیانو په لباس کې خزري معبدیان چې په دې پوه شول، د بیت المقدس د ازادولو له پاره د متفرقو مسلمانانو هڅې ناکامې دي، په بیت المقدس کې يې د پادشاهۍ پر جوړولو پیل وکړ. په دې جریان کې، عمادالدین زنګي چې د مسلمانانو له بحراني حالت څخه رنځېده، د وضعیت په دقیقې مطالعې سره د حل لارې په فکر کې شو. هغه په دې عقیده و چې د مسلمانانو یوازینۍ کمزورتیا داخلي اختلافات دي نو ځکه يې وغوښتل چې مسلمانان دې یو وار بیا د یوه امت په توګه متحد شي.

د عمادالدین له ډېرو هلو ځلو سره سره، مسلمانان د هغه په ژوندانه کې په یوه اتفاق نشول. د هغه زوی نورالدین زنګي هم د خپل پلار لار ونیوه. د فاطمیانو امپراتوري په رانسکورېدو وه او صلیبیانو وغوښتل له چانسه ګټه واخلي او مصر هم تر خپلې ولکې لاندې راولي. نورالدین زنګي پر مصر د صلیبیانو له حملې خبر شو. له خپل پوځ سره يې د فاطمیانو مرستې ته ور ودانګل او له هغو عقیدتي اختلافاتو سره سره چې له فاطمیانو سره يې لرل، د صلیبیانو حمله يې خنثی کړه.

د هغه له دې کار سره فاطمیان له هغوی سره مدغم شول او د صلیبیانو پر وړاندې سره متحد شول. د نور الدین زنګي تر مرګ وروسته د هغې وراره صلاح الدین ایوبي د مصر امیر شو. صلاح الدین یو زړور او دیندار شخصیت و او د تاریخ له سترو مسلمانو جنګیالیو شمېرل کېږي.

---

۱. د صهیون غر د بیت المقدس په ښار کې یو غر دی چې د پخواني ښار له دېوالونو بهر واقع دی. د صهیون غر په تاریخي توګه له اقصی مسجد سره اړیکه لري. دا کلمه کله کله د ټول مقدس هېواد له پاره هم کارېږي.

۲. کبالا له یهودي عباراتو سرچینه اخیستې او پیروان يې معمولاً د عرفاني مسایلو د تفسیر او توصیف له پاره له یهودي متنونو ګټه اخلي. د کبالا لارښوونې د یهودي پټو عباراتو د مانا د پوهېدو له پاره لکه تورات او د ربیانو د لیکنو لکه تلمود له پاره کارېدلې او د یهودي عبادت پټه مانا يې بیانوله. د کبالا پیروان په دې باور دي چې کبالا د نړۍ د دینونو تر راتګ وړاندې کارې ده او له پخوانیو دینونو څخه دی.

ایوبي یو داسې څوک و چې هېڅکله یې په قصر کې ژوند ونکړ او تل یې په یوې ساده جونګړې کې د ژوند شپې تېرې کړې. د خپل نیکه د ارمان د پوره کولو له پاره یې مسلمانان سره یو ځای کړل او د بیت المقدس د فتحې له پاره یې یو ستر پوځ برابر کړ چې په پای کې په ۱۱۷۸میلادي کال له صلیبیانو څخه د بیت المقدس په ازادولو بریالی شو.

# د اسلامي تمدن ځينې لاسته راوړنې

**هنر**
- ميناتوري
- ښکلې ليکنه
- نقاشي

**ساینس**
- اسطرلاب يا استرلاب
- ساينسي پروسې
- نجوم
- د نور فزيک

**ادبیات**
- شاعري
- ۱۰۰۱ او يوه شپه
- ژبه پېژندنه
- د ژباړې فن

**طب**
- د هوا له لارې د ناروغۍ د لېږد اورګانيزم
- بستري ناروغان (روغتون)
- د سترګو عمليات

**رياضي**
- انجنيري
- عربي ارقام
- الجبر
- هندسه

**مهندسي او ښارونه**
- د قرطبې ښار
- باغونه، پارکونه، مسجدونه او عصري حمامونه
- ګنبدونه او قوسي معماري

**سوداګري**
- د سوداګرۍ لارې
- صنعت
- رواجول او هڅونه

**زده کړه**
- د پوهنې مرکزونه (پوهنتونونه)
- د کتابونو ژباړې
- علمي يونليکونه
- کتاب خانه ها مراکز نشر

**فرهنګ**
- د فرهنګي تبادلې پروګرامونه
- د بهرنيو هنرمندانو را غوښتل
- ترويج فرهنګ اسلامي
- تعريف فرهنګ اسلامي

**تاريخ**
- ابن خلدون

## مغولیان

په لږي ختيځ کې چنګېزخان د امپراتورۍ په جوړولو لاس پورې کړی و او مسلمانان بايد يوې بلې سترې جګړې ته تيار شوي وای. چنګېز د يو تکړه جنګي رهبر په توګه، ډېر ژر په دې وتوانېد چې مغوليان سره راټول کړي او د جنګي ماشين په څېر يې په يوې ورانوونکې قوې بدل کړي.

هر ښار به چې د چنګېز پر وړاندې مقاومت ښوده، تر فتحې وروسته به يې ښار وران او ټول اوسېدونکي به يې وژل. کله چې محمد؛ د خوارزم پادشاه غوښتل په ايران او د امو د سيند په څلورو غاړو خلافت جوړ کړي د مغوليانو له خوا تر سختې حملې لاندې ونيول شو او لومړی ايران او بيا اذربايجان او بالاخره سوريې ته په تېښته اړ شو. د دې سيمو خاورې او وينې د مغوليانو له خوا سره يو شان شوې او د مغوليانو تر واکمنۍ لاندې شوې. تر ۱۲۳۱م کال وروسته، د مسلمانانو ښارونو په ترتيب سره پر يو بل پسې سقوط کاوه، تر دې چې د اسلامي خلافت پلازمېنه بغداد يې هم له لاسه ووت.

د مغولو پر وړاندې لومړی کس چې غبرګون يې وښود د مملوک په نوم ترکی بايبر سلطان و. مملوکيانو د ايوبي امپراتورۍ پر وړاندې چې د صلاح الدين ايوبي له خوا جوړه شوې وه، کودتا وکړه او په نږدې ختيځ کې يې د مملوک امپراتوري جوړه کړه.

مغوليانو د ډېرو اسلامي هېوادونو او د نړۍ د ختيځو سيمو تر نيولو وروسته، خپل ستر حکومت چې د چنګېز د څلورو زامنو له خوا اداره کېده، په څلورو حکومتونو ووېشه. مغوليان په څوارلسمه پېړۍ کې په اسلام مشرف شول؛ خو له مسلمانېدو سره سره يې بيا هم د اسلامي حکومتولۍ طريقه عملي نکړه او د مغولي قوانينو پر بنسټ يې حکومت مخکې وړه.

په پنځلمسې پېړۍ کې مغوليانو پرېکړه وکړه چې اسلامي علماوو ته نور د اجتهاد حق ورنکړي او د اجتهاد د دروازو په تړلو سره ان په نوو مسايلو کې هم، مسلمانان له پخوانيو علماوو څخه په پيروي کولو مکلف شول. د مغوليانو لاسوهنې اسلامي تمدن ته سخته ضربه ورکړه. مغوليانو د مسلمانانو ستر کتابتونونه او ښارونه وران کړل او اقتصادي سېستم يې له بحران سره مخ کړ. اسلامي تدريسي سېستم يې په پوره توګه بدل کړ.

*د مغولیانو د سترې امپراتورۍ د زوال پر مهال، هغه حاکم چې د وخت یوه پیاوړې څېره وه، د تاریخ مزل یې بدل کړ.*[1] د ګوډ تیمور په نوم ترک قومه شخص، د جغتای د حکومت پر مهال په سمرقند ښار کې زیږېدلی و او د مغولېزم د نظریې تری سړی و. تیمور ځان د مغول له نسل څخه ګاڼه او غوښتل یې هغه سیمې چې مغولو اداره کولې او له لاسه یې وتلې دي، بېرته ترلاسه کړي. تیمور ظاهراً د اسلام سرسخت ملاتړی و، خو یوازینی هدف یې د فساد له منځه وړل وو او د دې کار له پاره یې له هېڅ ډول بې رحمۍ لاس نه دی اخیستی.

هغه د چنګېز په څېر نه ماتېدونکی ښکارېده. په ۱۳۸۷م کال یې ایران او بین النهرین فتح کړل. په ۱۳۹۵میلادي کال یې روسیه فتحه کړه او په ۱۳۹۸ م کال یې هندوستان ته پښه ورسېده، هلته یې هندي بندیان ووژل او ډهلی یې وران کړ او په پای کې یې چین هم ونیو چې هلته ووژل شو.

عثمانیان چې د ګوډ تیمور له خوا یې ماتې خوړلې وه، د هغه تر مرګ وروسته یو وار بیا راپورته شول او پر وړاندې تګ یې پیل وکړ چې د عثماني امپراتورۍ په رامنځته کولو بریالي شول.

## عثمانیان او غربي عصري تمدن

د ګوډ تیمور له مرګ سره د هغه د امپراتورۍ زوال پیل شو او د اسلام قلمرو په دریو امپراتوریو تجزیه شو: په ایران کې د صفویانو امپراتوري، په هندوستان کې د مغولو امپراتوري او انتالیا، سوریه، شمالي افریقا او عربو په جزیره کې د عثمانیانو امپراتوري. دې دورې ته تاریخ پوهان د نړۍ د قدرت له مخې د اسلام د بریا دوره وایي. که څه هم دریواړو امپراتوریو په ځینو چارو (عدالت، مساوات او ټولنیزو چارو) کې اسلامي قوانین نه پلي کول او دریواړو امپراتوریو د خلافت له اصل څخه مطلقې شاهي ته بدلون ورکړی و. په دې منځ کې عثمانیانو خپل حکومت ته د خلافت نوم ورکړی و او د اسلامي شریعت قوانین یې نافذ کړي و، په داسې حال کې چې صفویانو د شعیه فقهې پر بنسټ حکومت کاوه او مغولیان د تصوف د مکتب پیروان وو.

عثمانیانو ډېر نظامي پرمختګونه وکړل چې له دې جملې د مسلمانانو پخوانی ارمان یعني د قسطنطینیې د فتحې پوره کېدل وو. دا فتحه د سلطان محمد له خوا ترسره شوه او د همدې سترې فتحې له امله ورته سلطان محمد فاتح وایي. د پنځلسمې

1. Karen Armstrong (2002); Islam; Islam: A Short History; 2002; p 106

میلادي پېړۍ په وروستیو کې اسلام د نړۍ تر ټولو پیاوړی قدرت ګڼل کېده چې فتوحات یې په ختیځه اروپا کې تر روسیې او په افریقا کې د شمالي افریقا تر دښتو پورې رسېدل. ټوله نړۍ اسلامي ښکارېده او مسلمانان یو نه ماتېدونکی قدرت ګڼل کېده.

په فارس کې صفویانو د خپلې خوښې له مخې خپل شاهي قدرت ساته. د کربلا د ویرجنې پېښې د ماتم نمانځنې مراسمو په دې وخت کې یوه بله بڼه ځانته غوره کړه. په داسې حال چې ترانه ویونکو به په غمجنې او احساساتي بڼې سره د کربلا داستان وایه، د خلکو مخونه به له اوښکو لانده وو او سینه او سر به یې واهه تر دې چې د دې کار له پاره یې له ځنځیر لرونکو چړو او تورو هم کار اخیست. په دې مراسمو کې د صفویانو دېری د امام حسین ﷺ د اصلي پیغام د هېرولو لامل شول او دا مراسم په یو ډول عبادتي مراسمو واوښتل.

د صفویانو او عثمانیانو دوو امپراتوریو مذهبي تعصباتو ته لمن ووهله او لکه څنګه چې په صفوي امپراتورۍ کې سنیان ځورېدل، همدغسې به شعیه ګان هم په عثماني امپراتورۍ کې ازارېدل.

دا تعصبات دومره ډېر شول چې صفویانو به ځینو صحابه کرامو ته کنځلی کول رواج کړل. د شاه اسماعیل صفوي له خوا د سنیانو (اهل تسنن) پر وړاندې د جهاد اعلان د بابرشاه د پاڅون او د هند مرکزیت ته د مغولیانو د امپراتورۍ د راتګ سبب شو.

له عثمانیانو سره د صفویانو اړیکې چندان جوړې نه وې؛ خو د غربي اروپا اړیکې له عثمانیانو سره عادي او په ځینو ځایونو کې بیخي ښې ښکارېدې. سلطان محمد فاتح چې د غرب د فرهنګ او تاریخ لېوال و، لومړنی عثماني پادشاه و چې له غرب سره یې فرهنګي اړیکې پیل کړې.

*هغه خپل کتابتون د جغرافیې، طب، تاریخ او فلسفې له کتابونو څخه چې له بېلابېلو ژبو ژباړل شوي وو، ډک کړ.* [1] د عثمانیانو پر مهال د نساجۍ، قالینو، کاشي، مرمرو او چرم صنعت ډېر پرمختګ کړی و او دا په کې وړاندې تللي وو چې اروپایان به د دا ډول صنایعو د زده کړو له پاره استانبول ته راتلل او د عثمانیانو مهم صادرات به یې اروپا ته همدا صنایع وو.

له اسلامي هېوادونو څخه د صلیبیانو تر ماتې وروسته، اروپا یو وار بیا په اقتصادي تنګۍ کې پاتې شوه او دا چې له اسلامي سرچینو څخه یې تمه پرې شوې وه، د نورو

---

1 .Pro. Dr. Mohamed El Gomati & Pro. Dr. Gunsel Renda; The Ottoman Empire and Europe: Cultural Encounter; p 2

ځمکو د نیولو په فکر کې شول. *انګلیسانو په هغه وخت کې ځان غوره وګاڼه او ځان یې د ځمکې پرمخ تر ټولو متمدن خلک وشمېرل، تر دې چې اولیور کرمول (Oliver Cromwell) خدای هم یو انګلیسي کس اعلان کړ*[1].

انګلیس له ښه سمندري قدرت څخه برخمن و او په سمندري څېړنې یې پیل وکړ. د انګلیسانو بېړۍ د کروستوفر کولمبس په مشرۍ د مایاها (اوسنۍ امریکا) ځمکو ته ورسېدې. د غرب وهلو ډېری مؤرخینو د ادعا پرخلاف، امریکا ته د کولمبس رسېدل د یو نوي ځای د موندلو هڅه نه وه، بلکې د یو ظالمانه استعمار پیل و چې د میلیونونو امریکایانو د ټول وژنې لامل شو.

امریکا ته د کولمبس تر رسېدو وړاندې مسلمانانو له امریکا سره ښې سوداګریزې اړیکې لرلې او ځینې اصیل امریکایان په اسلام هم مشرف شوي وو. *یو چینایي سند د سنګ د اسنادو (Sung Document) په نوم د مسلمانانو بېړۍ چلوونکو سمندري سفر د مو-لان-پی (امریکا) ځمکې ته ثبت کړی دی*[2].

امریکا ته د کولمبس رسېدل چې خلک یې د دې هېواد کاشف بولي، د خلکو د سرچینو د نیولو له پاره یوه سریزه وه چې د هماغه وخت اروپایانو په پرتله یې ښه ژوند لاره. هغه وخت به چې اروپایانو په هر هېواد حمله کوله، وینه تویول، عامه وژنه، ظلم، غلا او بربادي به یې کوله، چې له امریکا یې هم ورته چلند وکړ. ستنرد لیکي: *اروپایي ملېشې جنوب شرق (امریکا) ته سفر کاوه او هر چېرې چې تلل ټول وژنې او ناروغۍ (د ناروغیو د خپراوي له لارې یې وژنې کولې) انتقالول.*[3] امریکا ته په رسېدو سره سمدستي انګلیسانو د امریکا اصیل خلک تقریباً ټول ووژل. ورو ورو یې ځای د اروپایانو سپین پوستو د هندي نژاد د سور پوستو او نورو بومي قبیلو ونیو. *سره له دې چې د اصیلو امریکایانو د قربانیانو دقیق ارقام مشخص نه دي؛ خو اټکل کېږي چې امریکا ته د کولمبس له رسېدو څخه د سلو او یو سلو پنځوسو کلونو تر منځ له ۸۰ څخه تر ۹۵ سلنې پورې اصلي امریکایان ورک شوي دي.* [4]

د ځینو اسلامي مشرانو له تېروتنو سره سره بیا هم مسلمانانو له یو زر کلن او پیاوړي تمدن څخه خوند اخیست او غربي اروپا له فیوډالېزم، د کلیسا له ظلم او د وخت په

---

1. David E. Stannard; American Holocaust: Columbus and the Conquest of the New World; p 98

2. Abdus Sattar Ghazali; Chronology of Islam in America 1178-2011; p 2

3. David E. Stannard; American Holocaust: Columbus and the Conquest of the New World; p 102

4. Nanthan Nunn and Nancy Qian; Journal of Economic Perspectives; p 165 (The Columbian Exchange: A History of Disease, Food, and Ideas)

تیارو کې رنځېده. اروپایان د سترو شوو حاکمو نظامونو د بې عدالتیو تر پېرپېو زغم وروسته د اسلامي پیاوړي تمدن په لیدو سره د بدلون غوښتونکي وو. په عین حال کې د فرېمېسن پټه ټولنه هم د پراختیا په حال کې وه او ختیځه اروپا کې تر ټولو اغېزمنه ډله ګڼل کېده. انګلیسي مؤرخ مورس رابرټس لیکي: *له ۱۷۵۰ م کال څخه تر ۱۸۳۰ م کال پورې پټې ټولنې په پراخه توګه په غربي اروپا کې موجودې وې او هڅه یې کوله چې مهمې پېښې په واک کې ولري.*[1] *د دې پټو ټولنو ځینو غړو خپلې خاطرې لیکلې دي. د بېلګې په توګه؛ ګیاچینو پراټې لیکي: موږ ډېر ژر سره بلد شوو (پټې ډلې سره یو ځای شوې) او یوه سیاسي رهبري مو جوړه کړه چې په مرسته یې ټولې هغه سیاسي پېښې چې په راتلونکو څو کلونو کې به د اروپا په لویه وچه کې جوړېږي اړیکې سره ولري (سترې سیاسي پېښې مو مهار کولې)*[2].

په ۱۷۷٦ م کال د فرېمېسنري په لوړو کړیو کې یوه ډله جوړه شوه چې د روڼ اندو (Illuminati) په نوم پېژندل کېده؛ د دې ډلې لاندې طبقې هم د نورو سیاسي ډلو په څېر د مشرانو له اجنډاګانو بې خبره وو او له هغوی څخه یې د لښکر د توروالي په توګه کار اخیست.[3]

د امریکا د لویې وچې خلک چې د انګلیس د استعمار تر واکمنۍ لاندې یې ژوند کاوه، له بې عدالتۍ، ظلم، نژاد پالنې، غلامۍ او ارستوکراسۍ څخه رنځېدل او کرار کرار د انګلیس د شاهي ضد احساس مخ پر وړاندې تلل. په امریکا کې مستعمرو پر یو بل پسې د خپلواکۍ اعلان کاوه او انګلیس هم غبرګون ښودلو ته تیار شو تر دې چې له دې مستعمرو سره یې سوداګریزې اړیکې بندې کړې او د دې مستعمرو سوداګریزو بېړیو ته د دښمن د بېړۍ په سترګه کتل کېدل.

د امریکا د انقلاب له پیلېدو سره انګلیس د پوځ له کمښت سره مخ شو او له اروپایي قدرتونو څخه یې د کرایي پوځ (هغه مهال په غرب کې د نظامیانو کرایه کول رواج وو) غوښتنه وکړه. له جرمني څخه د پوځ په کرایه کولو سره، ان هغه خلک چې د انګلیس شاهي حکومت ته وفادار وو، د انګلیس د استعمار پر ضد او له انقلابیونو سره یو ځای شول. امریکایانو د انګلیس د پوځ پر وړاندې، د جنرال جورج واشنګټن تر قوماندې لاندې له انقلابیونو څخه یو پوځ تیار کړ. دا پوځ د بوسټن پر نیولو بریالی شو او د انګلیس دې ماتې د امریکا خلک د خپلواکۍ پر لور هیله من کړل.

1. Jim Morris Roberts; The Mythology of the Secret Societies; p 347

2. Japp Kloostermal; The Rise and Fall of Secret Societies; p 7

3. Japp Kloostermal; The Rise and Fall of Secret Societies; p 5

د ۱۷۷٦ م کال په لومړیو کې د سم قضاوت (Common Sense) په نوم یوه کوچنۍ رساله د انقلابیونو له لوري چاپ شوه چې په کې د امریکایان خپلواکۍ ته هڅول شوي وو. دې رسالې ډېر ژر شهرت ترلاسه کړ او شاوخوا پنځه لکه نسخې وپلورل شوه او په همدې کال د ټولو مستعمرو د ازادۍ د اعلان او د امریکا د متحده الایاتو د جوړېدو لامل شوه.

په فرانسه کې د ۱۷۸۹ م کال په جولای میاشت کې ۸۰۰۰ تنو پارسیانو چې ښځې او نارینه په کې وو په یوه دولتي زندان چې باستېل نومېده حمله وکړه. شپاړلسم شاه لویس چې قصر ته ورسېد؛ له پېښې خبر شو، چیغې یې وکړې او ویې پوښتل، ایا دا یو پاڅون دی؟ یو حیرانوونکی ځواب یې واورېد: نه، دا یو انقلاب دی.

د باستېل د زندان په ماتې سره، خلکو په ټوله فرانسه کې انقلاب پیل کړ. شپاړلسم شاه لویس هم وېرېدلی و او خلکو هم د بهرنیانو له حملې وېره لرله. نو له همدې امله پادشاه په واک کې پاتې شو او په بدل کې یې هغه اصلاحات چې د خلکو له خوا غوښتل شوي وو او بشري حقونه په کې شامل وو، پادشاه ته وړاندې شول، خو د پادشاه له خوا رد شول.

انقلابیون په کلیسا کې د اصلاحاتو غوښتونکي وو او کلیسا یې له سیاست څخه لرې غوښته. نو له دې امله کلیسا هم د انقلابیونو پر وړاندې له پادشاه سره یو ځای شوه. په ۱۷۹۱ م کال ملي شورا (Natianal Assembly) نوی اساسي قانون تصویب کړ چې په کې د پادشاه صلاحیتونه راکم شوي وو. ځینې نورو اروپایي پادشاهانو لکه د جرمني او اتریش په څېر د ګواښ احساس وکړ او او د شپاړلسم لویس د بېرته مطلقه واک د ترلاسه کولو له پاره ورسره یو ځای شول. د جګړې په پیل کې انقلابي فرانسویانو ماتې وخوړه او د کمون پاریس (Paris Commune) په نوم یې یوه بله ډله جوړه کړه چې دې ډلې شپاړلسم لویس بندي کړ.

هغوی شاهي مجلس د شاهي سېستم په منحلولو مجبور کړ او ویې غوښتل چې یوازې سړي به د دولت او حکومتولۍ د سېستم په جوړولو کې ونډه اخلي. کمون پاریس د قانون جوړونې مجلس په لاس کې واخیست او د ښاري بشري حقونو قانون یې تصویب کړ چې ځینې مادې یې په لاندې توګه دي:

- د بیان ازادي د هر چا حق دی او هر څوک کولای شي په خپلواکه توګه لیکل او ویل وکړي.
- د هرې سیاسي ډلې موخه باید د بشر د حقونو له پاره له قانون سره سمه وي. په دې حقونو کې ازادي، د مالکیت، امنیت او د ظلم پر وړاندې د

مبارزې حقونه شامل دي.

- په ازادۍ کې ټول هغه کارونه شامل دي چې نورو خلکو ته په کې زیان ونه رسیږي.

کمون پاریس چې د واک خاوند شوی و، په افراطي شکل له پادشاه او پلویانو څخه یې د غچ اخیستنې په لټه کې و او په ۱۷۹۲ م کال یې پادشاه اعدام کړ. د پادشاه تر اعدام وروسته د اتریش، جرمني، هسپانیې، پرتګال، انګلیس او روسي اتحاد په فرانسې حمله وکړه. فرانسویانو له دې حملې څخه د مخنیوي له پاره د عامه امنیت د کمېټې په نوم یوه ۱۲ کسیزه ډله جوړه کړه چې له فرانسې څخه په دفاع بریالۍ شوه. د بهرنیو وېرو د له منځه تلو وروسته کمون پاریس د ننیو بلواګرو په ټکولو پیل وکړ. هغوی د کلیسا ډېر غړي ووژل او په هغو ښارونو کې یې ټول وژنه وکړه چې بلوا په کې وه. یو جرمني شاهد له دې ټول وژنې خپله خاطره داسې لیکلې: ډېر کورونه یې وسوځول، ټولې کلیساوې او ودانۍ یې ورانې کړې.

کله چې زه یو وژونکي ځای ته ورسېدم، نو د خلکو وینې چې څو ساعته مخکې وژل شوي وو، په سړکونو روانې وې، ما د کمون پاریس ډلې ته وویل: *دا به ښه وي چې د ټولو انسانانو وینې له سړکونو پاکې کړو، یوه وویل: ولې یې پاکې کړو؟ دا د ارستوکراتانو او بلواګرو وینې دي، سپیان یې باید وڅښي.*[1]

*تاریخي واقعیتونه ښیي، په داسې حال کې چې دا انقلابونه (د فرانسې او امریکا انقلاب) د ټولنې له منځه راپیل شوي وو؛ خو ډېرو مشرانو او مخکښانو یې له فریمېسنانو سره اړیکه لرله او د دې انقلابونو پایله چې وروسته یې بې خدای توب او غربي سیکولرتوب راوور، د فریمېسنانو پلانونه وو. فریمېسنري د امریکا په ځوانو متحده ایالاتو او د اتلسمې پېړۍ په اروپا کې مهم رول ولوباوه.*[2] *ځکه چې د فرانسې د انقلاب په لومړیو نظریو کې د ځینو فریمېسنانو لاسوهنه څرګنده وه.*[3]

فریمېسنانو په فرانسې اکتفا ونکړه او په ټوله اروپا او نړۍ کې د خپلو نظریو د پراختیا او خپراوي غوښتونکي وو. کرن لوییس لیکي: د *نولسمې پېړۍ په لومړیو کې هسپانوي پېیو ټولنو پادشاه اووم فردیناند د اساسي قانون پر تعدیل اړ کړ.* [4]

1. Charles Downer Hazen; The French Rebolution and Napoleon; p 340

2. Japp Kloostermal; The Rise and Fall of Secret Societies; p 2

3. Ibid; p 6

4. Richard Clogg; The Struggle for Greed independence; essay

ویل کېږي چې د امریکا د متحده ایالاتو له بنسټ اېښودونکو څخه شپږ تنه چې د امریکا لومړنی جمهور رییس جنرال جورج واشنګټن هم په کې و، د فرېمېسن د پټې ډلې غړي وو.

د اتلسمې پېړۍ په تاریخي مزل کې د ډېرو تاریخي کتابونو پر خلاف، دلته نه له کوم حکومت، سیاسي حرکت او نه هم کومې اېډیالوژۍ یادونه کېږي، بلکې له یو اروپایي یهود څخه چې میر راتشچایلډ (Mayer Amschel Rothschild) نومېږي او وروسته یې کورنۍ د نړۍ سیاسي اقتصادي تاریخ ته بدلون ورکړ یادونه کېږي. میر راتشچایلډ یو عادي صراف و خو ځان غوښتونکی خوی یې لاره، د جرمني د فرانکفورټ په کوڅو کې پر سوداګرۍ بوخت و. له صرافۍ پرته یې د هغه وخت د نورو یهودیانو په څېر سود هم کاوه. د هغه وخت یهودیان په اروپا کې له ښه ټولنیز موقف برخمن نه وو او میر راتشچایلډ درک کړې وه چې د خپلې سوداګرۍ د پراختیا له پاره سیاسي قدرت ته هم اړتیا لري.



د مېسنانو په واسطه د جورج واشنګټن د یادګار مېسني ودانۍ

د هغه وخت شاهانو د ځانګړي مصروفیت د نه لرلو او ستړیا له امله د سکو له کلکسیونونو د جوړولو او عتیقه اثارو سره مینه لرله. میر راتشچایلډ له موقع ګټه واخیسته او د فرانکفورت له پادشاه او د هغه وخت د نړۍ له شتمن مشر وطلیم سره یې د اړیکو جوړولو له پاره د عتیقه اثارو په سوداګرۍ پیل وکړ او د عتیقه اثارو د یوې ښې مجموعې په موندلو او د فرانکفورت شاه وېلیم ته په وړاندې کولو سره یې له هغه سره دوستانه اړیکې جوړې کړې. دی لومړنی یهودي و چې په فرانکفورټ کې یې له کومې ستونزې پرته سوداګري کوله. کارل ورنر لیکي: د *نولسمې پېړۍ*

*په لومړیو کې د پادشاه ویلیم او میر راتشچایلډ یهودي تر غیر معمولي او عجیبې ملګرتیا بل څه نشم لیکلی.*[1]

*د وخت تېرېدو میر راتشچایلډ ته موقع برابره کړه څو ډېرې پیسې یې راټولې کړي او دومره یې پیدا کړې چې د فرانکفورټ د بازار ټولې پیسې یې په جیب کې وې*[2] او د زامنو په رالوېدو سره یې د سوداګرۍ فکر پراخه شو. میر راتشچایلډ او زامنو یې په ځانګړې توګه د کورنۍ نابغه نتن رانتچایلډ (Nathan Mayer Rothschild) ډېر ژر د شاهي کورنیو او بانکوالو تر منځ د دلالانو په توګه مقرر شو.

د وخت په تېرېدو سره دا کورنۍ دومره مسلکي شوه چې د شاهانو او بانکوالو تر منځ د معاملو پر مهال شاهان نه پوهېدل چې دوی له بانکوالو سره څه ډول معامله لري. دې پټې معاملې بانکوال خفه کړل او هڅه یې وکړه چې د راتشچایلډ کورنۍ له ځانه لیرې کړي، خو پرې ناوخته وه او دا کورنۍ د هغه سیاسي او اقتصادي قدرت له مخې چې ترلاسه کړی یې و، ټوله لوبه یې برعکس کړه او ډېر ژر زیات بانکونه د راتشچایلډ د کورنۍ لاسته ورغلل او د راتشچایلډ کورنۍ په اروپا کې د یوې شتمنې کورنۍ په توګه رابرسیره شوه.

دا چې دا کورنۍ څه وخت او څنګه له فرېمېسنانو سره یو ځای شوه، دقیق معلومات نشته، خو اوس د فرېمسنرۍ د هرم د قدرت د غړو (Illuminati) په تر ټولو لوړ ټکي کې ګڼل کېږي.

په نولسمه پېړۍ کې اروپا کرار کرار پیاوړې شوه او د اسلامي نړۍ خپل یووالی یې له لاسه ورکړ او کمزورې شوه. انګلیس د ګټه اخیستنې د اقتصادي سیاست د لرلو له امله، په صنعت باندې پانګه اچونه پیل کړه. په صنعتي سکتور پانګونه د ځینو مهمو کشفیاتو لامل شوه چې تر ټولو مهمه هغه یې د بخار ماشین و. د انګلیس او نورو اروپایانو پرخلاف، مسلمانان په داخلي کشمکشونو، د قدرت د ساتنې له پاره پر هڅو، او د قدرت، علم او اقتصاد پر انحصار بوخت وو چې دا کار یې د اسلام له اصولو د لرېوالي او د غربي نوي په پښو درېدلي تمدن په پرتله د وروسته والي لامل شو.

د فرانسې انقلاب او تر هغې وروسته ځینې جریانات د ځینو نوو تاریخي پېښو د منځته راتګ لامل شول چې بشریت په خوا تر دې تجربه کړي نه وو. ازادۍ یو نوی تعریف غوره کړ (یانې هر کار چې کولی شې خو چې بل ته زیان ونه رسوې). د ازادۍ تر ټولو ریشخند تعریف همدا دی؛ ځکه چې دا ضرر یوازې فزیکي ضرر و او دا لنډ

---

1. Karl S. Woerner; Five men of Frankfort; p 25

2. Ibid; p 42

مهاله دی. د بېلګې په توګه: يو متاهل مېړه او ښځه له مجرد بل سړي او ښځې سره د اړيکو له خپلواکۍ برخمن دي، په داسې حال کې چې دا کار فزيکي ضرر او لنډمهاليتوب نه لري؛ خو د کورنۍ د اساسي بنسټونو د له منځه تلو، د کورنۍ مينې د کمېدلو سبب کېږي او په ټوله کې کورنی سېستم له منځه وړي او په پای کې د کورني سېستم په خرابېدو سره، ټولنه بې ارزښته او بې لارې کېږي.

سېکولرېزم (Secularism) يوه بله پديده ده چې دين له سياست څخه لرې ساتي او په شخص پورې يې تړي. نور يوازينی خدای حکمروا نه ګڼي او بشري قوانين د الهي قوانينو ځايناستي بولي چې پايله يې بې خدايه سياسي سېستمونه او ټولنې دي. په سيکولر (بې خدايه) ټولنو کې بايد د قدرت او نفوذ هرم ته د رسېدو له پاره له ديني باورونو او عقايدو تېر شي او ديني عقايد او دين فقيرانو او لاندې خلکو ته پاتې کېږي. په دې حالت کې له دين څخه د خلکو اخيستنه بدلون کوي او له ديني باورونو او دين سره پاتې کېدل او وفا ورته لرل د وروسته پاتې کېدو، فقر او ټيټ پاتې په نوم دي او دين په ټولنه کې خپل ارزښت له لاسه ورکوي.

ملتپالنه د نوي غربي په پېښو دربدلي تمدن يوه بله پايله ده. په ملت پالنه کې د خدای ﷻ ځمکه د ملتونو په ځمکو بدلېږي چې د ملتونو ګټو په کې د بشريت پر ګټو غوره والي ورکول کېږي. دا پديدې او ځينې نورې الحادي پديدې د عصري غربي تمدن د رامنځ ته کېدو باعث شوې چې د روسيې يو تکړه عالم الکساندر دوګين او د اسلام تکړه عالم شيخ عمران نظر حسين يې شاهي دجال ګڼي.

*کله چې د دينونو اصل ته ورګرځو؛ نو په ډېر ساده توب سره وينو چې پسامدرنيته (نړيوال کېدل، پسالبېرالېزم او پسا صنعتي ټولنې)، شاهي د سيح ضد يا دجال دی.*[1]

*د متفکر مغز دجال د غرب د بې خدايه تمدن رامنځته کېده وو او لکه څنګه چې د دجال د دوو سترګو تر منځ د کافر کلمه ليکل شوې ده، همداسې د دې تمدن په څېره کې کفر حک شوی دی.*[2]

د دجال مطالعه د اسلامي موضوعاتو او وروستۍ زمانې يوه مهمه موضوع ده چې له بده مرغه اسلامي علماوو ورته ډېره پاملرنه نه ده کړې او ډېری مسلمانان په خپلو ذهنونو کې له دجال څخه ناسم انځور لري. د حضرت محمد ﷺ د وينا له مخې، هېڅ

1. Alexander Dugin; The fouth Political theory; ch 1

2. Imran N. Hosein; An Islamic View of Gog and Magog in the modern world; p 78, 79

*یو پیغمبر نه دی مبعوث شوی، مگر دا چې خپل قوم یې د دجال له فتنې څخه خبر کړی نه وي.*[۱]

دجال ته په مسیحیت کې د Anti-Christ یا د مسیح ضد، په یهودیت کې د Erev Rav، په اسلام کې د مسیح الدجال یا دروغجن مسیح او ان په هندوییزم کې د کالي یوگام نوم کارول شوی دی. *دجال په نړۍ کې د څلوېښتو ورځو له پاره فتنه کوي چې یوه ورځ به یې زموږ د عادي یو کال، یوه ورځ یې د یوې میاشتې او یوه ورځ یې د یوې اونۍ او ۳۷ ورځو په څېر وي.*[۲] معاصرو فزیک پوهانو، مادي نړۍ په دریو مکاني او یو زماني بُعد (اوږدوالي، پلنوالي او لوړوالي) کې تعریف کړې ده.

د انشټین د نسبیت د تیورۍ او په دې تیورۍ باندې د فزیک د علماوو له څېړنې څخه وروسته ساینس پوهان په دې باور دي چې په ځمکه کې له اسمان سره وخت توپیر کوي او سره یو شان نه دي او الله ﷻ هم په قران کې یادوي چې زموږ یوه ورځ ستاسو (د ځمکې مودې) د زرو کلونو په څېر ده. الله ﷻ اووه طبقې اسمان پیدا کړی دی او په هره طبقه کې یې وخت او ځای ځانگړي تعریفونه لري چې د ځمکنې وخت او ځای له تعریفونو سره توپیر لري. زموږ په مادي نړۍ کې وخت او ځای د یو بل پوره کوونکي دي. نو له دې امله هغه څه چې زموږ په وخت کې په فزیکي توگه نه وي، زموږ په ځای یا مکان کې هم په فزیکي توگه موجود نه دی.

دا چې په حدیث کې، د دجال درې لومړۍ ورځې زموږ په زماني سېستم کې یادې شوې نه دي، کولای شو ووایو چې دجال په لومړیو دریو ورځو کې زموږ په مادي نړۍ کې په فزیکي توگه نه وي او یوازې په پاتې اووه دېرش ورځو کې چې زموږ (مکاني او زماني) د ورځو په څېر وي، هغه لیدلی شو. په لومړیو دریو ورځو کې چې دجال زموږ په مکاني او زماني سېستم کې موجود نه وي، خپلې فتنې د خپلو پیروانو په مرسته خپروي او پیروان یې د شیطانانو په مرسته په تماس کې وي.

خدای ج فرمایي: *ووایه، د خلکو پروردگار، شاه او معبود ته د پټېوونکي وسوسه اچوونکي له شر څخه پناه وړم چې د خلکو په زړونو کې وسوسه کوي، که انسان دی او که جنیات دي.*[۳] الله ﷻ د خپل کتاب په پای کې موږ ته د شیطاني جنیاتو او شیطان صفته انسانانو له وسوسو څخه خبرداری راکوي؛ نو همدا لامل دی چې شیطان د

---

۱. صحیح بخاري؛ نهم ټوک؛ ۸۸ کتاب؛ ۱۴۱ حدیث

۲. صحیح مسلم؛ ۴۰۷۵ حدیث

۳. الناس سورة؛ قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ (١) مَلِكِ النَّاسِ (٢) إِلَهِ النَّاسِ (٣) مِنْ شَرِّ الْوَسْوَاسِ الْخَنَّاسِ (٤) الَّذِي يُوَسْوِسُ فِي صُدُورِ النَّاسِ (٥) مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ (٦)

انسانانو په وسوسه کولو قادر دی. په حدیث کې راغلي دي چې د *دجال پر مهال به شیطانان زیات (پرمختګ) وکړي.*[1] ډېوېډ کاریکو په هغه کتاب کې چې د فرېمېسنانو اړیکه یې له شیطانانو سره په اثبات رسولې ده، داسې لیکي: *له ۱۹۷۰ م کال راهیسې له ۵۵۰ داسې کسانو سره مخ شوی یم چې د شیطانانو په واسطه نیول شوي وو او ټول د فرېمېسنرۍ په لوژونو کې کاري شالید (سابقه) لري.*[2] کله چې دجال لومړۍ درې ورځې تېرې کړي بیا په مادي نړۍ کې راڅرګندېږي. خپل ځان به مسیح عیسی خلکو ته ور وپېژني.

له دې امله حضرت محمد ﷺ هغه مسیح الدجال نومولی دی. شیخ عمران حسین په دې باور دی چې *دجال به په لومړیو دریو ورځو کې د هرې ورځې له پاره ځانګړی عملیاتي مرکز ټاکي چې په لومړۍ ورځ لویه امپراتوري (ورځ د کال په څېر) یا انګلیستان د دجال په استازیتوب زموږ په مادي نړۍ کې د هغه تر راتګ پورې په فتنه پیدا کولو او د نړۍ پر تیارولو عمل کوي.*[3] په اخره زمانه کې د درې واړو اسماني دینونو پیروان د مسیح عیسی ﵇ په تمه دي.

په داسې حال کې چې اسلام او مسیحیت د عیسی ﵇ بیا راتګ ته د نړیوال حکومت د عدل د راوستو له پاره په تمه دي. یهودیت، عیسی ﵇ دروغ ګڼي او د داسې مسیحا په تمه دي چې تر اوسه راغلی نه دی او د هغه په راتګ سره به د تورات له وعدو سره سم د یهودیت زرینه دوره پیلېږي او د یهودیت نړیوال حکومت چې له بیت المقدس او د سلیمان ﵇ له عبادت ځای څخه کنټرولېده، تاسیس شي.

یهودیانو د عیسی ﵇ په دروغ ګڼلو سره د دجال په واسطه خپلې دوکې ته لار برابره کړه او دجال کولای شي خپل ځان ورته د هغوی مسیح معرفي کړي او د دې یهودیانو په مرسته خپلې حیلې او فتنې خپرې کړي او ځان په هغوی د مسیح په توګه ومني. دا حالت حضرت محمد ﷺ په ډېره ښه توګه اټکل کړی دی: *د دجال ډېری پیروان به یهودیان وي.*[4]

د دجال په لومړۍ ورځ (د برتانیې د امپراتورۍ پر مهال) په سویلي افریقا کې د دجال د پیروانو له پاره یوه مهمه پېښه وشوه چې دجالي قدرت یې نور هم زیات کړ. په جنوبي افریقا کې یو ماشوم لوبې کولې چې پښه یې له یوې ځلېدونکې تیږې سره

---

۱. کنز الاعمال؛ لسم ټوک؛ ۲۱۴ مخ

2. David L. Carrico; The Egyptian-Masonic-Satanic Connection; p 136

3. Imran N. Hosein; Surah Al – Kahf and Modern age; p 74

٤. صحیح مسلم؛ ۷۰۳۴ حدیث

ولګېده. دې ماشوم دا تيره کورنۍ ته يوړه. کورنۍ يې د قوم مشر او هغه بالاخره دولتي چارواکو ته وښوده او د سويلي افريقا دولت تر يو لږ څېړنو وروسته درک کړه چې دا ډېره الماس ده. د دومره سترو الماسو پيدا کېدل د الماسو د يو ستر نړيوال کان (کمبرلي) د پيدا کېدو او کشفېدو له پاره يوه زمينه برابره کړه. د دې ستر کان را ايستنه په ډېر لږ وخت کې د راتشچايلډ د کورنۍ اړوند کمپنيو له خوا انحصار شوه.

مشهور مرغلرپېژندونکی جينز (Janse) ليکي: *د کمبرلي کان په را ايستنه کې تر ټولو سترې کمپنۍ فرانسوي کمپنۍ وې چې د راتشچايلډ د کورنۍ له خوا اداره کېدې.*[1] حضرت محمد ﷺ فرمايلي دي: *څمکه به خپلې خزانې دجال ته رابرسېره کړي. د کمبرلي د الماسو کان د ځمکې له خزانو څخه يوه خزانه وه چې د دجال د پيروانو له پاره را وويستل شوه.*[2] په ۱۹۱۴م کال د ۵ ببرلو په اندازه الماس له دې ځای څخه د راتشچايلډ د کورنۍ له خوا را وويستل شول او د هغوی لاس ته نه باورېدونکې پانګه ورغله. که د شيخ عمران حسين، الکساندر دوګين، داکټر رحيم پور ازغدي، شيخ ډاکټر محمد انصاري او نورو علماوو د ادعاګانو له مخې که غربي عصري تمدن د دجال تمدن وګڼو، نو د نړيوال حکومت جوړولو تياری، بيت المقدس د دې حکومت د پلازمېنې کېدو او د سليمان عبادت ځای چې د اقصی مسجد په شاوخوا کې د شاهي تخت په څېر دی، دا اجنډاوې هم په همدې توګه دي.

يهوديان لومړني کسان دي چې د دجال د دوکې په جال کې لوېدلي او هغه يې د رښتيني مسيح په توګه منلی دی او هغه ته کار کول يې رښتيني مسيح ته کار کول ګڼلي دي. د دروغجن مسيح د اجنډاوو د عملي کولو او هغه ته د نړۍ د تيارولو له پاره بايد يهوديان د يووالي دين په ځانګړې توګه اسلام کمزوری او بالاخره له منځه يوسي. د هغه وخت دوه سترې امپراتورۍ وې چې د يوازيني خدای ﷻ عبادت يې کاوه، يوه يې د ارتودوکس مسيحي امپراتوري (تزار) او بله يې د اسلام ستره امپراتوري (عثماني) وه. دا دواړه امپراتورۍ د دجالي هېواد د اجنډاوو او په پاکه ځمکه کې د يهودي دولت د راوستلو تر ټولو ستر خنډ او دېوال ګڼل کېدې. د دجال پيروانو د دومره سترو اجنډاوو د عملي کولو له پاره يوازې په يهوديانو اکتفا ونکړه، نو ځکه يې د صهيونېزم په نوم يو بل حرکت پيل کړ چې د فرېمېسنرۍ يوه بله نسخه ده.

د لومړي ځل له پاره يې د بشريت په تاريخ کې د يهودي-مسيحي اتحاد جوړ کړ چې له دې وړاندې ناشونې ښکارېده. ليکوال او خبريال ډنمارکي الاصله اروپايي

1. A.J. A. (Bram) Janse; Gems & Gemology; p 237

۲. صحيح مسلم؛ ۷۰۴۱ حديث

يهودي هرزل تئودور له پنځوسو ډلو يهودو څخه د يهودو علماوو او مفکرينو يو ۳۰۰ کسيز کنفرانس جوړ کړ. دا کنفرانس په پوره پټه توګه د سويس هېواد په بال ښار کې په ۱۸۹۷م کال وشو.

تئودور هرزل د سياسي وضعې بدلونونو ته په پام سره د غرب په ګټه او ختيځ په زيان د يو يهودي هېواد د جوړېدو خبرې وکړې او دا مسئله يې تر جدي څېړنې لاندې ونيوه او په هماغه کال يې د يهودو د دولت په نوم يو کتاب وليکه چې په کې د يهودو له قوم څخه غوښتل شوي وو چې تاسو هم بايد د نورو ټولو مليتونو په څېر چې د ځان له پاره يو دولت او هېواد لري، دولت او هېواد ولرئ چې بايد د يهودو دولت د فلسطين پر ځمکه جوړ شي.

د صهيونېزم حرکت، لکه څنګه چې له نوم يې څرګندېږي همکار سازمان يې فرېمېسنريو او يوازې يوه موخه يې لرله چې د صهيون تپه چېرته چې د سليمان ﷺ عبادت ځای و ونيسي او له دې عبادتځای څخه د دجال د نړيوال حکومت د جوړولو له پاره کار واخلي.

په دې حرکت کې يوازې يهوديان نه وو بلکې ډېر قدرت لرونکي مسيحيان او ان ځيني مسلمان ښودونکي اشخاص هم شامل وو. دا يهودي-مسيحي اتحاد د قرانکريم وړاندوېينه هم کړې ده. مسلمانان يې له دې اتحاد سره د دوستۍ او همکارۍ نه په کلکه منع کړي دي او هغه څوک چې دوستۍ ته يې تن ورکوي د محمد ﷺ له امت څخه بهر کېږي.[1] په رسمي بڼه (د صهيونېزم نظريه له کلونو راهيسې د دې دجاليانو په زړونو کې موجوده ده) د صهيونېزم د حرکت پيل کېدل د فرعون د جسد له پيدا کېدو سره برابر دي چې دا د الله ﷻ له لوري دې فرعونيانو ته يوه خبرتيا او نښه ده. الله ﷻ فرمايي: *اوس به نو موږ يوازې ستا جوثه (مړی) وژغورو، څو د هغو کسانو له پاره چې په تا پسې دي، يو عبرت وي او له شک پرته زموږ له نښو څخه ډېر خلک بې خبره دي.*[2]

نو له دې امله قرانکريم د فرعون د جسد په اړه يوه حيرانوونکې وړاندوېينه کړې ده او د هغه پيدا کېدل يې د الله ﷻ يوه خبرتيايي نښه ګڼلې ده. دا کشف د يهوديانو او د صهيونېزم د حرکت له پاره يوه خبرتيا ده چې د فرعون د جسد له پيدا کېدو سره سم

---

۱. المائده سورۀ؛ ۵۱مه ايۀ؛ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ امَنُوا لَا تَتَّخِذُوا الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى أَوْلِيَاءَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ وَمَنْ يَتَوَلَّهُمْ مِنْكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ (۵۱) ژباړه: اې مؤمنانو! يهوديان او عيسويان خپل ملګري مه نيسئ، دوی په خپلو منځو کې سره ملګري دي او که له تاسې څخه څوک هغوی خپل ملګري نيسي، نو بيا هغه هم په هماغو کې شمېرل کېږي. په دې کې شک نشته چې الله ﷻ ظالمان له خپلې لارښوونې څخه بې برخې کوي.

۲. سوره يونس؛ ايه ۹۲؛ فَالْيَوْمَ نُنَجِّيكَ بِبَدَنِكَ لِتَكُونَ لِمَنْ خَلْفَكَ ايَةً وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ النَّاسِ عَنْ ايَاتِنَا لَغَافِلُونَ ﴿۹۲﴾

خپره شوه. دا څرګنده ده چې د صهیونېزم د حرکت په جوړېدو کې د دجال متفکر مغز و.

مفهوم دا دی چې یهودیان د دجال په واسطه رهبري شوي دي او د داسې لارې پـه اوړدو کې حرکت کوي چې له الهي مجـازاتو او بربـادیو سـره مـخ کېـږي او د فرعـون پـه برخلیک به اخته کېږي. *د فرعون د جسد پیدا کېدل د فرعونیانو له پـاره سـرچپه شـمېر او د اخرالزمان نښودونکی دی.*[1]

د یهودو د دولت د پروژې د ترسره کولو له پاره تئـودور هـرزل د بـودیجې پـه راټولولـو لاس پورې کړ چې د راتشچایلډ د کورنۍ او نورو سترو یهودیانو له خوا د سترې پانګې پـه راټولولو بریالی شـو. هـرزل پـه دې پـانګې سـره وغوښـتل څـو وروسـتی عثمـاني خلیفـه عبدالحمید واخلي چې په بیت المقدس کې د یهودیانو له استوګنې سره موافقه وکړي. عبدالحمید د هرزل دې وړاندیز ته د توطئې په سترګه وکتل او په بیت المقدس کې یې د یهودیانو له ټولیزې استوګنې سره هوکړه ونکړه.

د عثمانیانو په څېر د روسیې تزاریان هـم د اروپـایي یهودیـانو د دجـالي اجنـډاوو پـر وړاندې ګواښ ګڼل کېـده؛ نـو ځکـه یـې د دې دوو امپراتوریـو د لـه منځـه وړلـو لـه پـاره نړیـوال پلانونـه ونیـول. پـه روسـیه کـې صهیونېسـتانو د ولادیمیـر لېنـین پـه مشـرۍ د بلشویک (Bolshevik) په نوم د کمونېسـتي انقـلاب نظریـې پـه روزنـې لاس پـورې کـړ. *لېنین د مور له خوا یهود و او یهودیانو د هغه په لومړنې سیاسي دفتر بانـدې واک لاره او د بلشویک په انقلاب کـې دویم مهم سړی چې لیئون تروتسکي نومېـده، ډېـره هڅـه یـې کوله چې د یهودو په ګټه خپل هویت او لېوالتیا پټه کړي*[2].

صهیونېستان په عثماني قلمرو کې هم د نفوذ په فکر کې وو او خپلو لاسپوڅو ته یـې په دې ځمکو کې روزنه ورکوله. په ترکیه کې یې مصطفی کمال (اتـاترک) او د عربـو پـه جزیره کې یې د حجاز حکمران شریف حسین او عبدالعزیز ابن سعود وټاکل، خو دا دوه امپراتورۍ دومره هم کمزورې نه وې چې د څـو تنـو او یـا یـو عـادي سیاسـي حرکـت پـه بغاوت سره له منځه لاړې شي. د دې دوو امپراتوریو د کمزورتیا له پاره دوی باید په یوې سترې جګړې کې برخه اخیستې وای؛ نو له همـدې امله صهیونېسـتانو لـومړۍ نړیوالـه جګړه پیل کړه.

په ۱۹۱۴م کال صهیونېستانو د اتریش – مجارستان ولیعهد فرانیس فردیناند وواژه او په دې کار یې روسیه تورنه کـړه. ډاکتـر هنـري مکـو وایـي: د *پټـو فرېمېسـنې لاسـتو* پـه

1. Imran N. Hosein; Jerusalem in the Quran; p 101-103

2. Kevin Macdonald; The Culture of Critique; p 53, 96

*واسطه د اتریش د ولیعهد (فردیناند) وژل کېدل چې وروسته په لومړۍ نړیوالې جګـړې واونښـت د ۲۰۰۱ م کـال د سـپټمبر یوولسـمې تـه ورتـه یـوه پـلان شـوی ښېښـه وه*[1]. د فردیناند په وژل کېدو سره اتریش – مجارستان له روسیې سره جګړه اعلان کړه. جرمنـي له اتریش - مجارستان سره ملاتړ وکړ او انګلیس د جرمني په مخالفت کې واقع شـو. پـه دې منځ کې هغه قدرت چې نه یې غوښتل په دې جګړه کې ښـکېل شـي، د عثمانیـانو امپراتوري وه؛ خو انګلیسانو له روسیې سره د یوې پټې هوکړې له مخې پـه قسـطنطنیې باندې د حکومت کولو وعده ورکړې وه او د روس سـمندري قـواوې د عثمانیـانو اوبـو تـه ننوتې چې د عثمانیانو غبرګون په جګړه کې د ښکېلتیا لامل شو. میلیم ولفـورټ لیکـي: *د جرمنـي او روسیې ترمنځ د ډیپلوماتیک کړکېچ په لړ کې، په ترکیې باندې د جرمنــې د حملې پر مهال کومه سیمه چې روسیې تر خپلې ولکـې لانـدې غوښـته، فرانسـې هـم د بالکان د لومړۍ جګړې په څېر په دې تاکید کاوه چې روسیه دې د جرمنـي پـر وړانـدې جدي اقدامات وکړي.د بېلګـې پـه توګـه سـزونوف (د روسـیې د بانـدنیو چـارو وزیـر) پـه بېلابېلو ځـایونو کــې ویلـي وو، کـه روسـیې لـه جرمنـي سـره د جګـړې خطـر منلـی و، د روسیې په پلویتوب به د انګلیس ملاتړ تضـمین شـوی و.*[2] پـه دې جګـړه کـې جرمنـي د لومړي ځل له پاره له داسې وسلو کار واخیست چې ساری یې تر دې وړاندې نه و لیدل شوی او نړۍ ترې بې خبره وه، د سمندري قواوو په مرسته یې انګلیس محاصره کړ.

د انګلیس محاصره او بې چاره کېدل هغه څـه وو چـې صهیونېسـتانو او د راتشچایلـډ کورنۍ ورته انتظار کاوه. صهیونېستان انګلیسانو ته په دې شرط ورغلل چې په فلسطین کې د یهودو د دولت له جوړېدو سره مرسته کوي؛ نو دوی به یې په بدل کې د جګـړې د ملاتړ له پاره امریکا راولي.

انګلیس دې وړاندیز ته لبیک ووایـه او سمدلاسـه هغـه اعلامیـه چـې د راتشچایلـډ پـه عنوان لیکل شوې وه او په کې په فلسطین کـې د یهـودو د دولـت د جوړېـدو لـه پـاره د انګلیس هر اړخیـزې مرسـتې یـادې شـوې وې، لاسـلیک شـوه. دا چـې صهیونېسـتانو د امریکا په سیاست کې ډېر درلود، نو په اسـانۍ سـره یـې وکـولای شـول چـې امریکـا پـه جګړه کې د انګلیسانو ملاتـړ تـه راولـي او لـه وعـدې سـره سـم انګلـیس د محاصـرې لـه ګواښه وژغورل شو.

---

1. Henry Makow PhD; Illuminati; p 185

2. William C. Wohlroth; The Peception of Power: Russia in the Pre-1914 Balance; p 367

*صهیونېستان په لومړۍ نړیوالې جګړې کې د امریکا د ننوتو تر شا وو. هغوی په جنګ کې د امریکا د ننوتو په بدل کې، له ترکانو څخه د فلسطین د نیولو تبادله*[1]، د انګلیس جاسوسانو شریف حسین ته د عربو پادشاهي او اووه ملیونه پونډه منلي وو او شریف حسین له خلافت سره بغاوت وکړ او د ازادۍ اعلان یې وکړ چې په ۱۹۱٦ م کال یې وکولای شول د جدې او مکې واک ترلاسه کړي او په پای کې په ۱۹۱۹م کال یې د مدینې ښار ونیو او بیا ورپسې حجاز هم د شریف حسین لاسته ورغی.

دویم شخص عبدالعزیز بن سعود و چې اولاده یې اوس هم د سعودي عربستان شاهان دي، هغه وخت یې په سیاست کې دومره اغېز نه لاره، نو له دې امله یې د ډېرو لږو پیسو پر وړاندې (میاشتنې معاش ۵۰۰۰ پونډه سټرلنګه) په انګلیسانو وپلوره او له خلافته یې سرغړونه وکړه.

په ۱۹۱۹م کال اسلامي خلافت د له منځه تلو په حال کې و او د انګلیس پوځ بیت المقدس ونیو چې دا د صهیونېستانو له پاره د خوښۍ یوه ستره ورځ وه. همدا کال و چې د یونان پوځ د ترکیې انتالیا ونیوه دا چې ترکانو د دوی په اړه د یونانیانو له کینې وېره لرله، نو ډېر ووېرېدل، همدا وه چې انګلیسانو ورته خپل وړاندیز وکړ او ځان یې د ترکیې ملاتړي وښود.

مصطفی کمال د ټولو قهرمانانو د قهرمان په توګه راڅرګند شو او یو کال نه و تېر شوی چې مصطفی کمال په ترکیه کې جمهوري اعلان کړه او خلیفه د عیسویت د پاپ په څېر په ترکیه کې هم له سیاسي او اجرایي قدرت څخه پاتې شو چې په ۱۹۲۴ م کال د ترکیې جمهوریت په پوره توګه خلافت له منځه یووړ. اسلامي نړۍ هم د اروپا په څېر په سیکولر او ملت پالونکو هېوادونو واوښته او نور په اسلام کې د یوه امت په نوم څه پاتې نه وو.

1. Henry Makow PhD; Illuminati; p 8

Foreign Office,
November 2nd, 1917.

Dear Lord Rothschild,

I have much pleasure in conveying to you, on behalf of His Majesty's Government, the following declaration of sympathy with Jewish Zionist aspirations which has been submitted to, and approved by, the Cabinet

"His Majesty's Government view with favour the establishment in Palestine of a national home for the Jewish people, and will use their best endeavours to facilitate the achievement of this object, it being clearly understood that nothing shall be done which may prejudice the civil and religious rights of existing non-Jewish communities in Palestine, or the rights and political status enjoyed by Jews in any other country"

I should be grateful if you would bring this declaration to the knowledge of the Zionist Federation.

Yours,
Arthur James Balfour

## دویم فصل
## استعمار او استثمار

### د لویدیځ راتګ

صهیونېستانو د قدرت لرونکو مسلمانانو د یووالي، یو موټیتوب او خلافت ترمنځ اړیکې په ښه توګه درک کولای شوای؛ نو ځکه یې په داسې طرحو چې د اسلامي نړۍ د مسلمانانو له ذهنونو څخه د خلافت فکر او خیال وباسي، کار وکړ.

یا هم په بل عبارت، د اسلامي نړۍ د سېکولر کولو او د ختیځ د بې خدایه ژوند په طریقې سره یې د اسلامي ژوند پر بدلون پیل وکړ.

هغه انقلابي لمنه چې د برېتانیې د مزدورانو په مرسته د ملت پالنې په نوم له وارداتي پدیدو سره په حجاز کې د عثماني خلافت پر وړاندې پیل شوې وه، سوریې، لبنان، عراق او فلسطین ته وغزول شوه او په کرار کرار برېتانوي او فرانسوي ځواکونو په ښکاره توګه بېلېدونکو مرستو ته ور ودانګل او عثمانیان یې د دغو ځمکو پرېښودو ته اړ شول. په ۱۹۱۹زېږدیز کال د برېتانیې ځواکونه د جنرال النبي تر مشرۍ لاندې د بیت المقدس په نیولو بریالي شول او نوموړي برېتانوي جنرال، بیت المقدس ته له ننوتو سره سم داسې څه وویل چې د هر هوښیار مسلمان فکر یې وخوځاوه، هغه وویل: *بالاخره نن صلیبي جګړې پای ته ورسېدې.*[1]

جنرال النبي دا خبرې له دې امله کولې چې پوهېده؛ له خلافت پرته د اسلام قدرت د بې غاښه پړانګ په څېر دی.

د عربو په جزیره کې د برېتانوي سیاست او د عثمانیانو ماتې، په فلسطین کې د یهودو د دولت له جوړېدو سره ستراتیژیکه اړیکه لرله. کله چې برېتانیه له عربو سره له عثماني ترکانو څخه د ازادۍ د اعلان په خبرو اترو بوخته وه، د روسیې د بهرنیو چارو وزیر د برېتانیې او فرانسې د شومو نقشو خبر عربو ته ورساوه چې د سایکس پیکاټ

1. Imran N. Hosein; The Caliphate The Hejaz and The Saudi-Wahhabi Nation-State; p 17

(Sykes-Picot) د لیکل شوي تړون له مخې په کوچنیو هېوادونو د منځني ختیځ تجزیه کېدل او نورې توطیې په کې شاملې وې.

د برېتانیې او اعرابو تړون داسې و چې له عثماني ترکانو څخه د اعرابو تر خپلواکۍ وروسته به د اعرابو پر مشرۍ د عربو په جزیره کې یو نوی خلافت راځي؛ خو د صهیونېستانو بادارانو او برېتانیې هېڅکله په اسلامي نړۍ کې د خلافت په نوم څه نه غوښتل.

له دې امله د برېتانیې مزدور شریف حسین چې په خپل نوم یې خلافت اعلان کړی و، تر دې اعلان څو میاشتې وروسته د یو برېتانوي مزدور په واسطه چې عبدالعزیز بن سعود نومېده، د روسیې د بهرنیو چارو د وزیر له خبرداري سره سره یې بیا هم له خپلو صهیونېستو بادارانو سرغړونه ونکړه، له حجازه وشړل شو او د سعود کورنۍ د برېتانیې په مرسته د سعودي عربستان مطلقه شاهي جوړه کړه.

بالاخره په اسلامي ښارونو کې د نوو ملت پالونکو هېوادونو په جوړېدو او په ترکیه کې د عثمانیانو له ماتې او په کې د خپل انگرېزي مزدور مصطفی کمال اتاترک په مرستې د سېکولر جمهوریت په جوړېدو سره د صهیونېستانو هماغه ارمان چې اسلامي نړۍ دې کمزورې او ټوټه ټوټه وي، پوره شو او په فلسطین کې د یهودو د دولت د جوړېدو زمینه برابره شوه.

*اسلامي علماوو د خلافت له منځه تلل او د نورو کوچنیو ملي دولتونو جوړېدل چې بنسټ یې د غرب د عصري تمدن سیاسي فکرونه وو، غیر اسلامي وګڼل. د الازهر پوهنتون علماوو د نوو شاهي او جمهوري هېوادونو جوړېدو ته بدعت ووایه او پرېکړه یې وکړه چې د اسلامي نړۍ له ګوټ ګوټ څخه علماء په یو کنفرانس کې د همدې مسئلې له پاره سره راټول کړي.*

*یاد کنفرانس د خلافت د یو وار بیا را ژوندي کېدو په پار د دې پوهنتون په انګړ کې په ۱۹۲۶ زېږدیز کال جوړ شو. له مصر، لیبیا، تونس، مراکش، سویلي افریقا، اندونیزیا، یمن، حجاز، فلسطین، عراق او پولنډ څخه اسلامي علماء دې کنفرانس ته رابلل شوي وو چې اجنډا یې د خلافت له تعریفه نیولې ان د خلافت د اړتیاوو، د رامنځته کېدو لارو چارو او په هماغه وخت کې له اسلامي شریعت سره سم د بېرته جوړېدو په اړه وه.*

*په دې کنفرانس کې د ځینو مهمو اسلامي هېوادونو لکه ترکیې، فارس، افغانستان، نجد، د روسیې مسلمانو ډلو او هندو چین څخه علماوو ګډون نه لاره. یاد کنفرانس په درېو کمېټو ووېشل شو چې د درېیمې کمېټې د منفي نظریې له امله بې پایلې پاتې*

*شو او دې منفي پایلې ته شیخ الزواهري د اسلام جنازه وویله.*[1] هغه یوازینی پریکړه چې ټولو کمېټو پرې هوکړه وکړه په همدې اړه د یو بل کنفرانس جوړېدل وو.

د ال سعود کورنۍ پوهېده چې اسلامي نړۍ به هغوی هېڅکله د خلیفه په توګه ونه مني؛ نو ځکه یې وغوښتل چې په مکه کې د اسلامي نړۍ د ناستې په نوم د الزهر کنفرانس جوړ کړي. د الازهر د کنفرانس پرخلاف په دې کنفرانس کې له فارس پرته د ډېرو اسلامي هېوادونو استازي حاضر وو، خو د تمې پر خلاف کار وشو او هغه دا چې د اسلامي خلافت د تشکیل په اړه په کې هېڅ بحث ونشو او د ال سعود کورنۍ په یو ډول د سعودي عربستان نوي شاهي دولت ته قانوني رنګ ورکړ او د همدې کنفرانس د وعدې پر خلاف یې تر دې دمه د اسلامي علماوو بل هېڅ کنفرانس جوړ نه کړ. د خلافت د جوړېدو خوب همداسې د خوب په توګه پاتې شو چې تر اوسه پورې په اسلامي نړۍ کې دارالاسلام جوړ نشو.

تر لومړۍ نړیوالې جګړې وروسته، برېتانیې وغوښتل هغه وعده چې په سملاسي اعلامیه کې یې صهیونېستانو او د راتشچایلډ له کورنۍ سره په فلسطین کې د یهودو د دولت د جوړېدو له پاره کړې وه، پوره کړي. لومړی یې د فلسطین د خلکو سرشمېرنه (نفوس شمېرل) پیل کړل او معلومه یې کړه چې فلسطین ته د یهودو دیرش کلونو د هجرت په پایله کې یوازې شپږ سلنه خلک یهودیان دي.

البته د یهودو په دومره لږوالي او کمزورتیا سره دوی نشوای کولای چې د خپلې خپلواکۍ نقشه عملي کړي؛ ځکه پاتې څلور نوي سلنه وګړي یې د داسې شوم رژیم سرسخت مخالفین وو چې په عادي توګه نشوای اداره کېدی.

*دوی خپلو موخو ته د رسېدو له پاره د یهودو د کډوالۍ د نقشې په پراختیا، د بنسټیزو اقتصادي سرچینو په ترلاسه کولو او صهیونېستانو ته د دغه هېواد د مهمو څوکیو د لاسته ورتللو په فکر کې شول.*[2] برېتانیې فلسطین ته د یهودیانو د انتقال پریکړه وکړه او یهودي کډوال چې ډېری یې اروپایي یهودي ځوانان وو، له انګلېسي قواوو سره مل د سینا صحرا ته واستول شول او هلته یې استوګنه پیل کړه. لنډه دا چې د پرمختګ او یووالي ګوند په هوکړې چې یوه ملت پاله ترکۍ ډله (Pan-Turkism) وه، په بیت المقدس او یافا دښته کې یې لومړنیو یهودیانو ته د اوسېدو اجازه ورکړه او له دې لارې له مسلمانانو سره د همدې ملت پالې ډلې په واسطه چې ځانونه یې د عثمانیانو وارثین ګڼل، یو ستر خیانت وشو.

1. Imran N. Hosein; The Caliphate The Hejaz and The Saudi-Wahhabi Nation-State; p 52

۲. اکبر هاشمي؛ اسراییل او فلسطین؛ ۲۱ مخ

د عربو مشهور لیکوال عبدالله التل لیکي: *د انګلېستان قوانینو د انتداب*[1] *په دوره کې فلسطین ته د کډوالی له پاره یهودیان دومره خپلواک کړي وو چې په المان، پولېنډ او امریکا کې د خپلو نبارونو له وتو مخکې ورته د فلسطین د ګرځېدو اجازه (پاسپورت) ورکول کېده. په مقابل کې هغه عربان چې د اردن له ختیځ او سوریې څخه فلسطین ته راغلي وو او کلونه کلونه یې هلته ژوند کړی و، پردي وګڼل شول. له بلې خوا، انګلېستان خپل ټول ځواکونه له یهودیانو څخه د ملاتړ په لاره کې د یهودیانو په اختیار کې ورکړل او د اردن په ختیځ کې یې د فلسطینیانو د ټکولو او د هغوی پر وړاندې یې د هر ډول بلوا د مخنیوي له پاره یوه پیاوړې نظامي اډه جوړه کړه څو د اسراییلو دولت له هر ډول مزاحمت پرته جوړ شي! په واقعیت کې انګلېستان له اعرابو سره شوو وعدو ته وفا نه لرله.*[2]

په ۱۹۲۰ زېږدیز کال د انګلېستان دولت اعلان وکړ چې تر دې وروسته د فلسطین نظامي حکومت په یو مدني حکومت واوښت او یهودیانو چې د دا ډول ورځې انتظار ویست، سمدستي یې د متفقینو د کنفرانس د مشرانو په لاسلیک یو *تړون وکړ چې د ۱۹۲۰ زېږدیز کال د نوومبر د میاشتې په ۲۵ مه نېټه په سان ریمو کې ترسره شوی و او په دې کنفرانس کې، فلسطین باید په اداري - سیاسي موقعیت کې وي، څو یهودیان په کې په پوره خپلواکۍ سره خپل ملت پاله هېواد جوړ کړي.*

*د انتداب حکومت هم فلسطین ته د یهودیانو په هجرت کولو کې مرسته وکړه او په دې اړه ورته داسې توصیه شوې وه چې د یهودي کډوالو اړوندو چارو ته د رسېدنې په موخه یوه کابینه جوړه شي څو د دوی د کډوالۍ چارې وڅاري او له بلې خوا کډوالو ته مناسب کار او استوګنه برابره کړي او وکولای شي چې په لومړۍ درجه کې د شرکتونو امتیازات یهودیانو ته ورکړي څو له دې لارې د همداسې یوه هېواد د تاسیس له پاره هڅې وکړي.*[3]

دا تړون په ۱۹۲۲ زېږدیز کال ملګرو ملتونو تصویب کړ. انګلېستان سم دلاسې یهودي هربرټ سموویل فلسطین ته د انګلېستان د سامي استازي په توګه واستوه او

---

۱. انتداب: له ناتوانه هېواد څخه د پیاوړي هېواد ملاتړ او قیمومیت د خپلواکۍ تر رسېدو پورې چې په وروستیو کې د ملګرو ملتونو سازمان هغه د وصایت او نظارت پر نظام بدل کړ.

۲. عبدالله التل؛ خطر الیهودیة العالمیه علی الاسلام و المسیحیه؛ ۲۴۳ مخ

3. Cynthia Day Wallace. Foundations of The International Legal Rights of The Jewish People and The State of Israel. PP. 2-6

سمووېل په فلسطين کې د خپل ماموريت په موده کې پر داسې اقداماتو لاس پورې کړ چې ځينې يې په لاندې توګه دي:

- شپږ سوه زره مهاجرو ته استوګنه ورکول
- يهودو ته د مهمو پوستونو ورکول
- په زور د عربو د ځمکو اخيستل او يهودو ته يې ورکول
- يهودو ته د بهرنۍ سوداګرۍ د امتياز منحصرول
- پر عربو د وسلو ګرځولو ممانعت
- يهودو ته د وسلو د اخيستلو په موخه ډېرې اسانتياوې برابرول

په روسيه کې د بلشويک سوسياليستانو د تزار، مسيحي امپراتوري ړنګه کړه او د ډارويني او مارکسېستي نظريو پر بنسټ يې د شوروي جمهوريتونو د يووالي خداى ناباوره، ظالمه او بې رحمه امپراتوري جوړه کړه چې د راتچايلډ د کورنۍ په مرسته يې مالي ملاتړ کېده. د *نيويارک د امريکايي مجلې (American New York Journal) له مخې د ۱۹۴۹ زېږديز کال د فبرورۍ په دريمه نېټه د جيکب (د راتچايلډ د کمپنيو شريک) لمسي، جان سچف د بلشويکيانو د بريا له پاره شل ميليونه ډالر مصرف کړي وو.*[1]

*شيف (د راکه فلر د کورنۍ يو غړى چې د راتچايلډ د کورنۍ په څېر د فرېمېسن د نړيوالې مافيا يو پياوړى غړى و) د تزار د امپراتورۍ د ړنګولو له پاره يې روسيې ته مليونونه ډالره واستول.*[2] *هغه پټه ډله چې د راتچايلډ له خوا اداره کېده، د بلشويک د انقلاب له مهمو ملاتړو شمېرل کېده.*[3] د ډېريو مؤرخينو د نظريو پرخلاف، د بلشويک انقلاب يو تاريخي تصادف نه و، بلکې له سنتونو او دينونو سره د مبارزې له پاره له سترو نړيوالو پلانونو څخه جوړ تصادف و؛ ځکه چې په لومړيو کې د بلشويکيانو مبارزه د ارتودوکس له کليسا سره پيل شوه او تر اسلامي هېوادونو او مسجدونو را ورسېده.

د مارکس او ډاروين خداى ناباوره نظريې د مرخېړيو په څېر په رسنيو، کتابونو، علمي مجلو، کنفرانسونو او علمي پروګرامونو کې خپرې شوې او د بلشويک کمونېستانو نور خلک د خپلې خداى ناباوره نظريې په منلو مجبورول، تر دې چې د دې ګوند د سور کارت د ترلاسه کولو له پاره يې يوازني خداى او رسولانو ته کنځلې کولې.

---

1. Gary Allen with Larry Abraham; None Dare Call it Conspiracy; 4. Bankrolling The Bolshevik Revolution

2. Forbes B.C.; Men Who Are Making America; pp 334-345

3. Gary Allen with Larry Abraham; None Dare Call it Conspiracy; 5. Establishing the Establishment

*د شـوروي د جمهوريتونـو (کمونیسـتي) اتحـاد د خپـل لـومړني پنځـه ويشـت کلـن حکومت او د يهوديانو د واک پر مهال په دې اتحاد کې له شلو ميليونو څخه زيات خلک ووژل. په واقعيت کې دا په خلکو حکومت و.*[1] ځينـې مـؤرخين د شـوروي جمهوريتونـو د اتحاد په واسطه د روسانو ډله ييزه وژنه، له يهودانو سره د تـزار د امپراتـورۍ د بـد چلنـد غچ اخيستنه ګڼي. *داسې ښکاري چې د بلشويکيانو په واسطه ځينې وژنې د يهودو غچ اخيستنه وه او د يهودو د احساساتو ضد تاريخ يې لاره.*

*ډېرې مؤرخين وايي: يهوديان د شوروي جمهوريتونو د اتحاد له نظامي ځواکونو سره يو ځای شول چې د تزار د وخت د بدچلند غچ واخلي.*[2] د شوروي جمهوريتونـو اتحـاد د منځنۍ اسيا اسلامي هېوادونه تر خپلې ولکې لاندې راوستل او د استعمار لمـن يـې تـر افغانستانه راورسېده او لکه څنګه يې چې د روسيې مسيحيان تر ظلـم لانـدې کـړي وو، همدغسې يې په اسلامي نړۍ هم ظلم او تېری کاوه، د دين علماء يې زندان ته اسـتول، شکنجه يې ورکوله او بيا يې وژل. عام خلک يې د اخوانيتوب، اسلام پالـه او کپټالسـټ کېدو په پلمو وژل او له هـرې ممکنـه لارې يـې لـه دينـي عقايـدو سـره جګـړه وکـړه او د مساواتو په نوم يې د عوامو او ملي شتمنۍ لوټ کړې.

که څه هم د تاريخ په اوږدو کې لومړۍ نړيوالې جګـړې ډېـرې مهمـې اغېـزې لرلـې؛ خو تر ټولو مهمه هغه يې له برېتانيې څخه امريکا ته د قدرت انتقال و. د سټرلېنګ پونډ پر ځای، ډالر نړيواله ذخيروي پيسه وګڼل شوه او امريکا يوه داسې امپراتوري شـوه چـې په قلمرو کې يې لمر نه ورکېده او د يو پياوړي نړيوال قـدرت پـه توګـه راڅرګنـد شـو. لـه برېتانيې څخه امريکا ته د قدرت انتقال د تاريخ يوه نادره پېښه ده؛ ځکه چې د بشـر پـه تاريخ کې دا لومړی وار دی چې په ډېر مرموز او له مستقيمې مخکښدنې پرتـه، واک بـل ته سپارل کېږي چې ويلای شو: دجال خپل عملياتي مرکز لـه لـومړۍ ورځـې لـه لنـدن څخه، پرته له دې چې له لاسه يې ورکړي، په دويمه ورځ واشنګټن ته ولېږداوه.

امريکـا د يـو نـوي نړيـوال قـدرت پـه توګـه د خپـل پخـواني سـيال پـه همکـارۍ د صهيونېستو يهوديانو په پلوېتوب د لوبې ډګر ته راننـه ووت. اعـراب کـرار کـرار د غـرب د دجالي صهيونېستي قدرتونو له شومو او ګواښناکو دسيسو خبرېدل او پـوه شـول چـې د وخت د يوې سترې دوکې ښکار شوي دي؛ ځکه نو د استعمار ضد احساسـاتو ځـان پـوه کړ او لږ لږ يې د دې سترې فتنـې پـر وړانـدې مبـارزه پيـل کـړه چـې ډېـرې مهـال بـه د برېتانوي قوتونو په مرسته خنثـې کېـدل، څـو پـه ۱۹۲۹زېږديـز کـال هغـه انقـلاب چـې

1. Kevin Macdonald; The Culture of Critique; p xxxvii

2. Joe Raapoport; The life of a Jewsh Radical; p 31

تقریباً د ټول فلسطين خلک په کې وو، جوړ شو چې بیا هـم د برېتـانيې او متحـدینو پـه نوو چلونو او حیلو سره خنثی شو.

د برېتانيې او صهیونېستو ملګرو پر وړاندې د اعرابو نفرت ورځ په ورځ ډېرېده، تـر دې چې د اعرابو په زړونو کې راټول شوی بغض چاوېدو ته نږدې شو. محمد امین الحسیني د فلسطین ستر مفتي په ۱۹۳٦زېږدیز کال د عمومي اعتصاب امر وکړ چې په ډېر پراخ او ښـه شـکل سـره د ښځو، سـړیو، سـوداګرو، صـنعت کـارانو، محصـلینو، متعلمینـو او زندانیانو په ګډون ترسره شو. په دې اعتصاب کې د اوسپنې د لارو، نفتـي پـایپونو قطـع کېدل د دولتي ادارو او پلونو بندول، د برېښنا او ټلیفون د لینونو پرې کـول، د مـالیو نـه ورکول او له حکومتي قوانینو سرغړونه شامله وه.

صهیونېستان حیران شول او له خپلو عربي لاسپوڅو څخه یې مرسته وغوښته چـې د هغوی (د سعودي عربستان پادشاه عبدالعزیز بن سعود، د عراق ملک غاضی سلطان، د یمن پادشاه امام یحیی او د اردون حاکم امیر عبدالله) په مرسته یې د انقلابیانو پـه نـوم یو تلګراف واستاوه چې موضوع یې د فلسطین د خلکو مشروع غوښتنو ته مثبـت ځـواب ویل وو او ویلي یې وو چې برېتانيې پـه خپلـه دې پرېکـړه کـې ورتـه هیلـه منـدي او ډاډ ورکوي او له فلسطینیانو یې د ارامۍ غوښتنه کړې وه.

په دې ترتیب سـره دا سـتر انقـلاب تـر شـپږو میاشـتو وروسـته د زرګونـه شـهیدانو او بندیانو د قربانۍ له ماتې سره مخ شو او د برېتانيې دولـت یـوازې درې لیکلـي شـرطونه ومنل چې هېڅکله یې د هغې د ترسره کولو اراده نه لرله. دا شرطونه داشې وو:

۱. فلسطین ته د یهودو له مهاجرت څخه دې جدي مخنیوی وشي.
۲. د فلسطین ځمکه هېڅکله یهودو ته ورنکړل شي.
۳. د برېتانيې استعماري حکومـت تـه د پـای ټکـی کېښـودل شـي او یـو عربي حکومت جوړ شي.

د غرب عصري تمدن د خلکو د تېر ایستلو د یـوې پروسـې د حـل لارې د مونـدلو پـه فکر کې شول او د دې کار د اوږدولو له پاره یې د کمېټې جوړولو او کمیسـیون پـه نامـه چې د حاد مسایلو د هېرېدو لامل شول ځینې چارې یې پیل کړې چې له دې چلـه یـې د فلسـطین د خلکـو د تېـر ایسـتلو لـه پـاره هـم کـار واخیسـت چـې پـه ظـاهره یـې دا کمیسیون، فلسطین ته د انقلاب د عواملو، د ستونزو د حل لارو او د اعرابـو د غوښـتنو د رسېدنې او څېړنې له پاره ولېږه.

هیئت په ښکاره توګه بې لوری او څېړونکی ښکارېده، خو په ډېر ماهرانه توګـه یـې د حل لارو تر بیانولو وروسته وویل: *د دې ستونزې بنسټیزه حل لاره د فلسطین وېش دی،*

*یوه برخه یې باید عرب-یهود او پاتې برخه یې د برېټانیې پر لاس کې پاتې شي.*[1] د فلسطین د وېش مسئله د برېټانیې د پرېکړې له مخې د ټولو اعرابو له پاره د منلو نه وه او دا کار نه یوازې د اعرابو د غوسې، نفرت او انزجار وړ شو، بلکې د یهودو او غربیانو پر وړاندې د نړۍ د ټولو مسلمانانو د غوسې لامل شو. د دې پرېکړې په غبرگون کې د عراق د دولت استازي داسې وویل:

تاسو که غواړئ چې د یهودو د خدمتونو بدیل ورکړئ، ښه به دا وي چې په خپله اروپا کې ورته یوه سیمه ورکړئ، نه دا چې د اسیا د خلکو له جېبونو ورته سخاوت کوئ. د عربي دولتونو له یوې غونډې وروسته چې د مصر، عراق، سوریې، لبنان، اردن، فلسطین او مغرب ښارونو استازي په کې وو د فلسطین په لور یې لښکر ولېږه څو په فلسطین کې د برېټانیې دا استعماري حکومت شاتگ ته اړ شو.

د برېټانیې دولت له بې شرمانه ماتې وروسته له پخواني چل څخه بیا کار واخیست او د وخت تېرولو له پاره یې د برېټانیې د مستعمراتو وزارت د حل لارې د موندلو له پاره د عربو مشران (د عراق، مصر، اردن او یمن استازي) او یهود لندن ته راوبلل. هلته یې یو وار بیا یې له مسلمانانو سره چل وکړ او په تدریجي شکل یې د لسو کلونو په موده کې په فلسطین کې د عربو د دولت د جوړېدو وعده ورکړه او دا کار یې پرې ومانه. مسلمانان یو وار بیا له هغه سوري وچیچل شول چې پخوا ترې چیچل شوي وو.

له ټولو هڅو سره سره بیا هم صهیونېستان، فلسطین ته د مهاجرت له پاره د نورو یهودیانو په قانع کولو بریالي نشول. دو خاخام (یهودي عالم) د جودا الکلي او زیوي هرش کالیشر نوې نظریې وړاندې کړې چې د یهودیت د دین د بنسټونو پر خلاف د مسیح د راتگ او یهودي دولت د جوړېدو په اړه وې. هغه وویل: *د مسیح راتگ ته اړتیا نشته، یهودیان باید د خپل سیاسي او اقتصادي قدرت او د سترو اروپایي قوتونو په مرستې په بیت المقدس کې یهودي دولت جوړ کړي او دا کار د مسیح د راتگ له پاره لومړنۍ مقدمه ده.*[2] صهیونېستانو د دې نظریو په خپرولو سره ډېری یهودیان کډوالۍ او د دې دولت د جوړولو له پاره قانع کړل. سره له دې چې دې نظریې ځینې یهودیان کډوالۍ ته وهڅول؛ خو د هغو یهودیانو له پاره دا کار کافي نه و چې پېړۍ پېړۍ یې په اروپا کې ژوند کړی و او د ځان له پاره یې کور او کاروبارونه لرل؛ ځکه دا هر څه څنگه پرېږدي او داسې ځای ته لاړ شي چې برخلیک یې هم په کې معلوم نه وي؟

---

۱. اکبر هاشمي؛ اسراییل او فلسطین؛ ۲۸ مخ

2. Harun Yahya; Holocaust Deception; p 15

صهيونېستان تل د وېرې له چلناکې وسلې کار اخلي؛ ځکه يې په جرمني کې د نازي په نوم له يو نوي حرکت څخه ملاتړ وکړ او تر هغې يې دې ملاتړ ته دوام ورکړ چې واک ته يې ورساوه. *د جرمني د يهوديانو د ملي اتحاديې (VNJ) په نوم ډلې په۱۹۳۴ زېږديز کال داسې کمپاين پيل کړ چې د هېټلر موقف ته يې پاينښت ور وبانبه.*[۱] صهيونېستانو د جرمني په نازي حرکت کې ستر لاس لاره، Fred A.Leuchter او David Irving ليکي: *د هېټلر مشاور او د جرمني بهترين نژاد پالي نظريه جوړونکي هوستن چمبرلين د يهوديانو سرسخت ستايونکی و.*[۲] د ګارډين ورځپاڼې، د امريکا د ملي ارشيف د افشا شوو اسنادو له مخې وښووده چې *پرسکاټ بوش؛ د امريکا د ولسمشر جورج بوش نيکه، د نازي حرکت طراح او مالي ملاتړی و او د هېټلر واک ته رسېدو لامل و.*[۳]

نړۍ ته د دوکې ورکولو له پاره صهيونېستانو په سترې صحنې جوړونې لاس پورې کړ او مخکې له دې چې هېټلر پر يهودو حمله پيل وکړي، د دې جنګ د زمينې د برابرولو له پاره يې، د جرمني توليدات د يهودو په واسطه او د يهوديانو تر نفوذ لاندې هېوادونو لکه امريکا، برېتانيا او په ځانګړې توګه هغه هېوادونه چې ډېرې توليدات يې له جرمني څخه (پولېنډ) ته وو، پرې بند کړل.

*په جرمني باندې د يهودو د نړيوالې رهبرۍ له لوري جګړه، نه يوازې پر يهودو د جرمني د دولت د غچ اخيستلو له پاره وه، بلکې د صهيونېستانو او جرمني د رهبرانو تر منځ يې د اقتصادي او سياسي يووالي بنسټ کېښود چې په ډله ييزه توګه يې فلسطين ته د يهوديانو د کډوالۍ غوښتنه او هڅه کوله.*

*لنډه دا چې دا کار د نازيانو او د اسراييلو د ننني دولت د بنسټ ايښودونکو تر منځ د يو تاکتيکي يووالي پايله وه او يو حقيقت دی چې ډېرې يې نن ورځ د هغې د هېرولو پلويان دي.*[٤]

له اقتصادي بنديزونو وروسته نازيان صهيونېستانو ته ورغلل او د دې بنديزونو د حل په بدل کې يې فلسطين ته د يهوديانو د انتقال قرارداد چې د هوارا (Haavara Agreement) د تړون په نامه و لاسليک کړ.

---

۱. همدا سرچينه، ۲۴مخ

2. Fred A. Leuchter & David Irving; The leuchter: The First Forenisc Examination of Auschwitz. London (1989); pp 9-10 & 19

3. Guardian; How Bush's Brandfather Helped Hitler's Rise to Power; (Sep. 2004) p 25

4. Raphael M. Johnson; The Jewish Declaration of War on Nazi Germany; p1

په دې ترون کې تر کډوالۍ وروسته د فلسطين په رايجو پيسو سره ښرته د يهودو پانګو د ورسپارلو وعده شوې وه چې دې وعدې ډېرى يهوديان فلسطين ته د کډوالۍ له پاره لېوال کړل. د هوارا د ترون تر لاسليک کېدو وروسته، د يهوديانو کډوالي ډېره شوه او يهوديان په عبراني نومونو سره لکه د تل ابيب (Tel Aviv) کښتيو په نامه د نازيانو په کښتيو کې د اسراييلو اوسنۍ پلازمينې، فلسطين ته انتقال شول چې امريکايي تاريخ ليکونکي مارک ويبر په خپلې مقالې کې *دريېم رايش او صهيونېزم*[1] تر نامه لاندې يې له صهيونېستانو او نازيانو د اړيکو په اړه ډېر شواهد ثابت کړي.

د صهيونېستانو اقتصادي بنديزونو دوه سترې پايلې لرلې. دا بنديز د دې لامل شو څو نازيان د هوارا د ترون له پاره يوه پلمه ولري او د صهيونېستو يهوديانو تر لېږد وروسته هېټلر د نازيانو د مشر په توګه وکولای شي *ځينې صهيونېست ضد يهوديان*[2] ووژني او پاتې يهوديان چې د صهيونېستانو له اجنډاوو ملاتړ نه کوي، د صهيونېستانو لاسته د وېرې په وسلې سره وسپاري. ډاکټر جانسن ليکي: *صهيونېستان په دې پوه شول چې يوازې، سامي ضد هېټلر کولای شي د جرمنې د صهيونېست ضد يهوديان د صهيونېزم غبرګ ته را واچوي.*[3]

د دويمې نړيوالې جګړې په پيل کې، نازيانو د خپلو جنګي څرخونو په تاوولو سره، نه يوازې دا چې نه يې شوای کولای په جرمني کې د نازي ضد احساسات وزغمي، له دې پرته يې کاري ځواک ته هم اړتيا لرله.

نو له دې امله يې هغه کسان چې له نازي نظرونو يې ملاتړ نه کاوه، تر شکنجو لاندې کړل. له هغوی څخه يې په سختو کارونو کې د کاري قوې په توګه کار اخيسته او وژل يې چې يهوديان هم په کې شامل وو. صهيونېستانو د نازيانو دا کړنې د خپلو رسنيو په مرسته چې د نړۍ سترې رسنۍ په کې شاملې دي، خلکو ته وښودې او دا کار يې د يهودو نسل وژنه وښوده او تر دې يې زياته افوا خپره کړه او نازيان يې په دې تورن کړل چې د يهودو د ټولوژنې له پاره يې په ګاز سره د اعدام بندخونې جوړې کړې دي چې تر اوسه له يو څو هاليووډي فلمونو پرته بل هېڅ ثبوت نه لري.

*د ټولوژنې افسانه جوړوونکې، د يهودو د نسل وژنې له پاره په ګاز سره د اعدام د بند خونو هېڅ قوي ثبوت نه لري. د بېلګې په توګه دوی ان د ګاز په مرسته د اعدام د*

---

1.Mark Weber; Zionism and The Third Reich

۲. ځينې يهوديان چې ځان ارتودوکس ګڼي او په دې باور دي چې د يهوديانو ستونزې (در به دري) په تورات کې راغلې او د دولت د تشکيل حق نه لري د صهيونېست پلانونه وړاندې دي.

3. Raphael M. Johnson; The Jewish Declaration of War on Nazi Germany; p 6

*بندخونو د موجوديت د ادعاوو د ثابتولو له پاره يو قانوني ثبوت نه لري، په دې اړه د تاريخ نوي کوونکي يهودي محقق (Revisionist) ډېوډ کول ليکي: زه او نور څېړونکي تر کلونو څېړنې وروسته دې پايلې ته ورسېدو چې د هولوکاسټ*[1] *د ثابتولو له پاره ثبوت ډېر لږ دی او يوازې هغه ثبوتونه وړاندې شوي دي چې تر جګړې وروسته د سترګو ليدلي حالتونه او داستانونه انځوروي.*[2] د هټلر په واسطه د يهودو نسل وژنه چې اوس ورته هولوکاسټ وايي، ټول يې د څو يهودو پر ويناوو ولاړه تيوري ده چې د خپلو ويناوو له مخې يې د دې نسل وژنې پاتې شوني دي، خو هېڅکله په علمي او تاريخي لحاظ ثبوتېدلای نه شي.

يهوديانو د هولوکاسټ په نوم افسانه د نړيوالو د پام را اړونې او د خپل ځان د قرباني کېدو د څرګندولو له پاره وکاروله او له دې لارې يې په فلسطين کې د ځمکو غصب او کډوالۍ وکړې؛ ځکه هغو يهوديانو چې ځانونه يې د هټلر د نسل وژنې ژغورل شوي او پاتې شوي خلک ګڼل، په جرمني کې د يهودو له نفوس څخه ډېر وو او دا هولوکاسټ يې داسې وښود چې *يوې نظر پوښتنې په امريکا کې په ۱۹۹۰ زېږديز کال څرګنده کړه چې د امريکا خلک هولوکاسټ د بشريت د تاريخ تر ټولو ستره دردوونکې پېښه ګڼي.*[3]

صهيونېستانو د نړۍ د يو پياوړي قدرت او د يو نړيوال حکومت د مرکز په توګه د اسراييلو او پټو ډلو د تشکيل او جوړولو نظريه له پېړيو راهيسې په سر کې ګرځوله (د عيسی په توګه د دجال له راښکاره کېدو وړاندې د هغه درېيمه او اخري ورځ). اوس يې د خپل دويم عملياتي قدرت مرکز (امريکا) ته انتقال کړی و او د اسراييلو تشکيل هم لرې نه و، نو صهيونېستان د اسراييلو په مرکزيتوب د يو نړيوال حکومت د پروژې د جوړولو د عملي کولو په فکر کې شول او د دې کار له پاره د ملګرو ملتونو د سازمان په فکر کې شول.

تر اوسه انګلېستان د دجال د لومړۍ ورځې د عملياتي مرکز په توګه د صهيونېزم د اجنډاوو د عملي کولو له پاره خپل رول ډېر ښه ولوباوه. اوس امريکا هم د دجال د دويمې ورځې د عملياتي مرکز په توګه ډګر ته رادانګلي وو او د امريکا ولسمشر ترومن

---

۱. هولوکاسټ (Holocaust): يا ټول سوځېدنه، هغې ډله ييزې وژنې او نسل وژنې ته ويل کېږي چې شاوخوا يوولس ميليونه تنه چې په ځانګړې توګه شپږ مليونه يهوديان يې د نژاد، مذهب او مليت په نامه د دويمې نړيوالې جګړې په اوږدو کې د نازي المان په لاس د زېږديز کال له پيل څخه د ۱۹۴۵زېږديز کال تر پايه د نازي المان د مرګ په نظامي ځايونو کې ووژل.

2. Harun Yahya; Holocaust Deception; pp 50-51

3. Peter Novick; The Holocaust in American Life; p 232

چې د ټاکنو تر ټولو ستر ملاتړي یې صهیونېستان وو، د برېتانیې لومړي وزیر ته یو لیک ولېږه چې په څرګنده توګه په کې د یهودو پر پیاوړي کېدو او د کډوالۍ د پوره خپلواکۍ غوښتنه شوې وه. وروسته بیا د برېتانیې د بهرنیو چارو وزیر د اعرابو او برېتانیې د قرارداد پر خلاف، اعلان وکړ چې د فلسطین معضله به د امریکا او برېتانیې په همکارۍ حل شي او له برېتانویانو او امریکایانو څخه د جوړ شوي هیئت په مرسته یې د یهودو او اعرابو تر منځ د فلسطین د وېش وروستۍ نقشه د ملګرو ملتونو نوي جوړ شوي سازمان ته وړاندې کړه چې په ۱۹۴۷ زېږدیز کال د کمزوري اکثریت او د سترو دولتونو په فشار سره تصویب شوه چې بیا یې د ملګرو ملتونو یو یوولس کسیز هیئت د فلسطین د وېش د کرښو د ترسیمېدو له پاره واستاوه او د صهیونېستانو له غوښتنو سره سم یې نقشه جوړونه پیل کړه چې پر دې مهال د اعرابو د عدالت غوښتنې فریاد په صهیونېستي ملل متحد کې چا وانهورېد.

برېتانیې د فلسطین د تخلیې اعلان وکړ او دا تخلیه یې له یهود مېشتو سیمو داسې پیل کړه چې هرڅه یې په لاس کې لرل؛ لکه اسباب، اداري وسایل او تر ټولو مهمې وسلې یې هم ورته وسپارلې او له دې پرته یې بم اچوونکې الوتکې، منفجره مواد او عصري وسلې هم په ډېره کم ارزښته بیه پر یهودیانو وپلورل او په رسمي بڼه یې اعلان وکړ چې له یهودو سره جګړه له برېتانیې سره جګړه ده.

یهودیانو د برېتانیې اعلان د ظلم کولو له پاره ازادي وګاڼله او په عرب مېشتو سیمو کې یې وحشیانه حملې پیل کړې چې په (دیر یاسین) کې یې له سلګونه فلسطینیانو څخه سرونه پرې کړل او لس ګونه زره یې ټپیان کړل. همدارنګه یې په ناصرالدین کې هم ټولوژنه وکړه او لس ګونه زره یې بې کوره کړل. د زېږدیز کال د مې میاشتې په ۱۵مه نېټه یهودیانو د فلسطین په خاوره کې د اسراییلو د دولت خپلواکي اعلان کړه چې د اعرابو له لښکرکشیو سره مخ شول؛ خو له اسراییلو سره د برېتانیې او امریکا له مرستو وروسته اعرابو له یو لړ خونړیو جګړو وروسته ماتې وخوړه. په دې اړه پېژدل شوی انګریزي لیکوال دوګلاس رید لیکي:

*له دویمې نړیوالې جګړې څو ورځې وروسته د امریکا پخواني ولسمشر وړاندیز وکړ څو فلسطین ته سلګونه زره یهودیان کډه شي او فلسطین د یهودو او مسلمانانو ترمنځ وویشي، په داسې حال کې چې هغه د امریکا په پارلمان کې په ۱۹۴۷ زېږدیز کال داسې ویلي وو:*

*امریکا هېڅکله راضي نه ده چې د یوه ملت برخلیک دې د هغه له رضایت پرته وټاکل شي. له دې ټولو مسایلو سره سره د بهرنیو چارو د وزارت وکیل مارشال هڅه وکړه*

*چې ترومن ته د فلسطین د وېش د ګوانبونو په اړه خبرداری ورکړي او هغه له دې کار څخه راوګرځوي چې د هغه د دې کار هڅه بې پایلې وه او وړاندې له دې چې له فلسطین څخه د انګلېستان نظامي قوتونه راووځي، د امریکا دولت په کې د اسراییلو په نوم د یوه دولت د جوړېدو اعلان وکړ چې دا خبره ان د ملګرو ملتونو په سازمان کې د امریکا استازو ته هم ناڅاپي او نوې وه چې په پایله کې د اسراییلو او اعرابو تر منځ خونړۍ جګړې پیل شوې او مارشال استعفا ورکړه.*[1]

د اسراییلو د یهودي دولت په جوړېدو سره د یهودیانو دوه زره کلنه هیله پوره شوه او د قرانکریم یوه وړاندوېینه رښتیا شوه چې فرمایلي یې دي:

*او د هغه ښار خلکو ته چې هغه (ښار مو) هلاک (وران) کړی، بېرته ورتلل (هغه ښار ته) حرام دي، تر هغې چېد یاجوج او ماجوج (دېوال) پرانیستل شي او له هر لوري راوځغلي.*[2] د اخرالزمان په برخه کې د اسلامي نړۍ پېژندل شوی عالمشیخ عمران حسین په دې اړه داسې لیکي: *کله چې یاجوج او ماجوج راخلاص شي او (د نړۍ) هر لوري ته خپاره شي؛ نو بیا په هغه وخت کې د هغه ښار خلک چې د الله ﷻ په واسطه مجازات شوي وو او له خپل ښار څخه چې د الله ﷻ له خوا وران شوی و، شړل شوي وو، بیا به هماغه ښار ته راوستل شي. یوازینی ښار چې د الله ﷻ په واسطه وران شوی دی او په احادیثو کې د هغې اړیکه له یاجوجو او ماجوجو سره بیان شوې دي بیت المقدس دی؛ ځکه هېڅ داسې ښار چې د الله ﷻ په واسطه وران شوی وي او په احادیثو کې ارتباط له یاجوجو او ماجوجو سره ورکړل شوی وي، نشته دی.*

*موږ اوس دې پایلې ته ورسېدو، هغه ښار چې د انبیاء سورة په ۹۵ او ۹۶ ایتونو کې یې یادونه شوې ده، بیت المقدس دی. له دې پایلې څرګندېږي چې دې مقدس هېواد ته د یهودیانو راګرځېدل د یاجوج او ماجوج د مداخلې په واسطه شونی دی. په بل عبارت د اروپا هغه نړیوال نظم چې اوس له واشنګټن څخه پر نړۍ واکمني کوي، د یاجوجو او ماجوجو نړیوال نظم دی.*[3]

یو بل شرط چې په پورته ایتونو کې ذکر شو او عمران حسین هم ورته اشاره کړې ده، د نړۍ په هر ګوټ کې د یاجوجو او ماجوجو خپرېدل دي. خزران د قفقاز له غرونو څخه تر کډوالۍ وروسته او په مرموز ډول سامي نژاد او بیا یهودیت او عیسویت ته له یو ځای

1. Douglas Reed; Somewhere south of Suez; Ch. 4 The Rise of Zion

۲. سوره الانبیاء؛ آیات ۹۵ او ۹۶: وَحَرَامٌ عَلَى قَرْيَةٍ أَهْلَكْنَاهَا أَنَّهُمْ لَا يَرْجِعُونَ ﴿۹۵﴾ حَتَّى إِذَا فُتِحَتْ يَأْجُوجُ وَمَأْجُوجُ وَهُم مِّن كُلِّ حَدَبٍ يَنسِلُونَ ﴿۹۶﴾

3. Imran N Hosein; Surah Al-Kahf and The Modern Age (internet edition); pp 194-195

کېدو سره داسې وده وکړه چې د انسان پېژندنې ځينې اوسني علماء سپين پوستي نژاد ته ققفازي (Caucasian) وايي.

خزران اروپا ته تر کډوالۍ وروسته په فتنې اچونې پيل وکړ او د قومي او مذهبي جنګونو په واسطه يې ډېرى اروپايان په خپله د اروپايانو له خوا له منځه يوړل او تر ودې وروسته يې د اروپايانو په مرسته په امريکا حمله وکړه او تقريباً د امريکا اصيل نسل يې له منځه يوور. همدارنګه يې له ننني استراليا سره هم ورته کار وکړ او په ټوله نړۍ کې خپاره شول. لومړى کس چې سپين پوستان يې ققفازيان ونومول، د جرمني اغېزناک انسان پېژندونکى بلومنبخ و، چې په دې اړه پروفيسور پېنټر ليکي: *سپين پوستو وګړو ته يې ځکه ققفازي وويل چې د جرمني اغېزناک عالم او د يو مشهور پوهنتون استاد جوهان فريدريک بلومنبخ (۱۷۵۲-۱۸۴۰ ز) له خپل همکار ګوتېنګن سره دا نوم وټاکه. د دې دوو عالمو علمي اعتبار ققفازي کلمه په ساينسي توګه ووېشله چې بيا وروسته دا وېش انګلېستان ته هم ورسېد او شهرت يې پيدا کړ.*[1]

د عثماني خلافت تر سقوط او کمزورتيا وروسته تقريباً ټوله اسلامي نړۍ د اروپايانو تر استعمار لاندې وه او اسلام له خلافت پرته او تر نوو تشکيل شوو هېوادونو لاندې دومره کمزورى شو چې د بيت المقدس د غصب پر وړاندې يې هېڅ کار عملي کولاى نشواى او همدارنګه صهيونېستانو د اسلامي نړۍ د کمزورتيا له پاره د خپلو پلانونو پلي کولو ته دوام ورکړ.

اروپايي قدرتونو په يو بل پسې اسلامي هېوادونه مستعمره کړل چې له دې استعمار څخه ارمسترانګ خپله خاطره داسې بيانوي: په *داسې حال کې چې اروپايانو او امريکايانو د خپل ځان په خوښه د عصري کېدو اجازه لرله او خپل پلانونه يې عملي کول، د تر استعمار لاندې هېوادونو خلک بايد د هغوى د وارداتي شرايطو لاندې د پرمختګ په فکر کې وي. مستعمره هېوادونو بايد د خلاقيت او نوښت پر ځاى د غربيانو تقليد کړى واى چې تر هغې پرمختللي وو او ورته رسېدى نشواى. مسلمانان پرته له دې چې د غرب تاريخ او خپل ځان مطالعه کړي او وګوري چې څو کاله مخکې غرب په يوې تيارې زمانې کې ژوند کاوه، په دې فکر کې شول چې د غرب فرهنګ زموږ د هغه په پرتله تر ټولو پرمختللى دى او غربي نژاد تر موږ ښه دى.*[2]

غربيانو درک کړې وه چې تر ابده پورې نشي کولاى خپل د استعمار تورې ورېځې د اسلامي هېوادونو په فضاء کې چې بنسټ يې د استعمار پر وړاندې مجاهدت دى،

1. Nell Irvin Painter; Why Are White People Called Caucasian?; p 10

2. Karen Armstrong; Islam: A Short History; p 145-146

ولاړې وساتي. په اسلامي هېوادونو کې د استعمار پر وړاندې د مبارزو په پیل سره غربیان د اسلامي هېوادونو د پرېښودلو په فکر کې شول. غربیانو اسلامي هېوادونه پرې نه ښودل؛ خو خپلې څو استعماري پدیدې یې لکه د سېکولرېزم سیستم، ملت پالنه پرېښودل، د مسلمانو ملت پالو نوو تشکیل شوو هېوادونو تر منځ د دایمي جنجالونو جوړول؛ لکه د پاکستان او افغانستان تر منځ د ډیورنډ کرښه، په منځني ختیځ کې کردان او د هند او پاکستان تر منځ د کشمېر، د حرامو او حکمي پولو سېستمونه، په ملګرو ملتونو (شرکي) ټولنه کې د غړیتوب او لاسپوڅو مشرانو راوړل هغه څه وو چې په دې هېوادونو کې یې وکړل.

## ملګري ملتونه


که دې انځور ته دقیق وکتل شي، د سپین برېت لرونکی سړي پکی سم نه لیدل کېږی

اوسنۍ نړۍ په تصادف پالنې سره نه شي پېژندل کېدای او د سم درک له پاره یې له روانو او تاریخي پېښو سره یو ځای کېدو ته اړتیا ده؛ خو بدبختانه خلک او په ځانګړې توګه اوسني علماء په مسلکي دوربینونو سمبال دي چې د دې دوربین (لر لیدونکي) د لید ساحه له یوې ټاکلې محدودې څخه ور اخوا له مسلک بل څه نه وي.

د یو انجنیر د دوربینونو (لرلیدونو) د لید ساحه له افقي او عمودي ساختماني عناصرو څخه ور اخوا بل څه نهویني. د یو ډاکتر د لید ساحه د انسان له اناتومی، د یو اقتصادپوه د لید ساحه

د ګټې او تاوان، رايجو پيسو او پر اقتصادي وضعيت له اغېزمنو عناصرو پرته بل څه نه ويني او پر دې منځ کې پر فردي او ډله ييز ژوند تر ټولو مهم او اغېزناک عناصر پاتې دي او د اوسنۍ نړۍ د پېښو په اړه ضد او نقيض او بېلابېلې اخيستنې (برداشتونه) موجود دي، که اوسنۍ نړۍ په يوې تابلو کې د يوې طبيعي منظرې له نقاشۍ سره تشبيه کړو چې په کې يو ماهر نقاش، د يو انسان څېره په يوه طبيعي منظره کې داسې نقاشي کړې وي چې د دې څېرې هره برخه د دې منظرې د يو عنصر ښودونکې وي.

يعنې پوزه يې يو کور، څېره يې د يوې شنې ساحې چې په کې کور موقعيت ولري، سترګې يې د اوبو د يوه حوض، وېښته يې د ځنګل په توګه د شنې ساحې تر شا او خوله يې د زينتي ساختمانونو په توګه، نقاشي شوي وي؛ اوس که دې منظرې ته د تخصصي لرليدونو او په سطحي توګه وکتل شي، هره برخه يې په بېله توګه مطالعه او تحليل کېدای شي چې په دې منظره کې به د څېرې ليدنه ناشونې وي.

يو انجنير يې په خپلو تخصصي ليد سره د کور، يو ډاکټر يې د روغتيايي مسايلو او يو اقتصادپوه يې د عوايدو او لګښتونو برخه تر شننې او څېړنې لاندې نيسي. په دې منظره کې د څېرې د ليدو له پاره داسې لرليد ته اړتيا ده چې د څو بُعدي ليدو وړتيا ولري او دا منظره د څو بُعدي ليدو له مخې تحليل او وڅېړي چې د نړۍ په اوسنۍ منظره کې هم د څېرې د دقيقې پېژندنې له پاره همداسې يو څو بُعدي لرليد ته اړتيا ده او دا ليد يوازې له اسلام سره دی.

د اسلام د ليد پر مرسته کولای شو چې په منظره کې اصلي څېره وپېژنو او درک کړو چې په اوسني وخت (اخر الزمان) کې د نړۍ سترې پېښې ناڅاپي او اتفاقي نه دي، بلکې د پېښو تر شاه د دجال څېره ده او د ملګرو ملتونو سازمان د دې نړيوالې منظرې له مهمو اجزاوو څخه دی.

ملګري ملتونه يو مهم سازمان دی چې د دجال د نړيوال حکومت د تيارولو له پاره کار کوي، په دې اړه د امريکا ولسمشر جورج بوش په ډېر شوق او شور سره د ملګرو ملتونو د سازمان د منشور په اړه وايي:

*(د ملګرو ملتونو په منشور کې درج شوي مقدس اصول) او په داسې حال کې مسيحايي ماموريت يې ورته ووايه ادامه ورکړه چې (کولای شو ترې د سان فرانسېسکو له هيله مندو شېبو څخه د ژونه او متنفذ سند په توګه وګورو)*[1]. فرانکلن روزولټ وايي: *په سياست کې هېڅ شی هم ناڅاپي نه دي، که ناڅاپي راځي نو کولای شي شرط*

1. William F. Jasper; Global Tyranny...Step by Step; Ch. 1- The New World Army

*وتړې چې همدغسې طرحه شوی دی.*[1] د نړۍ اکثره سترې پېښې او په ځانګړې توګه د وروستۍ پېړۍ پېښې چې د غربیانو له لورې رهبري کېدلې، اتفاقي او ناڅاپي نه وې، بلکې په ډېر ماهرانه او داسې شکل چې د دوکې له وسلو څخه په کار اخیستنې سره طرحه شوې وې. ملګري ملتونه هم لکه څنګه چې ویل کېږي په تصادفي او ناڅاپي توګه تر دویمې نړیوالې جګړې وروسته د کړکېچونو د مخنیوي له پاره طرحه شوي دي.

د ملګرو ملتونو نظریه له کلونو راهیسې له صهیونېستانو سره د یوه نړیوال حکومت جوړولو له پاره موجوده وه. *هغه سازمان چې د ملګرو ملتونو په نوم پېژندل کېږي، په حقیقت کې په رسمي توګه د ۱۹۴۵ زېږدیز کال د جون په ۲۶ مه نېټه په سان فرانسېسکو کې د پنځوسو هېوادونو د استازو په واسطه د ملګرو ملتونو د منشور په لاسلیک کولو سره منځ ته راغی؛ خو دا واقعه د پالیسي جوړوونکو او شخصي لوړ پوړو ډلو په واسطه د کلونو طرحه جوړونې پایله ده چې د ولسمشر فرانکلېن روزولټ د ادارې پر مهال یې د امریکا د بهرنۍ سیاست کنټرول په غاړه لاره. په دویمه نړیواله جګړه کې د امریکا له را داخلېدو سره سم د امریکا د بهرنیو اړیکو په شورا (Council on Foreign Relations) کې د نړیوالې سولې د ټولنې نظریه رامنځ ته شوه.*

*په ۱۹۴۲ زېږدیز کال د امریکا د بهرنیو چارو د وزارت په تحریک، له محوري قدرتونو سره د جنګ په حال کې شپږویشتو ملتونو، ځان ته ملګري ملتونه نوم ورکړ.*[2] د لومړۍ نړیوالې جګړې په پیل سره، یوې اغېزناکې او شتمنې امریکایي ډلې د یوې ټولنې د جوړولو پرېکړه وکړه او وروسته یې د دې ټولنې نوم د بهرنیو اړیکو شورا وټاکه چې په نړیواله صحنه کې د یوې امپراتورۍ په رول کې د امریکا د سمبالولو له پاره جوړه شوې وه.

*لویه برېتانیه نه یوازې د استعماري امپراتورۍ په واسطه، بلکې د نورو غیر رسمي حوزو په واسطه، په نړیوال سیاست باندې نفوذ او تسلط لاره او په همدې تګلارې سره امریکایي رهبرانو هم وغوښتل څو له جګړې وروسته دوی هم د واکمنۍ دا ډول رول په نړۍ کې ولوبوي.*[3]

د بهرنیو اړیکو د شورا رینښې د ورسایلس د خبرو اترو (Versailles Negotiations) په *ناخوښیتوب سره د دغې ډلې د بنسټ ایښودونکو تر اندېښنو پورې اړه لري چې په کې د امریکا متحدو ایالتونو د ملګرو ملتونو له غړیتوبه ډډه وکړه، نو له دې امله یې په*

1. Gary Allen with Larry Abraham; None Dare Call it Conspiracy; 1. Don't Confuse me with Facts
2. Willam F. Jasper; Global Tyranny... Step by Step; ch. 3- The UN Founders; Creations of the CFR
3. Laurence H. Shoup & Eilliam Minter; Imperial Brain Trust; p 3

*۱۹۲۱ زېږدیز کال یوه غونډه وکړه چې د یو شمېر خلکو له خوا یې مالي ملاتړ کېده او انفرادي غړي یې له یو غیر انتفاعي او غیر حزبي ډلې څخه وو.*[۱]

له برېتانیې څخه امریکا ته د قدرت د انتقال له پیله یا د دجال له لومړۍ ورځې دویمې ورځې ته، د دریېمې ورځې له پاره چې یو نړیوال حکومت ته د قدرت انتقال و، تیاری پیل شو او د دې نړیوال حکومت د پښو درولو له پاره ورته د نړیوالو افکارو تیارول یو حتمي او اړین کار ګڼل کېده.

د امریکا د بهرنیو اړیکو شورا د ملګرو ملتونو د نړیوال سازمان د جوړولو له پاره د یوې سریزې په توګه چې د امریکا او برېتانیې هېوادونو د صهیونېستانو له خوا جوړ شوی و، د نړیوال حکومت او نوي نړیوال نظم پر تبلیغ لاس پورې کړ. *د روڼ اندو تر منځ د نړیوال کېدو نظریو د خپرولو له پاره، دې مجلس د بهرنیو اړیکو درې میاشتنۍ مجله پیل کړه.*[۲]

تر دویمې نړیوالې جګړې وروسته، انترناسیونالېستانو (هغه کسان چې د نړیوال حکومت د جوړولو له پاره یې کار کاوه) د امریکا د بهرنیو اړیکو شورا د ملګرو ملتونو په جوړولو بریالي شول چې د نړیوال حکومت د کار کولو له پاره یو ستر سازمان و. *هغه څه چې تاریخي شواهد یې ښیي او هغه څه چې باید خلک پرې وپوهېږي دا دي چې ملګري ملتونه د بهرنیو اړیکو د شورا یو پوره تولید دی.*[۳]

ملګرو ملتونو ډېر ژر پراختیا وکړه او لېترلږه د نړۍ ټول هېوادونه او د عثماني خلافت له سقوط وروسته رامنځ ته شوو اسلامي هېوادونو د دې شرکي او دجالي سازمان غړيتوب ترلاسه کړ. د ملګرو ملتونو د سازمان غړيتوب د دغه سازمان د منشور د منلو او دې سازمان ته د یوه هېواد د حاکمیت د حق ورسپارلو په معنی دی.

د ملګرو ملتونو د سازمان د منشور ۲۴مه ماده په صراحت سره بیانوي چې د نړیوالې سولې او امنیت لومړنی مسوولیت د دغه سازمان د امنیت تر شورا پورې تړلی دی او همدارنګه د دې منشور په ۴۲مه ماده کې د نظامي حملې حق او پر هغو هېوادونو چې د نړیوالې سولې له ګواښ سره مخ دي له زور څخه کار اخیستنه ده او دا کار د سولې د اعاده کولو له پاره ترسره کېږي.

د بېلګې په توګه یو کفري هېواد پر یوه اسلامي هېواد ظلم کوي او اسلامي هېواد د خپلو خلکو د ځان، مال او ناموس د دفاع له پاره د دغه هېواد او د هغه د متحدینو پر

---

1. Phyllis Schlafly & Chester Ward; Kissinger on the Cough; p 149

۲. همدا سرچینه، ۱۵۱ مخ

3. William F. Jasper; Global Tyranny...Step by Step; Ch. 3- The UN Founders; Creation of CFR

وړاندې جهاد اعلانوي، خو د ملګرو ملتونو د امنیت شورا چې دایمي غړي یې ستر قدرتونه لکه امریکا، روسیه، انګلستان، جرمني، فرانسه او چین دي، د یوه اسلامي هېواد له لوري د جهاد اعلان نړیوالې سولې ته ګواښ بولي او ظاهراً د سولې د اعادې له پاره په دې مسلمان هېواد حمله کوي، دا او نور اسلامي هېوادونه څه نشي کولای؛ ځکه چې د خپلې ځمکې حاکمیت یې د ملګرو ملتونو ټولنې ته سپارلی دی.

*د ملګرو ملتونو د سازمان غړو هېوادونو له پاره واقعي او حتمي ګواښ، د هغو سترو دروغو منل دي چې وایي په ترلې نړۍ کې د ژوند کولو له پاره باید ملتونه د خپل حاکمیت حق د ملګرو ملتونو سازمان ته وسپاري.*[1] په دې اړه د ملګرو ملتونو د سازمان سرمنشي په ۱۹۹۲زېږدیز کال وایي:

*د مطلقې خپلواکۍ او په یو کس پورې ترلي ژوند وخت تېر شوی دی.*[2] هو! د ملي حاکمیت حق به پاتې وي؛ خو په دې شرط چې د ملګرو ملتونو په واسطه ترسیم شوی وي، داسې چې د ملګرو ملتونو د سازمان سرمنشي وایي:

*د حاکمیت د حق مفهوم ځان ته یوه نوې معنی غوره کړې ده.*[3]

په اسلامي نظام کې چې یوازې او یوازې د الله ﷻ حاکمیت په رسمیت پېژني او د ځمکې پر مخ د حاکمیت حق به د هغه ذات حاکمیت وي، د ملګرو ملتونو یا یوه شخص او یا د حاکمیت د حق سپارل نه بښونکې ګناه ده. په اسلامي قلمرو کې یوازې الهي قانون نافذ وي او هېڅ ځمکنی قدرت د الهي قوانینو د بدلون حق نه لري، ان که یو قاطع اکثریت هم د الهي قوانینو مخالف وي.

د اسلام په سیاسي نظام کې هېڅ یو قانون جوړوونکی د الله ﷻ د حلالو د حرامولو او د حرامو د حلالولو حق نه لري. اسلامي خلافت؛ هغه سیاسي نظام دی چې د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ او د هغو کسانو چې د خلکو له منځه واکمن (اولولامر) دي، یعنې د اسلامي اساساتو له مخې د خلیفه په توګه ټاکل شوي دي، د اطاعت بنسټ دی چې جوړېږي.[4]

---

1. William F. Jasper; Global Tyranny… Step by Step: Introduction

2. 20 Years of "An Agenda for Peace"; A New Vision for Conflict Prevention?; Paper No. 5; p9 (United Nation)

3. William F. Jasper; Global Tyranny… Step by Step; Ch. 1, The New World Army; UN Leader Paves the Way

٤. نساء سوره: ۵۹مه آیه: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ أَطِيعُواْ اللّهَ وَأَطِيعُواْ الرَّسُولَ وَأُوْلِي الأَمْرِ مِنكُمْ فَإِن تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللّهِ وَالرَّسُولِ إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ ذَلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلاً ﴿۵۹﴾ ، ژباړه: اې مؤمنانو! د الله ﷻ، رسول ﷺ او هغو کسانو اطاعت وکړئ چې له تاسې څخه د امر خاوندان وي، بیا که ستاسې تر منځ په کومه چاره کې شخړه

له بده مرغه د ملګرو ملتونو د منشور په لاسلیک کولو سره مسلمانانو د الله ﷻ د حاکمیت حق واخیست او د ملګرو ملتونو د امنیت شورا ته یې وسپاره. د عصري سېکولر دولتونو نړیوال شرکي سیاست د حضرت محمد ﷺ د وړاندوېينې د څېړنې لامل کېږي چې ویلي یې وو:

*دجال به خلک د خپل ځان د عبادت پر ځای د الله ﷻ لوري ته را وبولي. غربي عصري تمدن د عصري سېکولر دولتونو د رامنځ ته کېدو سبب شو چې وايي: د حاکمیت حق له دولت سره دی او د دولت قانون تر ټولو ستر قانون دی.*

*هغه څه چې الله ﷻ حرام کړي دي، دې دولت حلال ګرځولي، دا یو نبکاره شرک دی؛ خو د حیرانتیا ځای دا دی چې ان مسلمانان هم د دې مسئلې په درک کې ستونزه لري.*

*نن ورځ ټوله نړۍ د سېکولر دولت او د ملګرو ملتونو د سېکولر ټولنې تر مشرۍ لاندې ده. د ملګرو ملتونو بنسټ په شرک سره اېښودل شوی دی. د ملګرو ملتونو منشور وايي چې الله ﷻ اکبر نه دی! د دې منشور ۲۴ مه او ۲۵ مه ماده بیانوي چې د امنیت شورا د نړیوالې سولې او امنیت د حاکمیت حق لري او د امنیت د شورا تسلط د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ له تسلط څخه لوړ دی چې د شرک تر ټولو ستر ډول دی.*[1]

د ملګرو ملتونو سازمان د خپلو پخوانیو سیالانو او منځ ته راوړونکو په څېر (د ملتونو ټولنې او بهرنیو اړیکو شورا) د صهیونېستي انترناسیونالېستانو په واسطه اداره کېږي او د نړیوال حکومت یا د نړیوال نوي نظم د تیارۍ له پاره کار کوي. که د ملګرو ملتونو او انترناسیونالېستانو ستر پلانونه د یوه نوي نړیوال نظم د رامنځ ته کولو له پاره د یوه تخصص له یو بُعدي دوربینونو څخه وګورو، نو ضد او نقیضو پایلو ته رسېږو او د اصلي موخې د درک وړ نه دي؛ خو د اسلامي درک د څو بُعدي لرلیدونو په مرسته به یې ومومو.

د دې نړیوال حکومت یا نوي نړیوال نظم د صهیونېست علماوو له نظریو څخه سرچینه اخلي چې د خپل مسیح د راتګ له پاره د نړۍ د تیارولو په عقیده دي او یوازې د اسلام څو بُعدي لرلیدونه د دې درک وړتیا لري چې دا مسیح چې صهیونېست یهودیان یې په اړه خبرې کوي، له مسیح الدجال پرته بل څوک نه دی چې حضرت

پېښنه شي؛ نو هغه د الله ﷻ او رسول ﷺ لوري ته وړاندې کړئ. که تاسې په رښتیا سره پر الله او د اخرت پر ورځ ایمان لرئ، همدا د کار یوه سمه طریقه ده او د عاقبت په اعتبار هم غوره ده.

1. Imran N. Hosein; Jerusalem in the Quran; pp 72 & 114

محمد ﷺ يې خوارلس سوه کاله وړاندې خبرداری ورکړی و او دا حکومت د دجال نړیوال حکومت دی چې پلازمېنه به يې بيت المقدس وي. په دې اړه د ټايم مجلې (Time Magazine) د ۱۹۹۰زېږديز کال د سپټمبر د ۱۷مې نېټې ګڼه ليکي: *د بوش حکومتي اداره غواړي چې له ملګرو ملتونو څخه د نوي نړيوال نظم د طرحې جوړولو له پاره د يوې بنسټيزې وسيلې په توګه کار واخلي*[1] او په همدې اړه د امريکا ولسمشر (د بوش پلار) د ۱۹۹۰زېږديز کال د سپټمبر په ۱۱مه په خپلې يوې بيانيې کې داسې وايي:

*هو، موږ د خپلو راتلونکو نسلونو او خپل ځان له پاره د يو نړيوال نظم جوړولو له پاره چانس لرو، هغه نړۍ چې د قانون حاکم، نه د ځنګل قانون يې د ملتونو کړنې اداره کوي. کله چې موږ بريالي شو او موږ به بريالي کېږو! هو! موږ په دې نوي نړيوال نظم کې يو واقعي چانس لرو، هغه نظام چې په کې عالي متحد ملتونه د ملګرو ملتونو د بنسټ ايښودونکو د هيلو او وعدو د عملي کولو له پاره د سولې د ساتونکو رول لوبوي.*[2]

*د سېکولر دولتونو اروپايي سېستم چې د يوې نړيوالې ټولنې د رامنځ ته کېدو لامل شو. لومړی د ملتونو ټولنه او وروسته په ملګرو ملتونو واوښته. ملګري ملتونه لکه څنګه يې چې له نومه څرګندېږي، د اروپايانو (له اروپا څخه موخه امريکا، استراليا، اسراييل او خپله د اروپا لويه وچه ده) په واسطه د نوي نړيوال نظم جوړولو او د اروپا تر سياسي کنټرول او د نړۍ تر نفوذ لاندې د نړۍ د متحد کولو له پاره جوړ شو چې بالاخره اروپا وتوانېږي په نړۍ حکومت وکړي.*[3]

*د پټو کسانو (صهيونېستانو) يو مهم دليل چې لومړۍ نړيواله جګړه يې پيل کړه، تر جګړې وروسته د نړيوال حکومت جوړول وو، ځکه که غواړئ چې ملي مونوپولي او انحصار ولرئ، بايد ملي حکومت په کنټرول کې ولرئ او که وغواړئ چې نړيوال مونوپولي او انحصار ولرئ، بايد نړيوال حکومت په خپل واک کې راولئ.*[4]

د هرې نظريې د پلي کولو له پاره واک ته اړتيا ده او د نوي نړيوال نظم د پلي کولو او د نړيوال مونوپولي او انحصار له پاره هم د دا ډول اړتيا احساس کېده؛ نو ځکه انټرناسيونالېستانو د ملګرو ملتونو د نظام په جوړولو پيل وکړ، لکه څنګه چې نيويارک

1. George J. Church; A New World; Sep 17 1990; p 23

2. President Bush in a televised address before a joint Session of Congress, Sep, 11 1999 (weekly Compilation of Presidential Documents; Sep, 17 1990; Vol. 26 Number 37; pp 1359-60)

3. Imran N. Hosein; Jerusalem in the Quran; p 108

4. Gary Allen with Larry Abraham; None Dare Call it Conspiracy; 5 Establishing the Establishment

ټایمز لیکي: *د سبا ر پوځ، نه سور لښکر دی او نه د امریکا پوځ... کـه سـوله پـه پـام کـې وي، د څو ملیتـي ځواکونو سره چې د اوربندونو څارنه وکړي، راځـي. د سولې ساتونکـي د ملګرو ملتونو لـه شـنو خولیـو سـره همـدا دنـده ترسـره کـوي.*[1] فرانسـه او امریکـا لـومړي هېوادونه وو چې د ملګرو ملتونو له پـاره یـې نظـامي قـواوې ورکـړې او بیـا وروسـته نـورو هېوادونو، په ځانګړې توګه د ناټو غـړو هېوادونـو د ملګـرو ملتونـو د اردو پـر جوړولـو کـې عمده مالي او نظامي مرستې، تجهیزات او د نظامي سرتېرو تدارک وکړ.

د ملګرو ملتونو د سرتېرو شمېر چې د اسماني خولیو او سولې د ساتونکو په نوم هـم پېژندل کېږي له سلو زرو سرتېرو زیات دی، خو ملګري ملتونه یې د اړتیا پر مهال له غړو هېوادونو څخه زیات سرتېري غواړي او هېوادونه به یې د ۲۴ ساعتونو په موده کې ملګرو ملتونو ته لېږي.

د ملګرو ملتونو د سولې سـاتونکي هـر مهـال چـې د غربـي لـه ضـدو هېوادونـو او پـه ځانګړې توګه له اسلامي هېوادونو څخه کومه تېروتنـه وشـي د جنایـت کولـو او ظالمانـه سلطه ګرۍ له پاره حاضرېږي.

په داسې حال کې چې که غربیان او د هغوی متحدین کوم جنایت وکړي، د سـولې د دې ساتونکو لاس او پښې تړل شوي وي او د دې سازمان مشران یا دې ډول جنایتونو ته پام نه کوي او یا یې هم توجیه کوي. د ملګرو ملتونـو د سـولې سـاتونکو جنایتونـه پـه لومړیو عملیاتو په کانګو کې په پوره توګه ښکاره وو چې په زرګونه افریقـایي تـور پوسـتي غیرنظامیان یې ووژل او پر ښځو یـې تېـری وکـړ، خـو کلـه چـې پـه برمـا او میانمـار کـې مسلمانان د بودایانو د نسل وژنـې او ظلـم لانـدې شـول، د ملګـرو ملتونـو صهیونېسـتي سازمان غلی و او هېڅ ډول غبرګون یې ونه ښود.

د ملګرو ملتونو تر ټولـو سـتر جنایـت دا دی چـې د اسـراییلو د صهیونېسـتي غاصـب رژیم پر مسلمانانو د ظلمونو پر وړاندې غلی پاتې او یاد سازمان له دې رژیم څخه ملاتړ کوي. ملګري ملتونه له پیدایښته تر اوسه د اسراییلو له غاصب او غیر قانوني رژیم څخـه په ملاتړ کې چې د دغه سازمان د پرېکړه لیک لـه مخـې پـه رسـمي توګـه تشـکیل شـو، ګڼل کېږي او تل د اسراییلو ظلمونه نه ویني او یا یې کله کله په ډېر اعظمي حـد کـې د یوې احمقانه بیانیې په واسطه ډېر په عادي ډول غندي.

د دې سازمان یو لـه اغېزمنـو غـړو امریکـا ده چـې پـه دې ملاتـړ کـې ډېـر مهـم رول لوبـوي. د *واشـنګټن لـه مـالي او نظـامي مرسـتو څخـه پرتـه لـه اسـراییلو سـره د پـراخ*

1. The Unsung New World Army; New York Times editorial; May 11 1992

*دیپلوماتیک ملاتړ دی. لـه ۱۹۸۲ زېږدیـز کـال راهیسـې د ملګـرو ملتونـو د سـازمان د امنیت د شورا ۳۲ پرېکړه لیکونه چې د اسراییلو پـر کړنـو نیوکـه کـوي، رد (Veto) کـړي دي.*[۱]

د نړیـوال حکومـت یـا نـوي نړیـوال نظـم جـوړول لـه سیاسـي، اقتصـادي، ټـولنیز او فرهنګـي نفـوذ پرتـه یـوازې د نظـامي قـوې پـه واسـطه شـوني نـه وو، نـو لـه دې املـه صهیونېستانو د غربي عصري تمدن په تحمیل او خپرولـو لاس پـورې کـړ چـې پـه پورتـه برخو کې پر اسلامي نړۍ او نړیوالو د خپل نفوذ متضمن وو.

## تمدن

تر اوسه پورې متفکرین او علماء د تمدن د مفهوم په اړه یوې ځانګړې موافقې تـه نـه دي رسېدلي او له تمدن څخه هر عالم او متفکر خپل ځانګړی مفهوم وړاندې کړی دی. ډېرو یې د حروفو، د سیاسي، ټولنیزو ټولنو، ښارونو، صنعت، ټکنالوژیکي پرمختګونـو، د ټولنیزو پاړکیو (طبقو) منځته راتګ، د دیني او خدای پېژندنې نظامونو د راښـکاره کېـدو پړاوونه ګڼي. د تمدن د ښې پوهېدنې له پاره کولای شـو پـه څـو برخـو کـې یـې وڅېـړو: فلسـفه او تمـدن، امپراتـوري او تمـدن، اقتصـاد او تمـدن، فرهنـګ او تمـدن، د ټـولنې پرمختـګ او تمـدن او نړیوالتـوب او تمـدن دی. یـو وخـت تمـدن د فلسـفې پـه محـور راڅرخېده او تر ټولو متمدن شخص تر ټولو فیلسوف شخص شمېرل کېده، د بېلګـې پـه توګه د یونان په تمدن کې، فیلسوفان د اشرافو ژوند لاره او ځان ته یې د خلکو لـه عـزت کولو، اغېزمنتیا او نغوذ څخه خوند اخیست او پـه دې مـوده کـې د فیلسـوفانو لـه خبـرو څخه د ژوند کولو د اصولو په توګه کار اخیستل کېده.

وروسته ځمکنۍ قلمرو هم د تمدن د مفهوم په توګه وکارېده او په دې قلمرو کـې بـه یې د امپراتورۍ ساتنې ته تمدن وایه، خو د اروپـا تـر صـنعتي انقـلاب وروسـته د تمـدن اصلي محور اقتصاد وګڼل شو او د متمـدن تـوب مقیـاس تکنـالوژیکي پرمختـګ چـې د اقتصادي پرمختیا بنسټ دی، شمېرل کېده.

وروسته بیا په نولسمې پېړۍ کې ځینو متفکرینو د فرهنګ مفهوم د تمدن له مفهوم سره یو ځای وکاراوه، فرهنګ یې د تمدن د معنویت پوره کوونکی وګاڼه او کله کله یـې د فرهنګ او تمدن کلمې په مترادفه توګه کارولې او د ترقۍ په اوسني چټک وخـت کـې د

---

۱. درخشه جلال او علیرضا کوهکن، له اسراییلو څخه د امریکا د ملاتړ دلایلو ته نوې کتنه؛ ۹۴ مخ

پرمختګ تیوري هم تمدن ګڼل کېږي چې د مدرنیت له دوو فرضیو سرچینه اخلي، یعنې له منفي څخه مثبت ته د بشر د یو اړخیز پرمختګ له غوښتنې سرچینه اخلي او د متمدنو ټولنو پرمختګ او د تمدن مفهوم یوه معنی افاده کوي. د نوي عصر په راڅرګندېدو او د ارتباطي تکنالوژیو په کشف او معنوي سرحدونو په له منځه تلو سره، نړیوالتوب هم د تمدن یوه برخه وګڼل شو او ځینې یې د تمدن یو اصل بولي؛ نو له دې امله د تمدن مفهوم پراویز و او د تاریخ په هر پړاو کې تمدنونو د تمدن د محور له مخې ځان ته ځانګړی تعریف لاره.

دا چې نن ورځ نړۍ له عصریتوبه نوي عصریتوب ته راغلې ده[1]، نو ډېری اصطلاحات په اصلي مفهوم نه کارول کېږي او مروج مفاهیم یې ځان ته غوره کړي دي د غربي عصري تمدن له نظرونو سره د یو شان کېدو له پاره کارول کېږي. د بېلګې په توګه په اوسني وخت کې کله چې د جنسیت له حقوقو څخه یادونه کېږي، ډېری مهال د ښځو حقوق ترې هدف وي، په داسې حال کې چې سړی او مخنث هم په جنسیتونو کې شامل دي؛ خو په دې وخت کې، روڼ اندی هغه چا ته ویل کېږي چې د غرب لیبرال، دموکرات او سېکولر نظریې تایید او خپروي.

په داسې حال کې چې روڼ اندی فکر هغه لوړ علمي شخص او داسې چا ته ویل کېږي چې د حقیقتونو په درک قادر وي، حق له باطل څخه بېل کړي او د حق له پاره مبارزه وکړي. د نورو اصطلاحاتو په څېر نن ورځ د تمدن مفهوم هم په مروجه بڼه کارول کېږي چې د متمدن کېدو مفهوم د غربي کېدلو په معنی دی، *ان د تمدن د معنی په اړه سرسري نظر سنجي ښيي چې د روڼ اندی، پرمختیا غوښتنې او تاریخي مکتب له مفاهیمو سره یو ځای تمدن چې د مدرنیت د وخت عمده شاخصونه دي، کارول کېږي.*[2]

د تمدن د پخواني مفهوم پرخلاف یعنې د وحشیتوب او بربریت پر وړاندې مبارزه د غربي عصري تمدن دا دواړه په خپله کې کړل او له هغې څخه په کار اخیستو یې د دجال د تولید شوي تمدن په رسولو لاس پورې کړ او د پخوانیو یونانیانو په څېر، غربیان هم هغه څوک دي چې د هغوی په تمدن کې شامل نه وي او نه د هغوی په څېر فکر کوي او نه هم د هغوی په څېر ښکاري، غیرمتمدن او بربري ګڼل کېږي.

---

۱. له Modernity څخه Postmodernity ته راغلی ده. (ژباړن)

2. Alexander Dugin; The Fourth Political Theory; 7 Civilization as an Ideological concept; Postmodernism and the Synchronistic Understanding of civilization

له سالم تمدن او خپلې سنتي بنې او فکر سره مسلمان د غربي عصري تمدن په واسطه د منلو نه دی او تل سپک ګڼل کېږي او بربري، تروریست، وروسته پاتې، زوړ فکری، بنسټ پالی او راډیکال ورته ویل کېږي. علمي نظریات یې نه لیدل کېږي او د فکر طریقې یې اهریمنی ښودل کېږي، د دې مسلمان دوه ښځې درلودل په ښځو باندې یو ډول تېری ګڼل کېږي، په داسې حال کې چې د یو غربي نامشروع اړیکه د نارینتوب نښه ګڼل کېږي او د ویاړلي پلی بای (Playboy) په نوم یادېږي.

دا تمدن غواړي ټول بشریت جبراً او یا د دوکه کوونکو سافټ وېیرونو لکه رسنیو، ټاکلو انټرنېټي سایټونو، موسیقۍ او علمي ظاهري کنفرانسونو په واسطه په خپل رنګ کړي او د اسلامي تمدن پر خلاف چې د اسلام د مقدس دین پر بنسټ دي، د بشریت له پاره د *جبر او د دوکې*[1] کار بد ګڼي، متکبر دی او له هرې لارې چې وي خپل تمدن نړیوال کړي.

## نړیوالتوب

نړیوالتوب چې د لومړي ځل له پاره په ۱۹۶۰ زېږدیز کلونو کې سیاسي ادبیاتو ته راننه ووت، په ټوله نړۍ کې د فرهنګونو په ادغام او د یو نړیوال فرهنګ په رامنځ ته کولو او د یو ځانګړي اقتصادي او سیاسي سېستم په پښو درولو له پاره هڅه کوي. د نړیوالتوب اصطلاح ذاتاً کومه بده معنی او مفهوم نه وړاندې کوي او ډېری ایډیولوژي ګانې او دینونه د نړیوالتوب په فکر کې دي، خو په مدرنیت عصر کې نړیوالتوب د بې خدایتوب سیاسي، ټولنیز او اقتصادي غربي سېستمونو مفهوم وړاندې کوي.

په نړیوالتوب کې د فرهنګي ادغام د ټولو سنتي رسومو او ارزښتونو له منځه وړل او پر ځای د غربي رسومو او فرهنګ زغملو په معنی دی. هغه ارزښتونه چې له کوم سوال پرته د هر چا له پاره په هر ځای او هر وخت کې معتبر ګڼل کېدل، *اوس د وروسته والي په حال کې دي او دا اوس منل شوې ده چې غربي ارزښتونو د ځانګړو ډلو په وسیله او له ځانګړو طریقو سره له تاریخي او ټولنیزو تجربو سره شکل نیولی دی.*[2]

د اقتصاد نړیوالتوب د سیاست او فرهنګ د نړیوالتوب د پراو پیلامه شمېرل کېږي چې له اقتصادي او د پانګوالۍ سېستم د پراختیا له مخې د نورو ټولو سېستمونو پر ځای د یو مناسب بدیل په توګه د ټولنو په ادغام تاکید کوي. *اقتصادي نړیوالتوب*، د

---

۱. اسلام د خپلو نظرونو د نړیوال کولو له پاره له زور او دوکې څخه کار اخیستل نه مني.

۲. نش کت؛ معاصره سیاسي ټولنپېژندنه؛ د تقي دلفروز ژباړه، ۹۶ مخ

*دربېیم صنعتي انتقال له کبله د نوو ارتباطي او تکنالوژیکي وسیلو په مرسته، په نړۍ کې د تولید له پاره د ارزان بیه ځایونو د پیدا کولو او د محصولاتو د ګټورو بازارونو د موندلو په پلټنې سره ممکن شوي دي.* [1]

د اقتصاد په نړیوالتوب کې، جغرافیایي سرحدونه یوازې د منځنیو او غریبو پاړکیو (طبقو) له پاره دي او د اقتصاد پوهانو له پاره بې معنی دي، ځکه چې دې پوهانو د خپلو څو ملیتي شرکتونو په وسیله، خپل جغرافیایي سرحدونه په نالیدلو سرحدونو بدل کړي دي او د غریبو هېوادونو له سرچینو ګټه اخلي او د غریبو او منځنیو پاړکیو په غلامیتوب لاس پورې کوي.

د سیاست نړیوالتوب د سېکولرېزم او ولسواکۍ په قالب کې د لېبرالېزم په محور راڅرخي او له سیاسي پلوه د نړیوالتوب مهمه پایله د ولسواکۍ جوړول دي چې د اقتصاد او سیاست پوهان ترې د وړو اقلیتونو په ګټو او اکثریت په تاوان کار اخلي.

*د نړیوالتوب هوکړه کوونکو، د ولسواکۍ پراختیا د خپل استناد تر ټولو مهم محور کړې دی او د لېبرالېزم اغېزمنتیا، جذابیت او قانع کوونکې خاصیت یې د نړیوالتوب وړ ګڼلې دی او وایي: لېبرالېزم په خپل ذات کې نړیوال دی او نړیوال حکومت هم په اصل کې لېبرال دی، ځکه په دې کې نړیوالو بازارونو ته د نړیوالو قوانینو د حاکمیت او د لېبرالې ولسواکۍ د تمدن د معیار په سترګه کتل کېږي.* [2]

## د سېکولرېزم د سیاست نړیوالتوب

د لومړي ځل له پاره د سېکولرېزم نظریه د غرب د کلیسا د خرافاتو، تحریفونو، د علم ضد عقیدې، کبر او ظلم پر وړاندې رامنځ ته شوه چې د کلیسا قدرت ته یې د پای ټکی کېښود. هغه وخت یې د ماده پالو علماوو د درک له مخې، د بې خدایه ماده پاله نظام، بشري قوانین جوړ کړل. هغو علم پالو غربیانو چې سېکولرېزم یې جوړ کړی و، د مسیحیت د دین او کلیسا د کړکېچ د توپیر د درک ترمنځ مخ وو او یا یې نه غوښتل چې د دې دوو تر منځ توپیر وکړي، لکه نن ورځ چې د ځینو مسلمانانو انحطاطونه او ځینې اسلام نومې ډلې په اسلام پورې تړل کېږي.

د کلیسا تحریفات او کړنې یې په مسیحیت پورې وتړلې او د کلیسا پر وړاندې یې د مبارزې پر ځای د دین پر وړاندې پر مبارزې لاس پورې کړ او په پای کې یې په دین د

---

۱. تارولستر؛ د نړیوال کېدلو ګټونکي او بایلونکي؛ د مسعود کربسیان ژباړه؛ ۳۸ مخ

۲. سجادي، عبدالقیوم؛ افغانستان او نړیوالتوب؛ ۳۰ مخ

ظلم کولو نظریه له اروپا څخه ټولې نـړۍ تـه ولېږدولـه او د اسـلامي خلافـت د نظـام پـر وړاندې یې توطیه اچونه پیل کړه او په نړیوالو یې د منلو له پاره هڅې پیل کړې چـې پـه اسلام کې د کلیسا د علمي ظلم، فیوډالېزم او د استکبار ځانګړتیاوې موجودې نه وې.

د سېکولر اصطلاح د Soecalum Saecularis له لاتیني کلمې څخه اخیسـتل شـوې ده چې د روزګار یا دنیا په مانا ده او د غربي روڼ اندیو تر بریا وروسته په اصطلاحي مانـا راڅرګنده شوه چې د دنیا پر ځای د دین پـر وړانـدې کـارول کېـږي. سـېکولران پـه دې باور دي چې دین په حکومتي چارو کـې د لاسـوهنې حـق نـه لـري او بایـد لـه سیاسـت څخه لرې وساتل شي او دین یوازې په شخصي عقایدو او عباداتو پورې تړلی دی.

د خلافت په له منځه تلو سره، تقریباً ټوله اسلامي نړۍ پـه ملتپـالو هېوادونـو واوښـته چې د ملګرو ملتونو په غړیتوب سره یې لومړی د الله ﷻ د حاکمیت حـق ملګـرو ملتونـو ته وسپاره او د سېکولرېزم سېستم په راخپلولو سره یې الهي حاکمیت تر پوښتنې لاندې راووست. هغه یې دولت ته وسپاره چې دولتونه د الله د حرام ګڼلو په حلالولو او د حلالو په حرامول قادر دي او دا کار لـه الهـي دینونـو سـره پـه ښـکاره توګـه جګـړه ده، ځکـه د *ابراهیمي دینونو عمده ځانګړنه دا ده چې په کې د کفر او شرک (په دیـن کـې فسـاد او یا د یوازینـي خدای د عبادت د ردولو) ځای نشته، خو د سېکولر سیاسي سېستم چـې د مسیحـي – اروپایي بې خدایه تمدن پدیده ده او اوس مهـال د غربـي عصـري تمـدن پـه نوم پېژندل کېږي، د کفر او شرک پر بنسټ ولاړ دی.*

*پر وړاندې یې اسلامي خلافت دقیقاً د اللـه ﷻ د حاکمیـت د حـق پـه اصـل ولاړ دی چې الله ﷻ لوی دی او د هغه پاک ذات قانون، د ځمکې د مخ قانون دی. اسلام د څـو ګونو عبادت چې هم د دولت پیروي او عبادت وکړي او هم د یوازینـي اللـه ﷻ عبـادت او پیروي وکړي ردوي. د دین او سیاست دوه کلمې سره بېلـې نـه دي؛ ځکـه چـې اللـه ﷻ فرمايي:*

*د اسمانونو او ځمکې واکمنـي د هغه ده او هغـه ذات اول، اخـر، ظـاهر او بـاطن دی (الحدید، ۲-۳ایت)، نو له دې امله عبادت او پیروي په دولت پـورې نـه بلکـې یـوازې پـه الله ﷻ پورې تړلې ده.*[1]

د سکولرېزم په رامـنځ تـه کېـدو سـره، غربـي عصـري تمـدن د ولسـواکۍ پـه منلـو او خپرولو لاس پورې کړ چې د سېکولرېزم پـه څېـر د لېبرالېـزم لـه نظریـې څخـه سـرچینه اخلي. لېبرالېزم په مطلقې ازادۍ تاکیـد کـوي او د انګلیسـي لـه Liberty کلمـې څخـه

1. Imran N. Hosein; Jerusalem in the Quran; pp 114-115

چې له یو شي د ازادۍ په مانا دی اخیستل شوې ده. لېبرالېزم (ازادۍ) یې له ازادۍ سره مساوي وګڼه او تل یې په همدې (له ازادۍ) تاکید کړی او ورته مبارزه کوي.

لکه څنګه یې چې له نامه معلومېږي، د (ازادۍ) په اړه واضح او روښانه تعریفونه لري او په هغه ځای کې چې د (ازادۍ) مسئله په کې د ازادۍ اصلي مفاهیمو ته رسېږي، غلي پاتې کېږي او ان پر وړاندې یې مورچل یا موضع نیسي چې په دې حالت کې ازادي خپل واقعي مفهوم له لاسه ورکوي او منفي معنا خپلوي.

لېبرالان له لاندې شیانو ازادي وړاندې کوي:

- په مدني ټولنې، سیاست او اقتصاد د دولت کنټرول،
- د هغه عقاید او دین
- طبقاتي سېستمونه
- د اقتصاد له پاره هر ډول عامه مسوولیت
- قومي او دیني اړیکې او
- د ډلې هر ډول پېژندل (مسلمان، مسیحي او..)

لېبرالانو مخکې قدم کېښود او انسانان یې له کورنیو اړیکو څخه د سنتي بندونو او د همدې ازادۍ په چوکاټ کې هم جنس پالنې، د جنین سقط، له واده پرته نامشروعو اړیکو او له هر ډول ټولنیزو، دیني او سنتي قواعدو څخه ازادۍ ته هڅوي. په داسې حال کې چې لېبرالان د ازادۍ داسې نظریې چې د دین، سنت او حق ویلو پر بنسټ ولاړې وي او د لېبرالېزم مخالفې نظریې ولري، له منځه وړي.

لېبرالېزم د بشر د تمدن شیطاني برخلیک دی او د هغې د زهرجنو عقیدو پر وړاندې مبارزه او جګړه، د نړۍ د ټولو انسانانو یو اخلاقي او اړین کار دی، که په هره بیه وي موږ باید په پوره عقلاني او استدلالي توګه د دې نظریې پر وړاندې مبارزه وکړو او ان که بې فایدې، بې ځایه او له سیاسي پلوه ګواښناک او ناسم هم معلومېږي، حقیقت بیا بیا تکرار کړو. لېبرالېزم یوه اقتصادي او سیاسي ایډیالوژي او فلسفه ده چې د عصري زماني عمده برخه د لاندې نظرونو په قالب کې رانغاړي:

- فرد د هر شي مقیاس
- د شخصي ملکیت پر پاکې ځانګړنې باور
- د فرصتونو په برابرۍ د ټولنې د اخلاقي قانون په توګه تاکید
- د ټولنیزو- سیاسي ټولنو د قراردادي اوسېدو باور حکومتي ټولنو پر شمول باور
- د حکومتي، دیني او ټولنیزو تصدیو له منځه وړل چې د عامه حقیقت د

درک ادعا ولري.

- د قـدرت وېـش او د ټولـو حکـومتي ټولنـو د کنټـرول لـه پـاره د ټـولنيزو سېستمونو جوړول.
- د سنتي حکومتونو پر ځای او د دينونـو، خلکـو او نژادونـو پـه نظـر کـې نيولو پرته د مدني ټولنې جوړول.
- پر نورو سياسي شکلونو په سوداګريزو اړيکو واک، او
- *پر دې باور کول چې د خلکو تاريخي مسير او غربـي هېوادونـه د ټـولنې نړۍ لپاره د ودې او پرمختګ نړيوالـه الګـو ده او ټوله نـړۍ دې هغـه د يـوې قاعدې په توګه ومنـي.*[1]

په وروستۍ سېکولرې اسلامي نړۍ کې، د غرب عصري تمدن د تورو او نـورو پېژنـدل شوو چلونو په مرسته د لیبرالېزم په چوکاټ کې د ولسـواکۍ پـر تپلـو پيـل کـړی او ان د ځينو اسلامي علماوو په اجيرولو سره يې هغې تـه اسـلامي بڼـه ورکـړې ده او د اسـلام د پاک نوم په مختاړو او وروستاړو سره يې خپاره کړل، په داسې حال کې چې ولسـواکي او د هغې بنسټيز قوانين د اسلامي شريعت خلاف دي.

نوې سياسي ولسواکي په نوي غربي سېکولر تمدن کې راغله او د دولت او سياسـت د جوړولـو لـه پـاره يـوه بنسـټيزه اړتيـا يـې د سياسـي سـېکولرېزم ټاکنـه ده. سياسـي سېکولرېزم د سېکولرېزم د ټولو اړخونو په څېر، په ټولنه کې د دين رول او ارزښـت ردوي چې دا کار د دين او اخلاقي ارزښتونو د زوال او له منځه تلو سـبب دی او پـه ټولـه نـړۍ کې د ماده پالنې ارزښتونه خپاروي چې په پای کې د بې خدايه ژونـد کولـو د طرقـې د جوړېدو لامل ګرځي.

ولسواکي يو هوښيار چل دی چې په کې خلکو تـه د ازادۍ يـو باطـل او پـوچ خيـال ورکول کېږي، د بېلګې په توګه په ولسواکۍ کې هر ډول ژبنی، قـومي، نـژادي، رنـګ او جلد او د انسان د فزيکي بڼې تبعيض بد او مردود ګڼل شوی دی، په داسـې حـال کـې چې هېڅکله د يوې ټلويزيوني خپرونې د چلولو له پـاره يـو بدرنګـه او لنـډ قـدی کـس د ماده پالو له نظره د دې دندې له پاره نه دی ګمارل شوی. په ولسواکۍ کې تل د ازادۍ سندره غږول کېږي، په داسې حال کې، خپلواک خلک چې خپلواکي ولري، هېڅکلـه د دې اورېدو ته اړتيا نه لري.

1. Alexander Dugin The Fourth Political Theory; 9. Liberalism and Its Metamorphoses

ولسواکي ادعا کوي چې د اکثریتو، حاکمو او قانون جوړوونکو رایه یې ټاکي، په داسې حال کې چې د *ABC او واشنګټن پوسټ د خبري شبکې په واسطه د ۲۰۱۶ زېږدیز کال د اګسټ د ۳۱مې ټولپوښتنه*[1] ښیي چې د امریکا د خلکو اکثریت د دې پلوي نه دي چې هېلري کلېنټن او ډونالډ ټرمپ دې د هغوی حاکمان وټاکل شي.

د امریکایي ټولنې ۵۶ سلنه د کلېنټن د ولسمشر کېدو او ۶۳سلنه د ټرمپ د ولسمشر کېدو مخالف وو، یعنې د ۲۰۱۷زېږدیز کال له پاره هغه څوک د امریکا ولسمشر شو چې ۶۳سلنه خلکو نه غوښته، خو د هغه په منلو مجبور شول چې دا کار خپله د ولسواکۍ د اصل خلاف دی او د ولسواکۍ د دوکې اثبات وړاندې کوي. په *ولسواکۍ کې خلک په متخصصینو او سرګردانه دوو ډلو وېشل کېږي چې د متخصصینو په ډله کې هغه خلک شامل دي چې مسایل تحلیلوي، عملي کوي، پرېکړې کوي او سیاسي، ټولنیز او ایډیولوژیکي سېستمونه اداره کوي او د سرګردانو خلکو طبقه هم په ولسواکۍ کې برخه لري او د نندارچیانو رول لري چې په کړنو او پرېکړو کې برخه نه لري.*

*دا طبقه یوازې د دې حق لري چې د متخصصینو له ډلې یو چا ته ووایي، تاسې زموږ رهبر یاست؛ خو کله چې رهبر وټاکل شو بیا بېرته پر خپل ځای کېني او د ټولنې د یو ګډونوال په توګه نه بلکې د یو نندارچي په توګه د ټاکل شوي رهبر کړنې ویني. سرګردانه ډله په عمل کې د ګډون اجازه نلري؛ ځکه چې په دې حالت کې بیا د متخصصینو د ډلې له خوا د ستونزو د جوړولو په توګه شمېرل کېږي.*[2] د یو بل تعریف له مخې، ولسواکي د شپونکیانو په مرسته په پسونو باندې د لېوانو حکومت دی.

په هغو هېوادونو کې چې ولسواکي په کې عملي شوې ده، حاکمان تل له دوو مشهورو ګوندونو ټاکل کېږي او په هغو هېوادونو کې چې د سېکولر دا پدیده په کې نوې ده، بیا هم حاکم له دوو کسانو څخه ټاکل کېږي چې په سرګردانه طبقه د نفوذ اچونې له پاره د ټاکنیزو مبارزو په نوم له کافي شتمنۍ برخمن وي او د ټاکنو نوم ورکوي چې د همدې نامه له مخې خلکو ته د ټاکنو د حق یو باطل خیال ورکوي او دا طبقه کولای شوو لېوان ونوموو او هغه کسان چې دا لیوان د حکومتولۍ د ترسره کولو له پاره لوړ پوړو پوستونو (وزیر، سلاکار، مرستیال او ...) ته ټاکي د شپونکیانو په نومونو

---

1. ABC News/Washington Post Poll; Clinton/Trump Favorability; Aug. 31 2016

2. Noam Chomsky; Media Control; The Spectacular Achievements of propaganda; 2. The Open Media Pamphalet Series; Spectator Democracy

ونوموو چې د چومسکي په تعریف، لېوان او شپنونکیان په نومونو سره د متخصصینو په طبقه کې راځي.

سرګردانه ډله یا پسونه هغه خلک دي چې د خپلې رايې د حق په کارولو سره يې لېوانو ته د خپل ځان د ښکار کولو مشروعیت ورکړی دی او په دې فکر چې حاکم يې ټاکلی دی، ځان ته يې دوکه ورکړې ده او تر يوې مودې پورې د هغو حاکمانو په واسطه د خپل مال او ځان د تاراج کولو شاهدان وي چې يې ګمان يې کاوه موږ ټاکلي دي.

پارلمانونه د يو دموکراتيک نظام د قانون جوړونې د پوره کوونکې ډلې په توګه وي چې غړي يې د حاکمانو په څېر ټاکل کېږي او قوانين د رايو په اکثريت سره چې د ولسواکۍ بنسټ دی، تصويبوي چې ان کله کله د اسلامي موازينو پرخلاف وي.

پارلمانونه په ولسواکيو کې د اسلامي مختارو او وروستارو په واسطه، د قرانکريم د (وامرهم شورى بينهم) په حک کولو سره خپله قانون جوړونه راوړي، د قرانکريم دا مبارک ايات د بينهم (د اسلامي امت ترمنځ) خبره کړې ده او هغه کسان په کې شامل نه دي چې د سياست او دين د بېلوالي او کفري ايډيالوژۍ لکه کمونېزم، لېبرالېزم او فاشېزم پر منلو سره يې خپل ځان د اسلام له کړۍ څخه وويست، خو د نړۍ د سيکولر کېدو وروسته د پارلمانونو ډېری غړي دا ډول ځانګړتياوې لري او د ولسواکۍ مهم اصل (د اکثريت په واسطه قانون جوړونه) يې د الله ﷻ د يوازيني ذات په واسطه تر پوښتنې لاندې راوستی دی او باطل ګڼل کېږي؛ ځکه چې ډېری يې باطل دي او د دروغو او نفساني هواوو له مخې د شتمنۍ او قدرت د لاسته راوړلو له پاره جوړېږي. الله ﷻ فرمايي:

*که د ځمکې پر مخ له ډېرو خلکو پيروي وکړې، تا به د الله له لارې بې لارې کړي چې دوی له ګمان (هوا او هوس) څخه پرته نه ځي او له باطل او دروغو څخه بل فکر نه لري.*[1] په اسلامي نړۍ کې د غرب د عصري تمدن د بې خدايتوب د عقايدو خپراوی او منل دومره ساده کار هم نه و، له دې امله غربيانو د مسلمانانو پر سنتونو او فرهنګونو کار پيل کړ او د دجال د فتنو د خپراوي په مرسته يې ډېری مسلمانان په دې فتنه کې راګير کړل او د دجال د سېستم په ملاتړ عمل ته رانه وتل.

١. الانعام سوره، ١١٦ آيت؛ وَإِن تُطِعْ أَكْثَرَ مَن فِي الأَرْضِ يُضِلُّوكَ عَن سَبِيلِ اللّهِ إِن يَتَّبِعُونَ إِلاَّ الظَّنَّ وَإِنْ هُمْ إِلاَّ يَخْرُصُونَ ﴿١١٦﴾

# فرهنګي يرغل

لېبرالېزم او ورسره تړلې پديدې چې فرهنګ هم په کې شامل دی، کولای شو د وخت د جاهليت نوم ورکړو چې اوس مهال د غرب د عصري فرهنګ په نامه يادېږي. د اسلام او جاهليت تر منځ جګړه کومه نوې پديده نه ده؛ بلکې د اسلام له پيل څخه به د قيامت تر ورځې روانه وي. له اسلام سره د لېبرالېزم او ورسره د تړلو پديدو جګړه، تر نوو شرايطو لاندې هماغه د حق او باطل جګړه ده. په دې اړه يو غربي مبلغ لورنس براون وايي:

*د اسلام دين د دعوت دين دی. اسلام د نصاراوو او نورو ترمنځ خپرېږي. مسلمانان څو ځله له اروپا سره وجنګېدل او په ډېرو مناسبتونو يې اروپا ځان ته تسليم کړ. موږ له بېلابېلو مکتبونو وېره لرله؛ خو ډېر ناوخته پوی شول چې زموږ وېره بې ځايه وه؛ ځکه چې موږ له يهودو، زېړ جنس (جاپان او چين) او د کمونېزم له ګواښه وېرېدو، خو وروسته پوه شوو چې زموږ تېوله وېره بې ځايه وه؛ ځکه يهوديان زموږ کلک ملګري دي، نو له دې امله، د هغوی دښمنان زموږ دښمنان دي. بيا مو وليدل چې بلشويکيان (کمونېستان) له موږ سره په تړون کې شول؛ خو حقيقي ګواښ د اسلام پر بنسټ، پر نفوذ او د ژوند پر بريا کې دی. اسلام دی چې د اروپا د حقيقي استعمار دېوال دی.*[1]

اوس مهال د دې سترې جګړې يو مهم اړخ، د حق پر فرهنګ د باطل فرهنګ حمله ده چې د فرهنګي جګړې، فکري جګړې او فرهنګي حملو او نورو په نامه دي. *فرهنګي يرغل په دقيقو پلانونو سره يو پټ حرکت دی چې د بېلابېلو امکاناتو، وسيلو او طريقو څخه په کار اخيستو سره د ديني باورونو او ارزښتونو په خرابولو، د فکر په کوږوالي، د ټولنيزو سنتونو او ادابو په بدلون، په ټولنه د حاکمو اخلاقي اصولو په ورک کولو او د ملي فرهنګ په له منځه وړلو کار کوي او په پای کې د اسلام اصيل فرهنګ ته د پرديو د چټل فرهنګ رانښتل د دې يرغل له موخو څخه وګڼو، څو په دې سره، اړوند ملت د پوکې او پوچې لور ته راکاږي او کله چې يې هغوی له شخصيتي پلوه کمزوري کړي او د خپلواکۍ روحيه او د مقاومت قدرت (جهاد) ترې ترلاسه کړي، خپل فکري اصول القاء او خپل فرهنګ او باورونه پر هغوی ومني.*[2]

فرهنګي جګړه چې اسلامي نړۍ ورسره لاس او ګرېوان ده، د الهي فرهنګ او شيطاني او دجالي فرهنګ ترمنځ جګړه ده چې په کې دجال غواړي د فساد او ابتذال

---

۱. خالد، مصطفی و ع. فروغ؛ په اسلامي هېوادونو کې د کليسا رول؛ د مصطفی زماني ژباړه؛ ۲۴۳ مخ

۲. سعيديان، فهيمه؛ ځوانان، فرهنګي يرغل او په وړاندې يې د مبارزې لارې چارې؛ ۳ مخ

په خپراوي سره، د ماده پالنې فرهنګ چې په پوچ پالنې (Nihilism) تاکید لري او د انسانیت انساني اړخ هېر کړي او له انسان څخه یو مادي، تن پرست، ګټه اخیستونکی موجود راوپېژني او د الهي فرهنګ دا کار پر ځای کړي چې انسان ته له خاورین وجود سره الهي روان ګڼي، د کمال او ګټې تبلور یې ګڼي او د الهي ارشاداتو په رڼا کې یې سعادت او کمالویني او خپله دنیوي ارامتیا یوه وسیله، نه بلکې یو هدف ګڼي.

غربي فرهنګ چې په ډېرې چټکۍ سره پر اسلامي فرهنګ خپل سیوری غوړوي، د ماده پالنې، دنیا پالنې، مصرف پالنې، فردپالنې، پوچ پالنې او فحش پالنې څو عمده ځانګړنې لري.

د غرب عصري تمدن د ماده پالنې فرهنګ له دنیوي خوندونو څخه د مزې اخیستنې پر محور راڅرخي او انسان هغه مهال په کمال کېویني چې د دنیوي ارامتیا، راحت، کامیابۍ او لذت اخیستنې مقام ته رسېږي او یا د هغې پر لور په حرکت کې وي، نو له دې امله دا تمدن د مصرف پالو او ماده پالو په دروغجنو تبلیغاتو لاس پورې کوي او یو داسې فرهنګ جوړوي چې په کې اخلاق، معنویت او انساني ارزښتونه ځای نه لري.

د دې فرهنګ وروستۍ موخه د مادیاتو لاسته راوړل دي چې د هغې د لاسته راوړلو له پاره انسان ته په ټولنه کې ځانګړی ځای، جلال او مقام ورکوي قایلېږي چې مستقیماً د اسلام له ارزښتونو سره په ټکر کې دي. الله ﷻ فرمایي: *د خلکو له پاره نفسي غوښتنې، ښځې، اولادونه، د سرو سپینو زېرمې، ښه شوي (کره) اسونه، څاروي او کروندې د ډېرې مینې وړ ګرځول شوي دي (څو په دې لاره ازمایښت او وروځل شي)، خو دا هرڅه د څو ورځنۍ دنیوي ژوندانه وسایل دي. په حقیقت کې چې کوم ډېر ښه استوګنځی دی، هغه له الله ﷻ سره دی.*[1]

د مصرف پالنې په فرهنګ کې، سعادت او نېک بختي د یوه کس د مصرف په اندازې او په ځانګړې توګه د اجناسو په پېرلو متکي ده او خوښي د مادي شتمنۍ د اندازې او مصرف په محور راڅرخي. په یوې مصرف پاله ټولنه کې، خلک خپل ډېر وخت، انرژي او سرچینې پر مصرف او پېرلو مصرفوي او په دې ډول ټولنه کې د ژوندانه کُلي نظریه دا ده چې انسانان تل په کې حریص وي او مرښت ونلري او ډېر ډېر وغواړي، خو هره ټولنه دې عقایدو، باورونو، ارزښتونو او سننو ته په پام سره د دې ډېرو لپاره، یو لړ قانونونه او قاعدې لري چې د هغو په چوکاټ کې دا ډېر غواړي، خو په مصرف پاله ټولنه کې چې په هر ډول دا زیاتونې لاسته راتلی شي او د لاسته راوړنو پر

---

۱. آل عمران سوره؛ ۱۴مه آیه ۱۴، زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوَاتِ مِنَ النِّسَاء وَالْبَنِينَ وَالْقَنَاطِيرِ الْمُقَنطَرَةِ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَالْخَيْلِ الْمُسَوَّمَةِ وَالأَنْعَامِ وَالْحَرْثِ ذَلِكَ مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَاللّهُ عِندَهُ حُسْنُ الْمَآبِ ﴿۱٤﴾

وړاندې هېڅ ارزښت او باور (خصوصاً دين) خنډ نشي جوړېدای او يوازې يو قالب چې د غرب ځو سياست مدارو او پانګوالو هغه قانون نومولی دی او تل په کې د هماغو سترو پانګوالو ګټې تامين وي، چې په همدې قالب کې قدم اېښودلی شي.

د نړۍ ستر پانګوال بېل ګېټس وايي: که نړۍ ته فقير راغلې، ملامت نه يې خو که له نړۍ فقير ځې نو ملامت يې. د بېل ګېټس دا خبره هره ورځ ځو ځله د رسنيو، سوداګرو او مسلمانو ځوانانو تر منځ په ټولنيزو غونډو، علمي مرکزونو او ټولنيزو رسنيو کې د خلکو په ژبه وي، د هغه دا خبره په دې مانا ده چې که له هرې لارې وي، بايد شتمن شئ او ان د شتمن کېدو له پاره د خپل ځان په ځېر په سود خوړلو، ګټې اخيستنې او مهار کولو لاس پورې کړئ او په ځينو ځايونو کې د چل، دوکې، رشوت او نورو مالي فاسدو لارو څخه کار اخيستلی شئ.

اسلام هېڅکله خپلو پيروان فقر او ناداری ته نه دي رابللي، خو د شتمنۍ د ترلاسه کولو له پاره يې ورته يو لړ قاعدې اېښې دي چې فساد په کې هېڅ ځای نه لري، له بې عدالتۍ په کې مخنيوی شوی دی، د طبقو توپير په کې راغلی نه دی او د وخت او پانګې ترمنځ تعادل او برابري په کې مراعات شوې ده.

رسنيو د رنګين ژوند د طريقې او توليداتو په ښودلو او هغه د يو اېډيال ژوند په توګه له وړاندې کولو سره د مصرف پالې فرهنګ رواج کولو سره يې ډېره مرسته کړې ده او دومره اغېز يې کړی دی چې خلک يې د يو با ارزښته جنس د اخيستلو له پاره د برنډ (Brand) په نوم له واقعي ارزښت څخه ځو برابره لوړ بيه کوي.

په مصرف پاله ټولنه کې يوه تر ټولو ستره تفريح خريداري ده او هغه خلک چې خپل ډېر وخت د پيسو په لاسته راوړلو مصرفوي، په خپلو بېکاره وختونو کې شيان پېري. د پېرېدنې له پاره پيسو ته اړتيا ده او د پيسو لاسته راوړل وخت (د ژوند ګران بيه پانګې) ته اړتيا ده. په مصرف پاله ټولنه کې، د دوو ټاکنو (وخت او پيسو) تر منځ انسان مجبور دی چې پيسې وټاکي او د دې لامل ګرځي چې انسان د عبادت، تفرېح، مطالعې او ټولنيزو اړيکو وخت د مصرف پالۍ قرباني کړي چې پايله يې فرد پاله ټولنه ده.

ټول اسماني دينونه د جمعي پالنې (Collectivism) او ټوليز ژوند د اصولو او پېژندلو ته عقيده لري او د هغوی پيروان د (مسلمان، يهودي او مسيحي) په نامه پېژندل کېږي، خو د دجال او له هغه سره د ملو شيطانانو کار د ديني باورونو او دين پر وړاندې مبارزه ده او د ژوند د جمعي او جمعي پالنې اصولو پر وړاندې د فرد پالنې (Individualism) فرهنګ په خپراوي سره د غرب پر عصري تمدن لاس پورې کړ. د

*فرد پالنې نظريه له لیبرالیزم سره ګډه ده او په کې د فرد اعظمي ازادي، له ډېلو څخه د وتلو او يو ځای کېدلو اختيار او په يوه ډله کې د شخص مساوي ګډون په کې شامل دي.*[1]

*فرد پاله ټولنه هغې ټولنې ته ويل کېږي چې د خلکو تر منځ په کې اړيکې کمزورې وي او هر کس بايد د خپل ځان او نږدې کورنۍ په فکر کې وي. په مقابل کې د جمعي او جمعي پالنې د ژوند اصول او جمع پالنه، هغې ټولنې ته ويل کېږي چې خلک په کې له زېږېدنې وروسته تر مرګ پورې يوې ځانګړې ډلې ته وفادار او صادق وي او په يوه منسجم او يو موټي توګه کار وکړي.*[2]

په فرد پاله ټولنه کې، د ټولنې د غړو ترمنځ د کافي اړيکو او ارتباطاتو د نشتوالي لـه امله، خلک ډېر لږ ډله ييزو موخوته لېوالتيا ښيي او زيانمن کېږي چې پـر وړانـدې يې جمع پالې ټولنې کمزورې وي او له هغوی سره تړل کېدو تـه اړ وي، د بېلګې پـه توګـه، يهوديان چې نظـر مسـلمانانو او مسيحيانو تـه يـوه ډېـره کـوچنۍ ډلـه ګڼـل کېـږي، د مسلمانانو او مسيحيانو ستره کتله يې له فرد پاله کېدو څخه وروسته کنټرول او پـر ځـان پورې يې وتړله.

فرد پاله ټولنه د فرد په مطلقې ازادۍ تاکيد کوي او د ډله ييزو وابستګيو پـر وړانـدې (کورني، سيمه ييز، قومي او ملي) مبارزه کوي چې د ټولنې ارزښتونه، سنتونه او فرهنګ له منځه وړي، خلک او افراد په فردي توګه د ځان له پاره يو لږ ارزښتونه د شخصي درک او فهم له مخې او يا ډېری مهال له پوچ پاله او غربي فرد پاله فرهنګ څخـه د تقليـد لـه مخې مني.

د بېلګې په توګه هغه کسان چې ډله ييز اسلامي ژوند لري، لـه مخـالف جـنس سـره نامشروع اړيکې حرام او بدې ګڼي، په داسې حال کې چې فرد پالونکي دغې اړيکې تـه د خپلواک پاتې کېدو، عصريتوب او د بافرهنګ کېدو په سترګه ګوري او پرې وياړ کـوي. فرد پالنـه لـه ټـولنې سـره د فـرد تـړل شـوي تارونـه غوڅـوي او انسـان يـوازې کـوي او د افسردګۍ په څېر د رواني ناروغيو او روحي فشارونو لامل کېږي.

*په يوې ټولپوښتنه کې کله چې لـه ګـډونوال څخـه دا غوښـتنه شـوې وه چـې د شـلو پوښتنو په تشو ځايونو کې چې "زه ..... يم"، متن يې لاره خپـل ټـولنيز حالـت وليکـي، ډېرې کسانو چې په جمع پاله ټولنو کې ژوند کاوه، د (زه کاکـا يـم)، (زه د يـوې کـورنۍ غړی يم)، (زه پلار يم) او نورو ډول ډول پوښتنو په ځوابولو سره د ټولنـې لـه حالـت څخـه*

1. Encyclopedia Britannica; Vol 12; p 256a

2. Harry C. Triandis & Michele J. Gelfand; Hand Book of Theories of Social Psychology; p 504

*راضي او خوښ وو. په داسې حال کې چې په فرد پاله ټولنه کې يوازې پنځلس سلنه وګړي له ټولنيز ژوندانه خوښ ښکاريدل.*[1]

په فرد پالو ټولنو کې کورنيو ارزښتونو ته وابستګي کرار کرار خرابېږي او کورنۍ اړيکې بې ارزښته کېږي، *د طلاق کچه لوړېږي*[2] *او د ټولنيزو او ډله ييزو موخو په پرتله فردي موخو ته لومړيتوب زيات وي چې په ټولنه کې د ټولنيزو اختلافاتو لامل ګرځي*[3] او دا سم د جمع پالنې سرچپه ده چې په کې قواعد، مسووليتونه او اخلاق د فرهنګ او باور له مخې ټاکل کېږي.

په داسې حال کې چې په فرد پاله ټولنه کې سلوک او اخلاق د فردي اړتياوو، فردي حقونو او داسې ترړونونو له مخې ټاکل کېږي چې يو کس د ټولنې له نورو خلکو سره تړلی دی، د کورنيو اړيکو دايره کوچنۍ کېږي، کورنۍ په ښځې، اولاد او والدينو پورې منحصرېږي او يا په پوره توګه په يوه بېل انفرادي ژوند بدلېږي او په پای کې ژوند بې هدفه کېږي، پوچ پالنه عامېږي او تر دې حده انسانان تر روحي فشارونو لاندې راځي چې په ځان وژنې لاس پورې کوي *او د ځان وژنې کچه لوړېږي.*[4]

پوچ پالنه (Nihilism) د ژوندانه داسې طريقه ده چې هدف او مقصد نه لري، له مذهبي او ديني عقايدو او باورونو څخه پاکه وي او ژوند په کې خپله واقعي معنا له لاسه ورکړې وي. *د پېژندل شوي الماني عالم، نيچه په وينا، پوچ پالنه د يو داسې مقصود او لارې له لاسه ورکول دي چې په کې له مفهوم څخه ډک توپيرونه هم سطحه کېږي .*[5]

په پوچ پاله ټولنه کې (عقايدو او باورونو ته) پوره ژمنتيا خطرناکه وابستګي ګڼل کېږي او خلک له پوره ژمنتيا سره، بنسټ پالي نومول کېږي. پوچ پالنه هم د فرد پالنې په څېر د اړيکو په پرې کېدو، ځان بساينې او د عقل پر بنسټ پر ټاکنو تاکيد کوي او د جمعي پالنې د ژمنتياوو پر وړاندې مبارزه کوي او باعث ګرځي چې ژمنو خلکو ته د لېوني خطاب وشي.

په اوسني مهال چې له ساده او وژونکو وسلو څخه کار اخيستل اسانه شوي دي، نظامي استعمار چې د ملتونو او په ځانګړې توګه د اسلامي ملتونو له پاره ډېر حساسيت

---

۱. همدا سرچينه، ۵۰٦ مخ

2. Laster D.; Individualism and Divorce; Psychological Reorts; p 76

3 د لا زياتو معلوماتو له پاره .Harry C. Triandis; Individualism and Collectivism

4. Harry C. Triandis & Michele J. Gelfand; Hand Book of Theories of Social Psychology; p 511

5. Hubert L. Dreyfus; Heidegger on the Connection between Nihilism, Art, Technology and Politics; p 4

پاروونکی دی، شونی نه دی، نـو لـه دې املـه غربـي اسـتعمارگرانو د فرهنگـي اسـتعمار اوږدمهاله، پټـه دوکـه کـوونکې، ارامـه، پراخـه، کـم مصـرفه، بـې غـږه او نالیـدونکې لاره وکارولـه چـې د اسـتثمار پـه نامـه هـم یـادېږي. اسـتثمار د اسـتعمار سـاده لاره چـې استعمارچیان یې د نظامیانو له رالېږلو او درنـو نظـامي مصـارفو پرتـه، هېوادونـه د خپـل فرهنگ په واسطه په ځان پورې تړلي او گټه اخیستل ترې پیلوي.

د دې له پاره چې غربیان تـر خپلـو اسـتثماري تـورو وربځـو لانـدې اسـلامي ښـارونه راولي؛ نو باید د غرب د عصـري فرهنـگ پـه منلـو او خپرولـو لاس پـورې کـړي او دا هلـه شونې ده چې د هېوادونو په ځانگړې توگه د اسلامي هېوادونو فرهنگ له منځه لاړ شـي او دا فرهنگ خلکو ته په یو نه یو بـد ډول ور وپېژنـدل شـي او د هغـوی د وروسـته پـاتې والي نښه وگڼل شي او په مقابل کې یې د غرب د عصري فرهنگ تبلیـغ پـه داسـې ډول وشي چې انسانیت په کې ځلېږي او د پرمختگ او وړاندې والي نښه وگڼل شي.

د اسلامي فرهنگ له منځه تلل د څو مهمو تگلارو په چوکـاټ کـې رامـنځ تـه شـوی چې پر باورونو، اعتقاداتو او ارزښتونو کې د شک او تردید رامـنځ تـه کـول وو، لـه دنیـوي چارو د دیني علماوو او روحانیت بېلوالی و او د دیني شعایرو او دین څخه سرښندنه یـې یوه بې مانا پدیده معرفي کړه او ویـې ښـوده چـې د فحشـا او فسـاد پـه خپرولـو سـره پـه اسلامي فرهنگ، هېڅ هم نه کېږي چې په دې سره فرهنگي تشې راغلې دي.

د طبیعت د قانون له مخې، رامنځ ته شوې تشې باید ډکې شي، کله چې په اسلامي ټولنه کې فرهنگي تشه راشي نو د غـرب عصـري فرهنـگ یـې د بـدیل پـه توگـه وړانـدې کېږي د غرب د ژوندانه دې طریقې او فرهنگ ته باید د دجال جنت وویل شي. دجال د *خلکو له پاره جنت او دوزخ وړاندې کوي چې د هغه جنت حقیقـي دوزخ او د هغـه دوزخ حقیقي جنت دی.*[۱]

کله چې د غرب د عصري فرهنگ او تمدن یادونه کېـږي؛ نـو د ډېـرو خلکـو پـه ذهـن کې د نیویارک ښکلې ودانـۍ، د سـویس شـنې منظـرې، د پـاریس عشـقونه، د جرمنـي ښکلي فاحشې مېرمنې، د بروکسل شراب خانې او د لندن اشرافیت راگرځـي او د غـرب عصري ژوند له جنت سره تشبیه کوي.

په داسې حال کې چې له دې جهنمي ژوندانه څخه بېلوالی د دوزخ په نوم یـادوي، خو د دې تمدن ماهیت څوارلس سوه کاله وړانـدې حضـرت محمـد ﷺ کـړی دی چـې ویل یې جنت به یې دوزخ او دوزخ به یې جنت وي، اوس رښتیا شوې ده.

---

۱. صحیح مسلم؛ ۲۹۳٦ حدیث او صحیح بخاري؛ څلورم ټوک؛ ۱۰۴ حدیث

الله ﷻ هم موږ ته د شیطان له دوکو او غولونې خبرداری راکوي او فرمايي: *اې د ادم اولادې، شیطان تاسو ته دوکه درنه کړي، لکه څنګه یې چې ستاسو پلار او مور له جنت څخه راوویستل او د هغوی لباس یې له اندامونو راوویست.*[1]

## جنسي انقلاب

په هر فرهنګ او ایډیالوژۍ کې د جنسیت مسله د بشریت د تاریخ په اوږدو کې د ډېر اهمیت وړ ده او هر یو یې ځان ته ځانګړی تعریف لري. بشري تاریخ دا راښیي چې ډېری مهال په بېلابېلو فرهنګونو او ایډیالوژیو کې د سړي کلمه هغه چا ته کارول کېږي چې له سیاسي حقونو برخمن وي.

د بېلګې په توګه په پخوانۍ زمانه کې غلامان په ډېرو فرهنګونو کې سړي نه شمېرل کېدل، نو له دې امله یې سیاسي حقونه نه لرل او ان ښځې حسابېدل، نو له همدې کبله د ښځینه جامو په اغوستلو اړ وو، څکه ښځو د تاریخ په اوږدو کې په ډېریو فرهنګونو کې سیاسي حقونه نلرل او ان په منځنیو پېړیو په اروپا کې هغه ډله ښځې چې میاشتنۍ مریضي به یې لرله، مرداري (پلیتي) ګڼل کېدې او له سړیو څخه په لرې قفسونو کې په ژوند کولو مجبورې وې.

یهودیانو به ښځو ته اجازه نه ورکوله چې عبادت ځای ته ننه وزي او اعرابو د جاهلیت په زمانه کې، خپلې نوې زېږېدلې لوڼې ژوندۍ ښخولې چې د اسلام په راتګ سره د پر هغو فرهنګونو د بطلان خط وکاږل شو چې ښځې به پکې ځپل کېدې. او اسلام ښځو ته سیاسي حقونه ورکړل.

د غرب عصري تمدن هم په سړیپالي سیاست پیل شوی دی او تر ډېرې مودې په کې ښځې د سیاسي حقونو او ان په ولسواکیو کې د خپل مشر د ټاکلو له پاره د رایې ورکولو له حقونو برخمنې نه وې. وروسته د سړیو او ښځو د برابرۍ د حرکت په چوکاټ (Feminism)[2] کې ښځو ته د سیاسي حقونو د ورکولو له پاره د دې پر ځای چې د ښځینه فطرت په قالب کې ورته سیاسي حقونه ورکړي، د هغوی په سړي جوړونې (نارینه کولو) یې پیل وکړ. د ښځو له پاره د سړیو ځانګړتیاوې ورکړل شوې:

---

۱. الاعراف سوره، ۲۷مه آیه، يَا بَنِي آدَمَ لاَ يَفْتِنَنَّكُمُ الشَّيْطَانُ كَمَا أَخْرَجَ أَبَوَيْكُم مِّنَ الْجَنَّةِ يَنزِعُ عَنْهُمَا لِبَاسَهُمَا لِيُرِيَهُمَا سَوْءَاتِهِمَا إِنَّهُ يَرَاكُمْ هُوَ وَقَبِيلُهُ مِنْ حَيْثُ لاَ تَرَوْنَهُمْ إِنَّا جَعَلْنَا الشَّيَاطِينَ أَوْلِيَاءَ لِلَّذِينَ لاَ يُؤْمِنُونَ ﴿۲۷﴾

۲. فېمېنېزم (Feminism): په دې باور چې ښځې د سړیو په څېر د ورته حقونو، واکونو او چانسونو لرونکې دي؛ د ښځې او سړي برابري، د ښځو پلویتوب؛ ښځه پالنه.

*یوه سوداګره ښځه هغه څوک ده چې د سړیو په څېر ظرفیت ولري، نو له دې امله ښځې د نارینه وو په شان دي. لیبرال فیمېنستان یا ښځو ته د خپلواکۍ ورکولو هیله من په دې باور دي چې ښځه د نارینه په توګه ده او له دې امله له سیاسي-ټولنیز پلوه له سړیو سره مساوي شمېرل کېږي څو ښځه په ټولنه کې د سړي په څېر ښکاره شي. ښځه باید له سړیو سره مساوي تخنیکي حقونه ولري.*

*او له دې امله باید د سړیو په څېر کړنې ولري څو له سړیو سره مساوي وګڼل شي، خو د سړي او ښځې ټولنیز جوړښت د نه بدلېدو وړ پاتې کېږي.*[1]

د فیمېنېزم حرکت د لومړي ځل له پاره په ۱۹۷۰زېږدیز کال په اروپا کې پیل شو د اصلي موخه یې د ښځې او سړي ترمنځ په هر لحاظ د مساوي علامې اېښودل وو او د جنین د سقط حق، د کار حق، د مساوي معاش حق، په کور کې د مساوي کار حق، د خوښې جامو د اغوستلو حق او په پای کې د ښځو له پاره د مطلقې خپلواکۍ د حق په څېر موخې په کې شاملې وې. دا حرکت لومړی په دې وتوانېد چې د ښځو له پاره سیاسي حقونه او د رایې ورکولو حق لاسته راوړي چې ټولنپوهان یې د سړي او ښځې د برابرۍ د حرکت لومړۍ څپه ګڼي.

تر دې وروسته د سړیو او ښځو د برابرۍ حرکت په پراخو تبلیغاتو سره ښځې یې د نارینه وو د نقش لوبولو او اداري، سیاسي او اقتصادي صحنو ته یې د راتګ لپاره کار وکړ. او ښځو ته یې د رسمي او حتا لوړو دندود ورکولو هڅې وکړې چې د سړي او ښځو د برابرۍ د حرکت دویمه څپه ګڼل کېږي.

د دې حرکت درېیمه څپه ۱۹۸۰ زېږدیز کال ته ورګرځي او ډېری مهال د پسافیمېنېزم په نامه هم یادېږي، ښځو ته یې مطلقه خپلواکي اعلان کړه، حیا یې له منځه یوړه، د هغوی له وجودونو یې لباس وویست او ښځې یې جنسي مفعولې وګرځولې. په حقیقت کې، هغه څه چې اوس د ښځو او سړیو د برابرۍ د حرکت درېیمه څپه پېژندل کېږي، *له پسافیمېنېزم سره (چې په کومې تیورۍ ولاړ نه دی) او د رسنیو په مرسته چې خپرېږي، د بېلولو وړ نه دي چې د مېشل ګولډبرګ په واسطه د ښځو د حقونو د پلویتوب، د اخیستل-او-... (Shopping and Fucking Feminism) په نوم کتاب کې ویل شوي، هغه لیکي:*

*د ښځو د حقونو د پلویتوب نوی ډول، یعنې اخیستل-او-... اوس ډېر عام شوی دی ځکه چې د مصرف پالې ټولنې پیغام سره ورته والی لري چې په کې ازادي د ډېر او ګرم*

1. Alexander Dugin; The Fourth Political Theory; 13. Gender in the Fourth Political Theory

*سکس، د غوره خوړو مصروفول او د لوړو ماړکو لرونکو بېلابېلو نښو لباسونو، بوټونو او ارایشي وسایلو او کافي غذا لرل دي.*[۱]

ښځو د سیاسي حقونو د لاسته راوړلو له پاره د سړیو تمثیل پیل کړ، د سړیو کړنې یې خپل کار وګرځاوه او تر دې کچې یې د سړیو د لباس اغوستل او نور تقلیدونه په ټولنه کې پیل کړل چې د وروستي پیغمبر حضرت محمد ﷺ حدیث وینا سمه شوه چې فرمایي: *ښځې د سړیو تقلید کوي (د سړیو په څېر لباس اغوندي).*[۲]

پسافېمېنسټان پر مطلقې خپلواکۍ په ځانګړې توګه له واده پرته په جنسي اړیکو ډېر ټاکید کاوه او دوو مخالفو جنسونو تر منځ د نفرت په تشویق او تبلیغ لاس پورې کوي. *د فېمېنېزم پنځه اساسي عنصر له سړیو څخه نفرت، وسوسې، دروغ، دوکې او افسانې دي. دا پدیده له ډېرو سړیو څخه د هغوی د کار د حق د له لاسه ورکولو او د لږو ښځو په مرسته د هغوی د فطرت په خونبه د باورونو د منلو او د هغوی په اقتصادي پاینېت د تکیه کولو سبب شو. فېمېنېزم په ښځو او سړیو کې د ډېرو اروایي ناروغیو په ځانګړې توګه په ښځو کې لامل ګرځي. دا پدیده تر ټولو خطرناکه فکري طرز دی چې په ننۍ نړۍ کې د فاشیزم او کمونیزم له ماتې وروسته په یوویشتمه پېړۍ کې مخ په پرمختګ دی.*[۳]

جنسي خپلواکۍ د کورنۍ او فامیل بنسټیز بنیادونه متزلزل کړل او د ټولنې د دې مهم بنسټ د له منځه تلو سبب شو، په دې اړه کارل وېلسن په (زموږ نځا په مرګ واوښته) کتاب کې د روم په امپراتورۍ او د غرب په عصري تمدن کې د کورنۍ د زوال د پړاوونو په اړه یې لیکلي: د روم په امپراتورۍ کې د کورنۍ د زوال اووه پړاوونه وو چې اوس په امریکا او غرب کې هم تکرارېدونکي دي.

**لومړی پړاو:** سړي په عبادتونو کې د کورنۍ له مشرۍ لاس اخلي، د معنوي ارزښتونو پراختیا یې دویمه درجه خپلوي او خدای ته د خلکو عقیده طبیعي، مادي او میخانیکي کېږي.

**دویم پړاو:** سړي د مادیاتو او سیاسي او ټولنیز موقف او قدرت د لاسته راوړلو له پاره ښځو او ماشومانو ته پاملرنه نه کوي، مادیات پر افکارو برلاسي کېږي.

---

1. Rhonda Hammer and Douglas Kellner; Third Wave Feminism: Sexualities, and the Adventures of the Posts; pp 9-10

۲. علامه جلال الدین سیوتي؛ در منصور

3. Mike Buchanan. Feminism, the Ugly Truch. Pp. 2-3

**درېیم پړاو:** دا پړاو په جنسي ارزښتونو کې بدلون پورې اړه لري. هغه سړي چې د خپلې سوداګرۍ او مادیاتو مینه وال او په کې بوخت دي او خپلو مېرمنو ته وخت نه لري، نو له واده پرته جنسي نږدېوالي ته اړ کېږي او یا هم همجنس پالنې ته مخه کوي.

**څلورم پړاو:** په دې پړاو کې ښځې اغېزمنېږي او په کورنۍ کې د ماشومانو او د کورنۍ د نورو غړو پر وړاندې خپل ارزښت له لاسه ورکوي. هغه ښځې چې مېړونه یې ورته لږه پاملرنه کوي، ډېر ژر د مادیاتو د ترلاسه کولو له پاره له واده پرته (له خاوند پرته) جنسي ازادۍ ته مخه کوي او دا ښځې یادې اړیکې د کورنۍ د جوړولو له پاره نه، بلکې د خوند او مزې له پاره کوي.

**پنځم پړاو:** ښځې او سړي د پیسو د لاسته راوړلو، د کورنۍ د مشرۍ او خپل اولاد د مینې له مخې له یو بل سره سیالۍ کوي چې د ناهیلۍ، دښمنۍ او ان د ماشومانو ترمنځ د همجنس پالنې لامل هم کېږي. همدارنګه ډېرى ودونه په طلاق پای ته رسېږي.

**شپږم پړاو:** فرد پالنه زیاتېږي او ټولنه په ډېرو وړو وړو او یو بل ته ژمنو ډلو وېشي چې د ټولنې د کمزورتیا لامل ګرځي او همدارنګه د زېږېدنې په کچې کې توپیر د زیات عمر لرونکو کسانو د زیاتوالي لامل ګرځي.

**اووم پړاو**: او په پای کې په خدای ناباوري عامېږي، د والدینو کنټرول له منځه ځي، معنوي او اخلاقي ارزښتونه ورکېږي چې په حکومت او اقتصاد مستقیمه اغېزه لري.

کله چې ښځې پر اقتصادي پایښت متکي شي نو دندو ته اړتیا لري او د دې دندو د ترلاسه کولو له پاره به، ډېرى مهال له علمي او تجربوي ظرفیتونو پرته، د خپل جسمي او ظاهري ظرفیتونو په ښودلو لاس پورې کوي او د ګمارونکو کسانو د پام را اړونې په پام چې اکثره وخت سړي وي، داسې جامې اغوندي چې خپل جسمي برجستګۍ ګماروونکو ته ښکاره کړي او همدارنګه د ښځې او سړي د برابرۍ دا حرکت د غرب د عصري تمدن په چوکاټ کې داسې یو سېستم جوړ کړی چې په غیر مستقیمه توګه د شاملېدو یو شرط یې د بې حجابه جامو اغوستل دي چې د رسول الله ﷺ د یوې بلې وړاندوېینه د تحقق لامل ګرځي چې فرمایلي یې دي: *ښځو به لباس اغوستی وي، خو بیا به هم لوڅې وي.*[1] تر شمولیت وروسته، پام اړونه په ټولنو کې د ښځو تر منځ د سیالۍ یوه وسیله وګرځېده او د بریا نښه ګڼل کېږي، نو له دې امله ښځو د ټیکري په لرې کولو پیل وکړ او د لمنو په رالنډولو یې لاس پورې کړ تر دې چې ورنونه او سینې

---

۱. صحیح مسلم؛ ۳۹۷۱ حدیث او صحیح ابن حبان؛ ۷۵۸۴ حدیث

یې لوڅې کړې او نامشروع اړیکې په ټولنه کې دومره عامېږي چې د ټولنې وګړي په نامشروعو اړیکو ویاړي او زنا عادي کېږي چې د رسول الله ﷺ هغه وړاندوینه چې د دجال د سترې فتنې په اړه یې کړې وه، رښتیا کېږي: *خلک به د خرو په څېر په عام محضر کې جنسي تقارب کوي.*[1] له واده پرته د نامشروع اړیکو لرل، د ولدالزنا ماشومانو د زېږېدو لامل کېږي چې د اخرالزمان یوه بله ستره نښه[2] او یوه لویه فتنه ده.

لغړتوب (لوڅوالی) په لومړیو کې د سړیو له پاره تحریکوونکي وي او د جنسي اړیکو لېوالتیا زیاتوي؛ خو د وخت په تېرېدو سره د سړیو له پاره لوڅې ښځې خپل جذابیت له لاسه ورکوي تر دې چې نور ورته ښځې تحریکوونکې نه وي. د سړیو او ښځو تر منځ سیالي د دې دوو مخالفو جنسو د تمایل د کمرنګ کولو یوه بله ځانګړنه ده.

همدارنګه، فېمېنېزم د ښځې او سړي ترمنځ د نفرت د رامنځته کېدو لامل دی چې فطري کشش یې کموي. فېمېنېستې ښځې د هغو ښځو په پرتله د لږ جذابیت لرونکې دي چې د خپلو فطري زنانه یې ځانګړتیاوو لرونکې وي.

د ښځو او سړیو ترمنځ دا فاصله د دې لامل ګرځي چې هغوی د خپلو جنسي غریزو د ترسره کولو له پاره له غیر طبیعي لارو کار واخلي، د بېلګې په توګه: له حیواناتو، ماشومانو او په ځانګړې توګه له همجنسو سره یې جنسي اړیکې نیسي او سړي د نورو سړیو د پام را اړوني له پاره، د ښځو په څېر خپل ځانونه ښایسته جوړوي چې دا حالت د حضرت محمد ﷺ د یوې بلې وړاندوینې عملي کېدل دي چې فرمایي:

*همجنس پالنه به عامه شي*[3] *او سړي به د ښځو په څېر لباس اغوندي.*[4] د سړیو او ښځو د برابرۍ حرکت چې ورته د دجال جنسي انقلاب هم ویلی شو، زموږ د اوسني وخت تر ټولو ستره فتنه ده چې د غرب د عصري تمدن د نورو فرهنګي پدیدو ترڅنګ د ټولنو د معنوي زوال لامل ګرځي او د انسان پوهنې او ټولنپوهنې علماوو په لاندې څلورو پړاوونو کې څېړلې ده:

١. خلک له یوازینې او خالق خدای څخه لرې او د مخلوق عبادت کوي. پخوا به خلکو بتانو ته عبادت کاوه او اوس خلک ځان او پیسو ته عبادت کوي. خلک ناشکره شوي دي او خالق ته درناوی نه کوي.

٢. خلک له غیر طبیعي لارو څخه خپله شهواني اړتیا پوره کوي.

---

١. ابن حبان؛ ۱۸۸۹ حدیث او سلسلة صحیه البانی؛ ۴۸۱ حدیث

٢. المستدرک علی الصحیحین؛ دریم ټوک؛ ٣٨٦ مخ؛ ٥۴٦٥ حدیث

٣. مجمع الاوسط؛ اتم ټوک؛ ٨٢مخ؛ ٥٠١٨ حدیث

٤. علامه جلال الدین سیوتي؛ در منصور

۳. کله چې خلکو لـه خدایـه انکـار وکـړ، د ګنـاه او هغـو بـدو او نامشـورع کارونو ماهیت چې د انسانانو او هغـه کسـانو لـه خـوا چـې خپلـه بـدکاره دي ټاکل کېږي او مشترکه وجوه له منځه ځـي چـې د ګـډوډيو او بـې قـانونيتوب لامل ګرځي.

۴. او په پای کې، د خدای قهر نازلېږي او خلک د خپلو ګنـاهونو حسـاب ورکوي.

د غرب د عصري تمدن او له هغې سره تړلې نظريې د رسنيو، علمي او مدني ټولنو په واسطه خپرې او تحميلېږي.

## رسنۍ

رسنۍ د اصلي مفهوم له مخې په بېلابېلو بڼو څو زره کلنه تاريخي مخينه لـري. لکـه په پخواني چين کې حکـاکي شـوې علامـې او رسـامي، پـه پخـواني مصـر کـې انځـوريز خطونه او په ټوله نړۍ کې د کتابونو او ليکنو خطونه، خو د اوسني وخت په مفهـوم سـره د رسـنيو تـاريخ د نولسـمې پېـړۍ منځنيـو وختونـواو د ريچمونـډ ټـايمز (Richmond Times-Dispatch) په نوم لومړنۍ ورځپاڼه ته ورګرځي.

د لومړنۍ ورځپاڼې په پيلېدو سره يې پر عامه ذهنونو اغېزې ډېر ژر راڅرګندې شوې او په ټوله نړۍ کې پرنفوذه اشخاص او بيا بېل دولتونه د رسنيو د کنټـرول او جوړولـو پـه فکر کې شول چې د ټکنـالوژۍ پـه پرمختـګ او د غړيـزې ټکنـالوژۍ پـه پرمختـګ سـره لومړی غړيزې او بيا وروسته انځوريزې رسنۍ او تر دې چې انټرنېټي انقـلاب او ټـولنيزې رسنۍ پيل شوې.

اوس نو د نورو رسنيو ترڅنګ د ټولنو فکر ته د شکل ورکولو تر ټولو مهم وسايل ګڼـل کېږي. رسنۍ په خپل ذات کې يوه مثبتـه پديـده ده چـې پـه مرسـته يـې د حـق تبليـغ کېږي او د ټولنو ذهنونه د حق پالنې، عدالت پـالنې، ښـو اخلاقـو او انسـاني او متعـالي فرهنګ په لور يوسي، خو له بده مرغه اوس ډېرې رسنۍ په مخالف لوري فعاليـت کـوي او په مستقيمه او غيرمستقيمه توګه په شيطاني او دجالي قدرتونو پورې تړلې دي چې د عصري ټکنالوژۍ کشف او د پوهې پرمختګ د رسنيو د کنټرولوونکو له پاره د انسـان پـر ذهن او روانـې ځانګړتيـاوو پـه مسـتقيمه او غيرمسـتقيمه توګـه د حملـې لـه پـاره کـافي وسايل برابر کړي دي.

د دې له پاره چې وتوانېږي عامه ذهنونه د خپلې خوښې وړ لـوري تـه يوسـي. ملکـام اکس شهيد چې د ايمان د نور په مرسته يې د غرب عصـري تمـدن د انسـاني ضـد ټولـو

پدیدو په پېژندو سره د رسنیو په اړه وایي: *که مو پام نه وي نو رسنۍ مو داسې مهار کوي چې له مظلومانو به نفرت لرئ او ظالمان به مو خوښېږي.*[۱]

رسنۍ د انسانانو په ژوندانه ستره اغېزه لري او د جامو اغوستنې، د وینا د طرز او د فکر د طریقې او چلند په څېر د ټولنې او خلکو د ژوند پر طریقې اغېزه لري. د رسنیو دا پیاوړې اغېزه، د نړۍ، قارې، هېواد او د ژوند د سیمې په هکله د خلکو جهان بینې جوړوي.

رسنۍ د ژوند له مهمو او بېلابېلو موضوعاتو څخه د عامه درک او د خپلې خوښې د معلوماتو د خپرولو او تفسیرولو په برخه کې مهم رول لري همدارنګه رسنۍ د عصري فرهنګ په جوړولو کې د یو لړ عقیدو، ارزښتونو او مشخصو سنتونو (د ژوند بشپړې تګلارې) په انتخاب او تصویرولو سره د یو حقیقت په توګه د حقیقت د مشخصو تفسیرونو په تصویرولو چې دا حقیقت له ورکړل شوو تفسیرونو سره په همخوانۍ کې وي، مهم رول لوبوي.

د امستردام په پوهنتون کې پروفیسور او د اړیکو په مطالعو کې یو پر نفوذه نظریه اچوونکی دینیس مکول د رسنیو اغېزې په پنځو حالتو کې څېړلي دي.[۲]

۱. **کمپاین**د رسنیو د کمپاین حالت کې اکثره د سیاسي، ټاکنو، سوداګریزو او عامه خدمتونو کمپاین شامل وي. د نوم چومسکي[۳] د څېړنو له مخې په لویه کچه سیاسي کمپاینونه یا د تاریخ پروپاګند تر لومړۍ نړیوالې جګړې وروسته د امریکا بحراني وضعیت ته راګرځي چې په ځانګړې توګه په ۱۹۳۷زېږدیز کال، کله چې سرګردانې او کارګرې طبقې د اقتصادي کړکېچ پر مهال په ډله‌ییز اعتصاب لاس پورې کړ او امریکا د امپریالېستي دولت او سترو سوداګریزو شرکتونو ګټې له ګواښ سره مخ کړې.

هغه رسنۍ چې ډېر د پانګوال او دولت له خوا کنټرولېدې، د اعتصاب کوونکو پر ضد یې د عامو وګړو د ذهنونو د بدلون له پاره پر یو پراخ کمپاین لاس پورې کړ او اعتصاب کوونکي یې د امریکا د پرمختګ د ګټو ضد خلک (Americanism) وپېژندل چې وروسته دې کمپاین ځان ته د موهاک د درې فارمول او همدارنګه د اعتصاب د ماتې ساینسي طریقه واخیسته.

---

1. Russ Kick; You are Being Lied To; p 40

2. Denis McQuail; The Influence and Effects of Mass Media; p 11

۳. د لا زیاتو معلوماتو له پاره (Noam Chomsky; Media Control: The Spectacular Achievements of propaganda)

له سیاسي کمپاینونو څخه معمولاً د عوامو د غولوونکو شعارونو په مرسته د یو سیاسي تصمیم او په ځانګړې توګه په بهرنیو لاسوهنو کې د تحریف او د عامه ذهنونو د مهار کولو تر څنګ د ملاتړ له پاره کار اخیستل کېږي. د بېلګې په توګه کله چې یو دولت غواړي پر بل دولت تېری وکړي، د کنټرول لاندې رسنیو په مرسته په ډېر عجیب تعبیر سره ټول پوښتنه کېږي؛ د بېلګې په توګه د دې پر ځای چې ووایي (له خپل دولت سره چې په بل دولت باندې تېری کوي د پالیسۍ ملاتړ کوئ؟)، د دې پر ځای پوښتل کېږي چې (ایا د خپل هېواد له سرتېرو ملاتړ کوئ؟) چې دا کار د خلکو له پاره له خپلو سرتېرو څخه نه ملاتړ ورته ستونزمن دی او د هو په ویلو مجبور دي. سیاسي کمپاینونه معمولاً په دوکې، دروغو او افسانې جوړولو ولاړ دي چې کولای شي د بېلګې په توګه له عراق سره د امریکا جګړه یاده کړو چې امریکا په کې د سترو دروغو په واسطه عراق د ډله ییزې وژونکې سلاح په لرلو تورن کړ.

*د عراق له پرلپسې راپورونو څخه یې ډېر لږ شمېر د عراق له پاره د ازادۍ د جګړې په نوم دي. د امریکا د رسنیو لپاره او د نړۍ د رسنیو لپاره د هغو کسانو څخه پرته چې خپل ځان یې له لاسه ورکړی، (د دې جنګ په اړه) د زړه د سکون یوه دنده چې په ښه توګه یې ترسره کړې ده، شته. ټولو دې جګړې ته د یوې نظامي جګړې په سترګه وکتل په داسې حال کې چې داسې نه وه، بلکې په ډېر دقت سره یوه پلان شوې رسنیزه جګړه وه چې په ډېر هوښیارتوب او واک سره عملي شوه. په ورته وخت کې، د دې جګړې مخالف نظریات خپاره نه شول او په واضحه توګه خلکو ته ونه رسېدل.*[1]

د ولسواکۍ او زورواکۍ تر منځ توپیر یوازې د خلکو په باطل خیال کې دی چې هغوی د حکومت په پرېکړو او کړنو کې برخه لري چې خلکو ته د دې باطل خیال د سم ښودلو دنده د رسنیو پر غاړه ده. په زورواکیو کې خلک د تورې په زور د حکومتي پالیسیو او د خپل حاکم په منلو مجبور دي؛ خو په ولسواکیو کې تورې خپل ځای د رسنیو پروپاګندو ته ورکړی دی.

1. Danny Schechter; Weapon of Mass Deception; p 15

ټاکنيز کمپاينونه د ولسواکۍ يوه توره ده چې د سرګردانو خلکو په څېړونو اېښودل کېږي او خلک د دوو له يو بل نه بدترو کسانو په ټاکلو سره ځان ته داسې حاکم ټاکي چې د دواړو د واک سرچينه له يوه ځای څخه وي.

د پانګوالۍ د اقتصادي نظام تر ټولو اساسي او بنسټيز کار، د ګټې زياتوالی دی چې د مصرف پالنې د رامنځته کېدو لامل ګرځي، نو له دې امله خلک بايد د مصرف پالنې کچې لوړېدو ته وهڅول شي او ډله ييزې رسنۍ په داسې توګه د منځنۍ کچې د خلکو ژوند انځوروي چې په حقيقت کې د ټولنې د لوړې طبقې له ژوند سره ورته‌والی لري. د ژوند هغه معيار چې رسنۍ يې انځوروي، د ژوند هغه شتمن سبک دی چې عصري او پرمختللي لوازم او اسبابو پر لرلو بناء وي لکه د کال نوی موټر، ټلويزيون، سمارټ موبايل، قالينه، ښکلې مبل او فرنيچر او له جامو ډکه الماری چې خورا لوړه بيه ولري او د پېژندل شوو مارکونو لرونکې وي او د ژوندانه طريقه په همدې شيانو خلاصه کېږي.

خلک کله چې په دې فکر کې شي چې ژوند يې تر دوی لوړ دی. د رسنيو په مرسته د ژوند د دې طريقې په تکراري تبليغ سره ځان له ټولنې لرې احساسوي چې دا ومني ژوند همدا دی او په پای کې يې ټوله پاملرنه ور اوړي چې يو څه لاسته راوړي او مصرف يې کړي چې د سترو پانګوالو او د رسنيو د محرکې قوې د ګټې لامل ګرځي او خلک د پانګوالۍ د دې سېستم د غلام دام ته لوېږي.

۲. **ټولنيزې قاعدې او د ټولنيز حقيقت پېژندنه:** په دې حالت کې سرګردانې ډلې ارزښتونه، د فکر او ژوند طريقه او ټولنيز حقيقت له رسنيو څخه زده کوي چې د مخاطبينو له لوري اکثره د زده کړې پروسه قصدي نه وي؛ خو د رسنيو له لوري قصدي وي. د زده کړې پروسه دوه مهم اړخونه لري.

*له يوې خوا رسنۍ د ټولنيزې نړۍ تکراري انځور خلکو ته ښيي چې مخاطبين له حقيقت څخه ګرځوي او د دې نسخې د منلو لور ته يې بيايي او له بلې خوا د ځان او رسنيو تر منځ ټاکل شوې او پرلپسې اړيکې جوړوي*

*چې د ځان پېژندنې، چلند او سلوک په شکل جوړوونکی او اغېزناک رول ترسره کوي.*[1]

د رسنيو روزنيزه پروسه معمولاً داسې تولنې انځوروي چې خلک ورته په مستقيمه توګه لاسرسی نلري، د بېلګې په توګه؛ اسلامي نړۍ ته د لېبرال ټولنې د پرمختګ کوونکې او بريالۍ ښودنې له پاره، غربي ټولنه داسې مجسم کوي چې له ټولنيزو، اقتصادي او سياسي ستونزو پرته عيش او عشرت کوي او د يو خيالي ژوندانه لرونکي دي.

په داسې حال کې چې په امريکا کې *تر نيم ميليون ډېر وګړي بې کوره دي*.[2] په انګلېستان کې له ۶۵۰۰ *ښځه ډېرې ځان وژنې*[3] کېږي او په زرګونو نورې ټولنيزې او اقتصادي ستونزې په لېبرال ټولنه کې شته دي چې د رسنيو په مرسته پرې سترګې پټېږي او اسلامي نړۍ د واقعيت برعکس د لېبرال ټولنه يوه خيالي او نېکمرغه ټولنه ګڼي.

لکه څنګه چې رسنيو او په ځانګړې توګه د غرب لېبرالې رسنۍ د غرب د تمدن او فرهنګ په ښه ښودلو کې هڅه کوي، د نورو مخالفو فرهنګونو په ځانګړې توګه د اسلامي تمدن او فرهنګ کې په لاسوهنې او د دې فرهنګ ناسم ښودلو ته کار کوي او د ځينو ويناوو او ليکنو برخې ايډېټ کوي او يوازې هماغه برخې يې را اخلي چې د يوې موضوع اصلي مفهوم او ماهيت ته بدلون ورکوي او منفي معنا ترې اخيستل کېږي.

د بېلګې په توګه د اسلام د خشن ښودلو له پاره، د قرانکريم ځينې اياتونه چې وايي: د کفارو څټونه ووهئ پرته له دې چې د دې مخکې او وروستنۍ جملې هم ووايي، نړيوالو ته يې د يوه سرخط په توګه ښيي، کله چې ټولنيز تحريف شوي حقيقتونه د غرب د عصري تمدن د رسنيو په مرسته خلکو ته د منلو نشي نو بيا د وېرې د رامنځ ته کولو له کاروونکې او مشهورې وسيلې کار اخلي.

د بېلګې په توګه په ۲۰۱۲ او ۲۰۱۳ زېږديز کلونو کې افغانان د غربي استعمارچيانو په شومو موخو لږ لږ خبر شول او نه يې غوښتل نور د غربيانو د سترو دروغو او دوکو ښکار شي، نو د افغانستان غرب ځپلو او مزدورو رسنيو د

---

1. Denis McQuail; The Influence and Effects of Mass Media; p 14

2. National Alliance to End Homelessness (2016); The State of Homelessness in America; p 4

3. Samaritans; Suicide Statistics Report 2016; p 4

وېرې او وحشت په خپرولو سره چې (که غربیان افغانستان پرېږدي، نو دا هېواد به له اقتصادي، سیاسي او د کورنیو جګړو له کړکېچ سره مخ شي) د خلکو په منځ کې وېره او وحشت جوړ کړ او کوچني اعلانونه یې د استعمارګرو ځواکونو د شتون په ملاتړ او د بهرنیانو له وتلو سره سم د منفي پایلو په رامنځ ته کېدو په هکله خپرول.

د دې تبلیغاتو په پایله کې پانګوالو خپله شتمني له هېواده وویسته او سره له دې چې د استعمارګرو نظامي اډې هم تضمین شوې؛ خو بیا هم ذهني بې ثباتۍ افغانستان له اقتصادي بحران سره مخ کړ.

۳. **سمدستي غبرګون یا ځواب:** د رسنیو سمدستي معلومات او مستقیمې اغېزې د دې لامل شوې چې په لنډه موده کې رسنۍ د خپلو محرکو قوو اجنډاوې پلې کړي. د ډله ییزو رسنیو په واسطه د خپرو شوو معلوماتو له امله د وېرې او اضطراب په غبرګون سره د خلکو احساسات راپارېږي او پرته له دې چې هر اړخیز معلومات او یا هم سمه مطالعه په کې وکړي سمدستي پرېکړې کوي چې ډېرې مهال د رسنیو د محرکو قوو له اجنډاوو سره ورته والی لري، کله چې د ۲۰۰۱زېږدیز کال د سپټمبر د یوولسم پېښه وشوه او ټولو رسنیو دا پېښه په پرلپسې او تکراري ډول خپروله، د نړۍ دولتونو او خلکو پر افغانستان د امریکا د حملې ملاتړ په یو سمدتي غبرګون کې وکړ. په داسې حال کې چې د دې پېښې د پردې تر شا د شومو توطیه جوړونکو لاس و چې نن ورځ خلک پرې پوه شوي دي.

۴. **نورو ټولنیزو ټولنو ته پایله:** د رسنیو د اغېز کچه د ډله ییزو خلکو او وګړو له مجموعې زیاته ده او رسنیزې ټولنې، نورې ټولنیزې ټولنې تر تاثیر لاندې راولي. خلک پر رسنیو د معلوماتي سرچینو په توګه باوري او متکي دي او د ډېرو خلکو د پوهې کچه له رسنیو څخه د معلوماتو تر اخیستو پورې محدوده وي.

په داسې حال کې چې د رسنیو په مرسته تیار شوي معلومات ډېر ناسم او په کې لاس وهل شوی وي د رسنیو د محرکې قوې له اجنډاوو سره سم خلک د دې معلوماتو د رښتیا کېدو او مؤثق توب له پاره پیاوړې سرچینه (مشهوره رسنۍ) دلیل ګرځوي او ټینګار پرې کوي.

رسنیو د *تېول تاریخ*[1] په لاس وهنې پیـل کـړی دی او د خلکـو ذهـن تـه د باطل تاریخ انځور ور پېچکاري کوي چې په دې اړه خلکو ته تاریخي کتابونـه جعلي او تحریف شوي ښيي او علمي تېولنې هم په پوره توګه د رسنیو تر اغېز لاندې دي.

رسنۍ دیني معلومات هم وړاندې کوي چې پـه کـې تـر ډېـره پـه ظـاهري عباداتو راڅرخي او په دې اړه د دین له بنسټیزو معلوماتو څخه چې د ټـولنې او سیاست په اړه وي ډډه کوي او داسې ښيي چې دین یو شخصـي کـار دی او د ظاهري عباداتو په اړه د معلوماتو لرل د خلکو دیني معلومات پوره کېـږي او خلک دیني ټولنو تـه د ورتـګ اړتیـا نلـري او همدارنګـه دا رسـنۍ د دینـي ټولنې په پراخې بدنامۍ کـې لاس لـري او خلکـو تـه یـې بـې اعتبـاره ښـکاره کوي.

د رسنیو د معلوماتو په اتکاء سره هغه کسان چې ډېری مهال خپـل وخـت د رسنیو په لیـدلو او لوسـتلو مصـرفوي، پـه جـامع الکمـالاتو کارپوهـانو بـدل شوي دي چې په هـرې موضـوع کـې د نظـر خاونـدان دي او ان پـه اسـلامي ټولنو کې په دیني مفتیانو بدل شـوي دي. اوس مهـال د یـو کـس د علمیـت اندازه او کچه په رسنیو کـې د هغـو کلمـاتو پـه شـمېر او د وخـت پـه انـدازې سنجول کېږي چې په رسنیو کې ورته ځانګړی شوی دی.

۵. **په ټولنې او فرهنـګ کـې بـدلون:** غربـي او غـرب پالـه رسـنۍ چـې ډېری یې د نړۍ تر ټولو ستري او اغېزمنې رسنۍ ګڼل کېـږي او پـه ځـانګړې توګه دا رسنۍ په اسلامي نړۍ کې هم ډېره اغېـزه لـري، پـه پرلپسـې توګـه د غرب عصري فرهنګ پر تبلیـغ لګیـا وي او د دجـال د نړیـوال دولـت د لـویې اجنډا یا نوي نظم سره په مطابقت کې د یو نړیوال فرهنـګ جوړولـو تـه هڅـه کوي. رسنۍ په ګټورې اغېزې سره هغه وسیلې دي چې په واسطه یې سـیمه ییز او سنتي فرهنګونه بد ښودل کېږي او هغه خلک چـې پـه اصـیل فرهنـګ پورې تړاو لري، ورپورې خاندي او داسې یې انځوروي چـې دا خلـک وروسـته پاتې، پخواني فکره، غیر متمدنه او بنسټ پال دي او پرمختګ، متمـدن تـوب او مخکې تګ ته اړتیا لري چـې لـه بـده مرغـه دا خلـک او پـه ځـانګړې توګـه اسلامي نړۍ د خپل فرهنګ او تمـدن څخـه سـم درک او پوهـه نـه لـري او د

---

1. Noam Chomsky; Media Control; The Spectacular Achievements of propaganda; Representation as Reality

غربي رسنيو له تبليغاتو سره، د غرب عصري، دجالي او شيطاني فرهنګ يې د خپل انساني فرهنګ پرځای راوستی چې د جامو له ويستلو پيلېږي.

د مغز په خالي کولو او د ارزښتونو په لرې کولو لاس پورې کوي او په پای کې انسانان په يو بېرته نه راګرځېدونکې څلورلارې کې پرېږدي چې پای يې معنوي زوال، د انساني ټولنو تيتېدل، د بې خدايۍ فکر، د فرهنګ بربادي يا بې فرهنګي او الهي جزا ده.

*د ډله ييزو رسنيو په مرسته فرهنګي يرغل په عيني توګه په ټوله نړۍ او په ځانګړې توګه په وروسته پاتې هېوادونو کې د نړيوال فرهنګ له رامنځته کولو سره مرسته کوي او له دې امله دا هېوادونه خپل فرهنګي ميراثونه په تدريج سره له لاسه ورکوي. په وروسته پاتې هېوادونو کې د مسلطو ځواکونه له خوا د ټوليزو رسنيو په واسطه، په فرهنګي خپرونو او تبليغ سره د دې هېوادونو نوی نسل له فرهنګ، قاعدو او محلي ارزښتونو څخه بې خبره پاتې دي چې د نن ورځې يو له لويو ستونزو څخه شمېرل کېږي.*[1]

د عصري ټکنالوژۍ او د غربيزو او انځوريزو رسنيو په کشف او همدارنګه په ارواپوهنه کې د مطالعو په پرمختګ، د بيولوژيکي کړنو، او له تصوير او غږ سره د انسان د مغز او اروايي اړيکو سره د فرهنګي يرغلګرو کار اسانه شو او په نړيوالو په ځانګړې توګه پر اسلامي نړۍ فرهنګي يرغلونو زور اخيستی.

پورته مو د انسانانو په پوهو ذهنونو د رسنيو اغېزې تر څېړنې لاندې ونيوې؛ خو غږيزې او انځوريزې رسنۍ له پوه ذهن پرته په ناپوه هم حمله کوي او د هغو معلوماتو په بمبارولو سره چې يوازې د ناخود اګاه ذهن په واسطه محسوسېږي د انسانانو په مهار کولو لاس پورې کوي. د انسان ذهن په دوو خود اګاه او ناخود اګاه (Conscious AND Sub Conscious Mind) باندې وېشل کېږي چې ټول ارادي کارونه د اګاه ذهن په واسطه او ټول غير ارادي او اتوماتيک کارونه د ناخود اګاه ذهن تر کنټرول او امر لاندې ترسره کېږي.

*دا چې په ژوند کې څه غواړو په دې اړه د معلوماتو په اخيستلو او تنظيمولو او د دې په اړه پرېکړه کول د اګاه ذهن دنده ده. اګاه ذهن کولای شي وټاکي چې څه ښه دي او څه بد، څه سم او څه ناسم دي، څه خوند لري او څه بې خونده او خسته کن دي او دا د انسان هغه برخه ده چې فکر او تعقل کوي. اګاه ذهن کولای شي هره نظريه يا*

1. Ghulam Shabir, Usman Farooq, Rooh.Ul. Amin and Ayesha Wallayat Chaudhry; Mass Media, Culture & Society with the perspective of Globalization, Modernization and Global Culture; p 1

*ومني او يا يې رد کړي. د انسان واک په اگاه ذهن کې ټاکل کېږي اگاه ذهن د انسان پنځه سلنه تشکيلوي.*

*ناخود اگاه ذهن د معلوماتو د پروسس کولو تر ټولو پياوړی پروسېسر (Processor) دی چې تر اوسه پېژندل شوی دی. ناخود اگاه ذهن، نرۍ او چاپېريال گوري، د بدن داخلي خبرتياوې کنټرولوي، په چاپېريال کې نښې مطالعه کوي او د مخکې ياد شوي چلند او سلوک سره سم په سمدستي او ژر توگه غبرگون ښيي او ټول له دې ځايه اداره کېږي. ناخوداگاه ذهن د انسان ۹۵ سلنه تشکيلوي.*[1]

*ناخوداگاه ذهن دومره پياوړتيا او مغلق والی لري چې په سمه توگه زموږ خيالونه او تورونه متناوب کوي او ټولې هغه پېښې چې زموږ د ژوند پر مهال رامنځ ته شوې دي، ثبتوي.. له همدې ځايه انسان با ارزښته لاربښوونې ترلاسه کوي او په پای کې، ناخود اگاه نظام هغه ميکانېزم دی چې په واسطه يې فکري انگېزې چې په منظمه توگه له شور او احساس سره د تکرار په حال کې دي، گرندی کېږي، گمارل کېږي او د په فزيکي معادل يې بدلېږي.*[2]

کولای شو د اگاه او ناخوداگاه ذهن رول د ژوند په يوې واقعي پېښې کې مجسم او تر څېړنې لاندې يې ونيسو، که يو کس له ډله ييزو اصولو او د جمعي پالنې په يوې ټولنه کې ژوند کوي، په ناخوداگاه ذهن کې خپل فرهنگي ارزښتونو لکه د مور او پلار، خور، ورور، خپلوانو او دوستانو څخه په يو ستونزمن حالت کې ملاتړ زغمي.

کله چې يو خپلوان له نورو پرديو سره په يوه جگړه کې ويني، پرته له دې چې د اگاه ذهن په واسطه دا پېښه وڅېړي او د ملامت او سلامت تفکيک او بېلوالی وکړي او له خپلوان څخه د ملاتړ په هکله د خپلې لاسوهنې پايلې وسنجوي، سمدستي او پرته د منطقي اړخونو په نظر کې نيولو سره، د ناخوداگاه ذهن پر بنسټ د پخوانيو معلوماتو او ارزښتونو په لرلو او له دې ذهن څخه په امر اخيستو سره په مقابل لوري حمله کوي.

د ناخوداگاه ځمکې کرنه د هغې زراعتي ځمکې په څېر ده چې مېوه يې د شيندل شوي تخم له مخې زرغونېږي او اگاه ذهن هغه بزگر دی چې په دې کرنيزه ځمکه کې د تخم په شيندلو بوخت وي.

خو د مرخېړو تر ودې وروسته ډله ييزو رسنيو په ډېرو ټولنو کې دا بزگر يا د رسنيو غلام شوی او يا يې د ذهن کرونده يې ترې غلا شوې او رسنۍ بيا په دې کرونده کې پر تخم اچونې بوخت دي. د اگاه ذهن غلامي او د ناخوداگاه ذهن تر کنټرول لاندې نيول

1. Stacey Vornbrock M.S.; The Roles of the Conscious and Subconscious Minds; pp 2,3 & 4

2. John Keho; Mind Power into the 21st Century ; pp 39 & 40

د پټو پیغـامونو یـا نیمـه خوداګـاه پیغـامونو (Subliminal Message) پـه واسـطه ترسـره کېږي چې دا کار په دوو مستقیمو او غیر مستقیمو یا پټو ډلو سره وېشل کېږي.

هغه پیغامونه چې د تاریخي پېښو له تفسیر، د د جاري پېښو ، خبري داستانونه او د هنري او مستندو فلمونو داستانونه چې د ډله ییزو رسنیو له خوا تولنو ته ورکـول کېـږي، د اګاه ذهن په واسطه جذبېږي او ناخوداګاه ذهن ته په انتقال مجبور دي چې دا کار د اګاه ذهن په کنټـرول ترسـره کېـږي. پـټ پیغامونـه چـې د اګـاه ذهـن پـه واسـطه نشـي محسوسېدی او مستقیماً د ناخوداګاه ذهن په واسـطه جـذب شـوي دي، کـولای شـو د رسنیو په واسطه د ناخوداګاه ذهنونو د پټوني جریان یې وګڼو.

که څه هم د پټو پیغامونو تاریخ د چاپي رسنیو صنعت ته ورګرځـي؛ خـو د ټکنـالوژۍ په پرمختګ او د غږیزو او انځوریزو رسنیو په کشف سره ترې کار اخیستنه ورځ تـر بلـې د عامه ذهنونو د کنټرول له پاره زیاته شوې ده.

## غږیزې رسنۍ

راډیویي شبکې د غږیزو رسنیو ستره برخه تشکیلوي چې د معلوماتو، خبرونـو، تفـریح او ټولنیزو بدلونونو ستره سرچینه شمېرل کېږي. ډېری شنونکي، د غږیزو رسنیو اغېز لـه انځوریزو هغو په څلورو لاملونو زیات بولي چې ارزانه دي، لاسرسی ورته اسانه دی، تولید یې ساده دی او اغېزمنتیا یې ډېره ده؛ ځکه چې په ډېرو غریبو او د ټیټې کچـې د سـواد په هېوادونو کې راډیو ګانې د نورو رسنیو په پرتله ډېر اورېدونکي لري.

راډیویي رسنۍ د رسنیو هغه لومړنۍ ډول دی چې ټوله نـړۍ یـې تـر پوښـښ لانـدې نیولې ده او د بېلابېلـو خبـري، روزنیـزو، تفریحـي او نـورو خپرونـو پـه واسـطه پـه ټـولنیز بدلون، فکري طرز، معلوماتو، ودې او د ځینو ارزښتونو د پرمختګ او د ځینو په زوال کې د ارزښت وړ دي. راډیویي شبکې د نورو ډله ییزو رسنیو په څېر ډېر ژر د ټـاکلي ذهنیـت د رامنځ ته کولو له پاره د پانګوالو او دولتونو تـر واک لانـدې راغلـي، چـې پـه دې کتـاب کې د رسنیو د محرکو قوو په نامه یادېږي. په دې اړه مـري کـاوټي پـه خپلـه څېړنـه کـې لیکي: *ستـر شـرکتونه او دولتونـه لـه راډیوګـانو څخـه د پراخـې ګټـې اخیستنـې او ودې لومړنـي اغېز اچوونکـي وو. په ۱۹۳۰ زېږدیز کال راډیو په ګټه اخیستونکو هېوادونو کـې د لومړنیو پروپاګندو او ضـد پروپاګنـدو لـومړنۍ وسـیله وه.*[1] اوس مهـال د راډیـویي شـبکو

1. Mary Cawte; Making Radio into a Tool for War; p1

ډېری اورېدونکي د ټولنې فقیره او منځنۍ طبقه او پـه ځـانګړې توګـه د کلیـوالي سـیمو خلک دي چې زده کړې نه لري.

د راډیویي شبکو د اغېزې د لا وضاحت له پاره، د شلمې پېړۍ په وروستیو لسیزو کې په افغانستان کې د بي بي سي راډیو شبکه مطالعه کوو. *افغانستان د راډیو د اورېـدونکو د شمېر او د مخاطبینو د وفادارۍ لـه پـاره یـوه نښـه بېلګـه ده چـې معتبـرو شـبکو تـه د اغېزمنتیا، ټولنیز بدلون د چلند او رفتار د بدلونچانس ورکوي.*

*د جګړې پر مهال او تر جګړې وروسته هېوادونـو کـې اخبـار او راډیـویي خپرونــې لـه ټولنیز پلوه له معتبرو شبکو څخه (هغه خپرونې چې په ټولنو کې سلوک، چلند او تـولنیز بدلون راولي) اغېزمن وي ځکه چـې ډېـرې خلـک دې خپرونـو تـه د امنیتــي او سیاســي موضوعاتو له امله چې په ژوند پورې یې تړلې دي، رجوع کوي.*[1]

د بي بي سي راډیو له لارې یو خپرېـدونکی سـریال چـې پـه اورېـدونکو بانـدې خـورا ډېره اغېزه لري د (نوي کور، نوي ژوند) پـه نـوم د یـوې پرلپسـې ډرامـې لـړۍ ده چـې د رسنیو تحلیلوونکو او په ځانګړې توګه د بی بي سي شبکې تحلیلوونکو، د دې خپرونې د اغېزو په اړه ډېره څېړنه کړې ده.

دا خپرونه ډېره د افغانانو تر منځ مشهوره شوه او د افغانستان ډېرې خلک یې په لنـډ وخت کې د تلپاتې څارونکو پـه توګـه دې حـد تـه ورسـېدل چـې د *فېمېنېـزم لـه پیـاوړو پلانونو سره سره ان طالبانو هم دا خپرونه پـه خـورا لېوالتیـا څارلـه او تـر دې چـې د دې ډرامې د یو شخصیت په مړینې سره به یې همـدردي او غـم شـریکاوه. د ښـځو تعلـیم او هغوی ته له کوره بهر د کـار کولـو حـق او لـه یـوې څخـه لـه زیـاتو ښـځو سـره د واده پـر وړاندې مبارزه د دې خپرونې مهم پیغامونه وو.*

*بالاخره د دې خپرونې د اغېزو په اړه په لویـه کچـه یـوه تـول پوښـتنه وشـوه چـې یـوه ګټوره پایله رانښیي او د یو داستان په توګه یادېږي چې یو ملا خپلې لور ته په دې ډرامـه کـې د ګلالۍ له شخصیت څخه د اغېزمنتیا له امله له کور څخه د بهـر کـار کولـو اجـازه ورکړې وه.*[2]

سره له دې چې په هغه وخت کې د بـي بـي سـي راډیـو خپرونــې تـر ډېـره پـورې پـه فېمېنېزم متمرکزې وې؛ خو د صحي معلوماتو، د ماین له ګواښـونو څخـه د خبـرداري او کرنیزو معلوماتو په څېر ډېر مثبت پیغامونه یې هم لرل.

---

1. Gordon Adam; Media an Global Change; p 350

۲. همدا سرچینه؛ له ۳۵۲ مخ څخه تر ۳۵۸ مخ پورې

له بده مرغه، د غرب په مستقیم راتګ او د غرب له پلانونو سره سم د افغـاني رسـنیو په رامنځ ته کېدو سره په دیني او سنتي فرهنګ او ارزښتونو مستقیم یرغـل پیـل شـو. د ارمان راډیو په دې برخه کې تر ټولو د یوې مخکښې شبکې په څېر د (عاشقانو د شـپې) په نوم خپرونې په خپرولو سره د نامشروع اړیکو د کیسو په خپرولو پیل وکړ او د عشق په نوم یې دې نامشروع اړیکو ته مشـروع رنـګ ورکـړ. د رسـنیو د شـمېر پـه زیاتېـدو او دې شبکو ته د غرب د عصري تمدن د مبلغو ټولنو له خوا د مالي امکانـاتو پـه برابرولـو سـره، اوس سلګونه راډیویي خپرونې شته دي چې د دیني تقدس د ټکولو او ځنګ ته کولو پـه محور راڅرخي.

د دې پر وړاندې یې د غرب د عصري تمدن ارزښتونه او فرهنـګ د معتبـر او مناسـب بدیل په توګه وړاندې کړ. په دې فرهنګي یرغل کې د راډیویي شبکو یوه بله مهمه برخـه د موسیقۍ او موسیقي پالنې تبلیغ او خپرول دي چې د ډېرو راډیـویي شـبکو د خپرونـو لویه برخه جوړوي.

موسیقي په درواغجنو او دوکه کوونکو شعارونو لکه (موسـیقي د روح غـذا ده) او نـورو په څېر خلکو ته وړاندې کوي، هو! موسیقي د روح غذا ده خـو داسـې غـذا چـې روح تـه ناسمه وي.

له عصري کېدو څخه وروسته زمانه کې، انسانان په کاري ماشینونو بدل شوي دي او د کاري وخت قید کېدل ورته دا اجازه نه ورکوي چې خپل ځان ته غذاخواړه پاخـه او لـه سمو، صحي او سنتي خوړو څخه ګټه واخلي. نو لـه دې املـه فسـټ فـوډ (Fast Food) رستورانتونه چې په کم وخت کـې خپلـو پیرودونکـو تهبرګـر، سـانډوېچ، ساسـېچ او سـره کړي چرګ په څېر خواړه برابروي، ډېر شوي او ډېری خلک د وخت د نشـتوالي لـه کبلـه ترې ګټه اخلي چـې جـانبي عوارضـو لکـه چـاغوالی، د وینې فشار، دیابت یـا شـکر، نفـس تنګـي، د وینـې د کلسټرولو لوړېدل، د غاښونو سـتونزې او نـورو خطرنـاکو ناروغیو په لرلو سره په کثیفو خـوړو (Junk Food) سـره مشهورې دي.




د مغز په دې برخه کې جنسي هورمونونه ترشح کېږي.

شراب او نور نشه یي توکي په لیمبیک سېستم اغېز کوي او د تحریک او تېري لامل ګرځي.

موسیقي هم د مغز همدا برخه تحریکوي

موسیقي هم د روح له پاره همدا ډول خواړه دي. ځکه د فسټ فوډ رستورانتونو چټل خواړه په انسان باندې نور ډېر هر اړخيز عـوارض لـري او پـه ځـانګړې توګـه د انسـان پـر ذهن بده اغېزه کوي.

په تېر وخت کې ساينس پوهان په دې باور وو چې استدلال او احساسات لـه يـو بلـه بېل دي؛ خو د علم په پرمختګ سره دې باور بدلون وکړ او *څېړنې ښيي چې احساسات د فکري عمل لـه جريان څخـه ډېـر ژر عمـل کـوي او د چټکتيـا يـې د انسـان د مغـز د استدلالـي عمل د جريان په لېږد (تېښتونه) قادر دی.*[1] د آيوا پوهنتون د عصـب پېژنـدنې رييس او د انسان د مغز د کړنو په اړه تکړه څېړونکی انتونيو دماسيو وايي: *د استدلال او احساس د بېلوالي نظريه ناسمه ده او احساسات د انسـان پـه پرېکـړو کـې مرکـزي رول لري. ساينسي څېړنـې ښـيي چـې خلـک د احساسـاتي تحريـک تجربـې د موسـيقۍ د اورېدو پر مهال ښيي.*[2] د انسان مغز بېلابېلې اجزاوې لري چې د انسان د مغـز لـه ډېـرو مهمـو برخـو څخـه يـو هـم د ليمبيـک سېسـتم (Limbic System) دی او د احساسـاتو کنټـرول، احساســي غبرګونونــه (د خونــد، درد، روانــي حــالات، جنســي غبرګونونــه او اوږدمهاله حافظه په کې شامل دي) په څېر کړنې په غاړه لري. د تجاوز، وېرې، هيجان، مينې، غم، نفرت، حسرت او خوند په څېر احساسات له ليمبيک سېستم څخـه سـرچينه اخلي.

لکه څنګه چې په پـورتني انځـور کـې ښـودل شـوي دي، موسـيقي هـم پـر ليمبيـک سېستم ژوره اغېزه لري چې جنسي اړيکې، نشه يي توکي او مستي هم دا ډول ځانګړتيا لري. هغه کسان چې د ليمبيک سېستم کړنې په کې ډېـرې دي، پـه ځـانګړې توګـه پـه ځوانانو کې نو دوی جنسي اړيکو ته ډېره لېوالتيا، له شرابو او نشه يي توکو څخه د ګټې اخيستنې لېوالتيا لـري او د تـاوتريخوالي کړنـې کـوي چـې موسـيقي هـم د ليمبيـک د سېستم د تحريک لامل ګرځي او د همدې تمايلاتو باعث ګرځي او انسان ډېرو کړنـو تـه اړ باسي.

د موسيقۍ اغېزه په انسان د مسکراتو په څېر ده چې انسان يې د اورېدلو پـر مهـال خپل چاپېريال هېروي او يو خيالي او توهمي حالت ته ورګرځي او د انسان ټـول تمرکـز د موسيقۍ په موزونه غږ او شعر باندې راڅرخي چې پـه هغـې وخـت کـې د اورېـدونکي درک له نړۍ او دنيوي حقيقتونو څخه له دې شعر او غږ څخه پرته بـل څـه نـه وي او يـو

1. Cacioppo J.T & W. L. Gardner; Emotion (Annual Review of Psychology 50); pp 191-214

2. Gohar Mushtaq; The Music Made Me Do it; p 51

داسې مصنوعي خوب ته ځي چې د موسيقۍ پيغـام حقيقـي ګڼـي. پـه دې اړه جېمـز مارشال، مشهور امريکايي ګيتار غږوونکی شاعر او سندرغاړی وايي:

*زه هرڅه د موسيقي په مرسته ښه بيانولای شم، خلک په مصنوعي خوب ويـده کـوم او کله چې خلک کمزوري ټکي کې راشي. هرڅه چې وغواړې نو د هغوی په ناخوداګـاه ذهن کې ور پېچکاري کېدلای شي*[1] د موسيقۍ يو ستر جانبي عوارض دا دی چې پـټ پيغامونه د اګاه ذهن له پاره نشي محسوسېدی، په ناخوداګاه ذهن کې پيچکاري کېږي چې شيطاني وسوسې ورته ويلای شو.

د ښې روښانتيا له پاره يې يوې تاريخي بېلګـې تـه ورګرځـو چې يـو کـس پـه کـې د موسيقۍ د پټو پيغامونو په واسطه ځان وژنې ته مجبور شوی و. د *۱۹۸۴ زېږديـز کـال د اکتوبر په مياشت کې نولس کلن ځوان جان مکولم خپـل ځـان پـه مرمـۍ ويشـتلو سـره وواژه، ده د اوزي اوزبورن د (ځان وژنـې حـل لاره ده) د سـندرې تـر اورېـدو وروسـته يـې ځان وژنه وکړه. په دې سندره کې لاندې بيتونه شامل وو:*

*د دوار ماشين په وروستي چټکتيا څرخي*
*تا رانيسي خو ته يې نشې ليدلای*
*د دوار ماشين ته يې او د دوار ماشين زه يم*
*ځان وژنه د ژغورنې يوازينۍ لاره ده*
*تپانچه را واخله او ويې ازمايه!*

*ډزې وکړه، ډزې وکړه، ډزې وکړه (ډزې وکړه چې د پټو پيغامونو په توګه ځای پر ځای شوي دي چې د خوداګاه مغز په واسطه نشي محسوسېدلی).*

*کله چې د مکولم جسد پيدا شو، هغه لا هم په غوږونو کې غـوږۍ (ګوشـکۍ) لرلـې. په لاس انجلس ټايمز کې د فلېپس چک د راپور له مخې د ۱۹۹۰ زېږديز کـال د اکتـوبر په څلورمه تـر (د Judas Priest قضـيې څخـه څـو اونـۍ وروسـته اوزي اوز بـورن پـر پټـو پيغامونوله يوې بلې محکمې سـره مـخ دی) تـر عنـوان لانـدې و. د دې هلـک کـورنۍ د اوزبورن او د ثبـت د شـرکت پـه قـانوني څـارنې يـې لارس پـورې کـړ. پـه ښـکاره توګـه د اوزبورن په سندره کې پټ پيغامونه د مکولم د ځان وژنې مقصر ګڼل کېده.*[2]

د ټولنې اذهانو ته د اګاه او ناخوداګاه پيغامونو په واسطه د پيغام جوړوونکـو د پيغـام د پيچکاري کولو ساده لار موسيقي ده.

1. Life Magazine; Oct. 3 1969; Interview with Jimi Hendrix.

2. Gohar Mushtaq; The Music Mede me Do it; p 116

په اسلامي نړۍ د فرهنګي يرغل له مهمو تګلارو څخه يو هم په عياشۍ او فحشا کې د مسلمانانو ښکېلول دي چې موسيقي يې يوه مهمه وسيله ګڼل کېږي، ځکه چې د ډېرو سندرو موضوع، شيطاني مينه او اړيکه ده چې فرهنګي يرغلګر د مينې په نوم غواړي دې اړيکو ته مشروعيت ور وبښي. فحشا يوه مهمه وسيله ده چې د ديني او فرهنګي ارزښتونو د زوال په واسطه د ټولنې د له منځه وړلو لامل ګرځي. چې په دې لاره کې موسيقۍ د تاريخ په اوږدو کې خپله اغېزه ثابته کړې ده.

لکه څنګه چې په هسپانيه کې د اسلامي ټولنې د له منځه تلو يو لامل د موسيقۍ او له هغې سره د تړلو نورو پديدو خپرېدل وو چې د کمونېستانو رهبر ولاديمير لېنېن په دې اړه داسې ويلي دي: د ټولنو د له منځه وړلو يوه تر ټولو اسانه لاره د موسيقۍ په مرسته ده. نن ورځ موسيقي په اسلامي نړۍ کې دومره خپره شوې ده چې د اسلام ډېرې علماء يې پر وړاندې له موضع نيولو وېره لري او ان ځينې ورته جواز هم ورکوي چې دا حالت رسول الله ﷺ په يو صحيح حديث کې داسې اټکل کړی دی: *زما په امت کې به داسې خلک پيدا شي چې د زنا، ورېښمو اغوستلو (د سړي لـه پـاره)، شـرابو له څښلو او د موسيقۍ له الاتو څخه کار اخيستنې د حلالېدو لـه پـاره بـه هڅـه کـوي.*[1] کله چې يو ښه کار وشي او دا ښه کار له ځان سره يوه بله نېکي هم ولري نو (نور علی نور) ورته خلک وايي، خو کله چې موسيقي له انځورونو سره يو ځای شي او په انځوريزو رسنيو کې ننداري ته وړاندې کېږي نو ظلمت علی ظلمت دی.

## انځوريزې رسنۍ

*موږ يوازې د کتاب خلک نه يو؛ بلکې د هاليووډ د فلمونو، ټلويزيوني سريالونو، د علمي پروګرامونو، ورځپاڼو، مجلو او مقالو اهل هم يو.*[2] اوس مهال ټول رسنيز شوي دي، د ډېرو خلکو د ژوند الګو په ځانګړې توګه د ځوانانو، د فلم لوبغاړي، د اروپايي ټيمونو د فوټبال لوبغاړي، رسنيز سندرغاړي وي، د هاليوود او د ترکي او هندي سريالونو د لوبغاړو د جامو اغوستلو د طريقې تقليد، له ملګرو او کورنۍ سره د بحث موضوعات د رسنيو ګرم موضوعات او د نويو کيهانونو د کشف د علم خبرې اترې او په مريخ کې د اوبو شتون او نه شتون وي.

---

۱. صحيح بخاري؛ اووم ټوک؛ ٦٩ کتاب؛ ۴۹۴ حديث

2. Peter Novick; The Holocaust in American Life; p 12

انځوریزې رسنۍ د لیدونکو پر اذهانو په بدلون او شکل جوړونې کې تر ټولو اغېزمنې رسنۍ دي چې د دې رسنیو محرکین سره له دې چې د دې ډول رسنیو د ودې او پرمختګ له پاره یې ستره پانګونه کړې، پر اذهانو د نفوذ ښندنې او اغېز پر څرنګوالي هم پرمختللې څېړنې ترسره کوي چې کولای شو له دط ډلې له یوې *نوې اختراع*،[1] د بربښنایي پاڼو په مرسته د ذهنونو د مهار کولو یادونه وکړو.

دا اختراع پر انسانانو د تجربې په واسطه د پوستکي د فزیولوژیکي تحریک له اغېزو څخه پر انسانانو د تجربو په واسطه، پر انسانانو تجربه د پوستکي د تحریک فزیولوژیکي اغېزې د الکترو مقناطیسي کمزورې ساحې چې نیم یا ۲،۴ هرتز ته نږدې ټاکلو فریکونسیانو کې پر پوستکي خپرېږي، ښیي چې دا مقناطیسي ساحه د احساساتو د راپارولو او په احساساتو کې د غبرګونونو د رامنځته کولو سبب ګرځي.

د کمپیوټر او ټلویزیونو ډېری بربښنایي پاڼې د انځورونو د ښودنې پر مهال، د کافي لمنې په لرلو سره یو ډول مقناطیسي ساحه د احساساتو د راپارولو له پاره تشکیلوي چې د ذهن د مهارولو او تحریک وړتیا لري او دا انځور د خپرونې په اوږدو کې ځای پر ځای کېږي او یا د انځورونو په څنګ کې اېښودل کېږي چې د راډیویي فریکونسي یا انځوریز سېګنال په څېر خپرېږي.

هغه مطالب چې احساسات راپاوري، کولای شي د ښکاره انځور یا په ناخوداګاه توګه (پټو پیغامونو) په شکل ځای پر ځای شي او په ټاکلې الکترو مقناطیسي ساحه کې خپاره شي.

د انځوریزو رسنیو د الکترونیکي پاڼو اغېزه کولای شو په افغانستان کې د غرب او د غربیانو په واسطه د محرکو رسنیو په راتګ سره په ښه توګه احساس کړو چې په تدریجي شکل سره د غرب د ارزښتونو په خپراوي او تبلیغ او د افغاني ارزښتونو په له منځه وړلو یې پیل وکړ.

د بېلګې په توګه په لومړیو کې یې د ټلویزیون پر پرده ښځینه سندرغاړو د راښکاره کېدو اجازه نلرله، کرار کرار یې له سیمه ییزو ټیکریو سره د زړو ښځینه سندرغاړو په واسطه پیل وکړ او د عامه اذهانو په تیارېدو اوس عامه ذهنونه داسې بدل شوي چې پر د پنځلس کاله مخکې ارزښتونو خندا کېږي او د افغانستان مسلمان، مجاهد، غیرتي، با حیثیته او شهید پالونکی هېواد اوس زرګونه د غربي پر بې حجابه جامو سمبال ویاندویان، د هنرمندانو په نامه سلګونه رقاصې او د ټلویزیون په نامه د دیوسۍ سلګونه

---

۱. د US 65148 B2 (Nervous system manipulation by electromagnetic fields from monitors) د ثبت د اختراع شمېره

مرکزونه لري او هغو خلکو چې د ملکې ثريا د څادر په غورځولو سره يې د امان الله خان شاهي له منځه يوړه، اوس خپله د دې هېواد د ناموسونو د لمنو د لرې کېدو ننداره چيان دي او نه يوازې دا چې غلي ناست دي، بلکې خوند ترې اخلي او ان د هر يو کور تر دروازو يې لاره کړې ده.

انځوريزې رسنۍ د تفريحي، لوبو او ورزشي خپرونو په خپرولو سره له با ارزښته او حياتي مسئلو څخه د فکرونو د تمرکز د لرې کولو مهمه وسيله ده چې د دې رسنيو محرکين د هنري فلمونو، هنري سريالونو، ورزشي سياليو او د موسيقۍ کنسرتونو په واسطه عامه ذهنونه يې په مزخرفاتو بوخت کړي او خپله د عامه ذهنونو له سترګو لرې لويې اجنډاګانې تطبيقوي.

هغه خلک چې د دې خپرونې په موجوديت کې اوس هم تږولنيز، سياسي او اقتصادي مسايلو ته پام کوي، د خپلو هيولايي دروغو په واسطه يې د رسنيو د محرکينو د پلانونو په منلو قانع کړي دي، د بېلګې په توګه *د امريکا د متحدو ايالتونو د دفاع وزارت له نيم ميليارد څخه زيات ډالر يو انګليسي شرکت ته د اسلامي تروريستانو په اړه د دروغجنو فلمونو د جوړولو له پاره ورکړي دي چې په کې پر مسلمانانو د امريکا نظامي غيرمنصفانه حملې روا وګڼي.*[1]



په يو کارتوني فلم کې د سکس کلمه چې که په ويډيويي بڼه وليدل شي، د اګاه ذهن پام ور اوړي.

د دې انځوريزو رسنيو له لارې د دې دروغجنو فلمونو ليدلو سره ډېرى مسلمانان د امريکا له وحشيانه حملو ملاتړ کوي. پر اسلامي نړۍ د غرب د حملو توجيه يوازې د امريکا د دفاع وزارت په دروغجنو فلمونو خلاصه شوې نه ده، بلکې له ۱۹۸۰زېږديز کال راهيسې، غربي

1. Pentagon paid PR firm $ 40mn to make fake terrorist videos. Russia Today (www.rt.com), 4 Oct, 2016

رسنۍ او په ځانګړې توګه هالیووډي فلمونه، اسلامي ظاهري لباس سره داسې خلک چې په دې فلمونو کې لـه شیطاني سـناریوګانو سـره د تروریسـتانو پـه توګـه د اسـلام د څېرې ښودلو لپاره لوبوي او د نړیوالو ذهنونه په ناخوداګاه توګه د اسلام ضد احساسـاتو ته هڅوي.

انځوریزې رسنۍ د انتقـادي تفکـر خلـک داسـې انځـوروي چـې پـه دې فکـر خلـک یوازې څو تنه دي او په دې ترتیب سره هغوی څنګ ته کېږي او ان خپله یې ځـان تـه د لږکیو احساس کوي او له انتقادي نظریو (په ځانګړې توګه د لیبرالېزم یا ډله ییزو رسـنیو ضد نظرونو) له وړاندې کولو وېره لري.

په دې ډول خلکو پورې په ډله ییزو رسنیو کې خندا کېږي او پر وړاندې یې په غربي ظاهره (خرېیلې ږیره، درېشي او نکټایي اغوستې او د اوبو پیاله پر لاس) خلک د بریالیو او عصري خلکو په توګه ښکاره کوي، په دې اړه دوکتـور دوګـلاس روشـکوف تئورېسـن د رسنیو په برخه کې د پوهنتون استاد او لیکوال وایي:

*هر څوک چې د وړاندیز شوو پالیسیو پرخلاف وي، اقلیت ښودل کېږي او څنډې تـه کېږي او په دې ترتیب سره هغو کسانو ته چې د عامه اړیکـو د موخـو پـر وړانـدې وي، د یوازیتوب احساس ورکول کېږي.*[1] په همدې ترتیب هغو ښځو ته چې په لیبرال مفکـورې او نیمه لوڅو یا لوڅو جامو سره له جنسي پلوه مخکښ چلند لري بریالۍ ښـځه پېژنـدل کېږي چې پـه ټولنـه کـې، د بـد حجـابۍ او جنسـي ازادۍ د مفکـورې د پراختیـا لامـل ګرځي.

د غرب د عصري تمدن د انځوریزو رسنیو یو مهم پلان، فحشا او بـې لارۍ تـه هڅـول دي او تر دې وروسته ښځې د جنسي مالونو پـه توګـه او انسـانانو داسـې انځـورول چـې جنسي تمایلات یـې لـه حـد څخـه زیـات دي. *د رسـنیو لـه خـوا د یـوې ښـځـې ژونـد د جنسي مالونو په توګه داسې تحمیلېږي چې بدن یې له یوه خام ماشوم سره پرتله کوي.*

*ښځې د رسنیو په مرسته داسې په ماهره توګه روزل کېږي چې خپل ځـان ناتکمیـل وګڼي او داسې درس ورکول کېږي چې نورې ښځې د ښو جامو، اراېشـي وسایلو، خـوړو، تفریحي سـفرونو او نـورو شـیانو لـه املـه تـر دوی جـذابې دي او دا ښـځې د جـذابیت د ښودنې له پاره باید خپل ځان له داسې وسایلو سره سمبال کړي چې د فکر دا طریقه د شرکتونو له پاره ګټوره او د خلکو له پاره منزوي کوونکې ده.*[2]

---

1. Douglas Rushkoff; Media Virus; p 24
2. Wilson Bryan Key; Media Sexploitation; p 19

د انځوریزو رسنیو ډېری خپرونې د جنسـي نامشـروعو اړیکـو پـه خپـراوي او تشـویقي پلانونو په تعقیبولو سره او دا ډول اړیکې عـادي ښـیي، څرنګـه چـې پـه افغانسـتان کـې ځینې سریالونو او فلمونه خپرېږي، د دې سریالونو ډېری اتلان د اړیکو په یو مثلث کـې راګیر وي او یا یې اتلان له واده پرته له خپلې مېرمنې سره په خیانت له نـورو ښـځو سـره اړیکې لري او د دې سریالونو کیسې او سناریوګانې داسې جوړېږي چې دا اتل له یـوې اړیکې د زیاتو په لرلو سره په حقه ښودل کېږي.

د دې سناریوګانو په واسطه پرته له دې چې ټولنـه د فحشـا لـور تـه بیـایي، پـه اغـوا کوونکي انداز کې د جینکو ښودنه، تحریکوونکو مرکو او له جنسـي موضـوعاتو سـره ملـه موسیقي د انځورونو د پټو پیغامونو په واسطه ټولنه د فحش پالنې لور ته بیـایي. *لـه پټـو پیغامونو څخه د لومړي ځل له پاره په ۱۹۵۷ زېږدیز کال، کله چې جېمـز ویکـاري ادعـا وکړه چې د Subliminal Projection Co په نامه یې یوه داسې اله کشف کـړې ده چـې د یوې ثانیې په څوومه برخه کې د پیغامونو په خپرولو قادره ده.*

*نوموړي د خلکو پام ځان ته را واړوه. د امریکا د نیوجرسي په ایالت کې یـوې سـینما لـه دې الـې څخـه د شـېږو اونیـو لـه پـاره د (کوکـا کـولا وڅښـئ) او (وږې یاسـت؟ پلـي وخورئ) د پیغام د خپرولو له پاره کار واخیست چـې د ښـودنې د دې ورځـو پـر مهـال د پلیو خرڅلاو ۵۸ سلنه او د کوکاکولا خرڅلا ۱۸ سلنه زیات شوي و.*

*په عمومي توګه د دې ټکنالوژۍ په پرتله د خلکو غبرګون غوسه ناک ښکاربده، ځکـه چې خلکو دا اله د ذهنونو مهاروونکې ګڼله.*[1] فلمونه د انسانانو د اګـاه ذهنونـو لـه پـاره، متحرک انځورونه ښکاري، خو فلمونه متحرک انځورونه نه دي بلکـې د سـاکنو انځورونـو یوه ټولګه ده چې که دا انځورونه په یوه ثانیه کې د ۲۴ یا ډېـر انځورونـه وښـیي نـو زمـوږ اګـاه ذهـن بـه د دې انځورونـو د سـاکنوالي پـر پوهېـدو نـه تـوانېږي او هغـه د متحرکـو انځورونو یا فلم په توګه ویني خو ناخوداګاه ذهن هر انځور په بېله توګـه پـه حافظـه کـې ثبتوي.

د پټو پیغامونو بل ډول د خپرېدونکو پیغامونو په توګـه نـه دی بلکـې پـه یـو او یـا څـو ساکنو انځورونو کې ځای پر ځای کېږي چې یـوازې ناخوداګـاه ذهـن د دې پیغـامونو د پوهېدو او درک وړتیا لـري او د دې ذهـن پـه معلومـاتو کـې پـه تلپـاتې توګـه پېچکـاري کېږي. هره ورځ په زرګونه پټ پیغامونه د انځوریزو رسنیو په واسطه په عامه ذهنونو او پـه ځانګړې توګه د ماشومانو په ذهنونو کې چې د جنسي اړیکو او فحشا په لور یې هڅوي،

---

1. Gohar Mushtaq; The Music Made Me Do it; p 119

پېچکاري کېږي او له همدې امله ده چې د اوس وخت انسانان په جنسي فکرونو او تخیلونو کې ډوب دي او پر جنسي اعمالو اوښتي دي او یا د سکس فلمونو په لیدلو بوخت دي، ځکه چې رسنیو هر څه جنسي کړي دي.

جنسي عمل د ښځې او سړي تر منځ یو معمول عمل دی او د یوې ټولنې بنسټ تشکیلوي. پخوانیو اصیلو تمدنونو دا اړیکه په واده پورې تړلې وه، تر دې چې د غرب عصري تمدن یا دجالي تمدن، له ټولنیز مقصد څخه د جنسي اړیکې بېلوالی راووړ او دا معنوي پدیده یې په یوې مطلقې شهواني پدیدې واړوله چې جنسي عمل یوازې د جنسي غریزې د ترسره کولو پر مفهوم دی.

د جنسي عمل د معنوي ارزښتونو له منځه تلل د یوې ټولنې د معنوي زوال تر ټولو ستر لامل دی د یوې ټولنې پر بنسټونو څو بُعدي منفي اغېزې لري او د سکس فلمونو صنعت د ټولنو د له منځه وړلو تر ټولو ستره وسیله ګڼل کېږي. سکس فلم پرته له دې چې د خلکو پر ذهنونو بده اغېزه لري او د انسان مغز کوچنی کوي،[1] په ټولنه او کورنۍ کې د خلکو د ژوند په طریقې باندې ډېره بده اغېزه لري[2].

هغه خلک چې د سکس فلم په لیدلو بلد دي، د غیر معمول جنسي عمل د لرلو له پاره یې غوښتنې لوړې شوې دي او په کور کې هم د همداسې جنسي عمل د لرلو غوښتنه کوي او دا چې امکان یې نه وي نو یوه ناخوښه جنسي ټولنه جوړوي.

کله چې یو چا د خپلې خوښې له مخې جنسي عمل ونکړ؛ نو له واده پرته اړیکو ته مخه کوي او په دې اړیکو کې هم د خپلې خوښې جنسي عمل په نه موندلو سره، انسانان غیرعادي جنسي اړیکو ته مخه کوي چې له ماشومانو، حیواناتو او یا همجنسانو سره دا اړیکي پالي.

په دې حالت کې د جنسي عمل احساسي اجزاوې لکه مینه، وعده او تړون له منځه ځي او په کورنۍ کې د بې باورۍ یوه ستره خلا راځي چې باور د کورنۍ اساسي بنسټ ګڼل کېږي، د کورنۍ په له منځه تللو سره ټولنه هم خرابېږي او د فتنو او فتنه اچوونکو ښکار کېږي.

فرهنګي یرغل د ببلابېلو وسیلو او له هغې سره په تړلو پېښو سره ناڅاپي نه دی بلکې د دې سترو او نړۍ سوځوونکو فتنو د پردې تر شا متفکر مغز شته دی چې په اسلام کې دې متفکر مغز ته مسیح الدجال ویل شوی دی او فتنې یې د تاریخ له

---

1. Is porn literally shrinking men's brains?; The Telegraph; May 29 2014

۲. د لا زیاتو معلوماتو له پاره د Mary Eberstadt او Mary Anne Layden کتاب The Social Cost of Pornography ولولئ.

لومړی ورځې تر قیامت پورې شمېرل کېږي او ډېری یهودیـان یـې پیـروان دي چـې د سترو ډله ییزو رسنیو محرکه قوه هم همدا اروپایي یهودیان او امریکایان دي.

*دا څرګنده ده چې په امریکایي رسنیو کې یهودیان ډېر واک لرونکی مقام لري او دا مقـام لـه نـورو ملیتونـو ډېـر زورور دی. هغـوی د هـالیووډ ۶۰ سـلنه لـوړ رتبـه مقامـات تشکیلوي او د بن استین د وینا له مخې، هغوی هالیووډ اداره کوي.*[1] یهودیان نـه یـوازې د نړی د سترو رسنیو خاوندان دي، بلکې د سکس فلمونو په تولید کې هم له ډېـر نفـوذ څخه برخمن دي. دوکتور نتن ابرامز چې یو یهودی او د دې صنعت یوه سـتره څېـره ده، په ۲۰۰۴ زېږدیز کال یې د یهودیانو په درې میاشـتنۍ مجلـه کـې پـه ویـاړ سـره وویـل: *یهودیان په دې سل بیلیون ډالري صنعت کې تر ټولـو ډېـر رول لـري. د ګولډسټین پـه نوم د همدې یهودي ډاکټر یو یهودي ملګری دی وایي: یوازینـی دلیل چې یهودیان دې صنعت ته کـار کـوي، دا دی چـې مسـیح احمـق دی.*[2] دا سـتر پلانونـه پـه پـوره توګـه د صهیون د مشرانو له پروتوکولونو سره ورته والی لري چې صهیونېسـتان یـې لـه سـموالي انکار کوي، خو هنري فورډ د موټر جوړولو د کمپنۍ تر ټولو ستر رییس په دې اړه وایـي: *د صهیوني مشرانو پروتوکولونه له اوسـنیو پېښـو سـره مطابقـت لـري او تـر اوسـه د نـړۍ حالـت د همـدې پروتوکولونـو لـه مخـې مخکـې روان دی.*[3] د صـهیون مشـرانو دیارلسـم پروتوکول وایي: *د هغو خلکو د فکرونو او ذهنونو منحرف او بـې لاری کولـو لـه پـاره چـې کېدی شي موږ ته په سیاسي بحثونو کې ستونزې راولاړې کـړي، د صـنعت پـه څېـر مـو نوي مسایل ورته وړاندې کړي دي او ورته مو د نوو سیاسي مسایلو نـوم ورکـړی او خلکـو ته اجازه ورکوو چې پر دا ډول مسایلو بحث او څېړنه وکړي.*

*البته، ډېری خلک دې ته لېوال دي چې د سیاسي مسایلو په برخـه کـې غیـر فعـال وي، نو د دې له پاره چې دا کار وشي او پوه نه شي چـې د کـومې موضـوع پـه اړه بحـث کوي، د هغوی فکر مو د تفریح، بوختیا او کلپونو ته د ورتګ او نـورو مسـایلو تـه را اړولـی دی او په همدې مهال رسنۍ دې ته مجبوروو چې د هنـري او ورزشـي سـیالیو پـه څېـر مسایلو لاس پورې کړي.*

---

1. Kevin Macdonald; The Culture of Critique; p 1vi

2. The Jewish Quarterly; Nathan Abrams on Jews in the American porn industry; Winter 2004; Number 196

3. Imran N. Hosein; Jerusalem in the Quran; p 2

*له شک پرته دې ډول مسایلو ته لاس پورې کول، به دوی له بنسټیزو مسایلو لرې او منحرف کوي. کرار کرار د خپلې عقیدې په نه نښکارولو عادت کېږي او په پای کې د داسې څیزونو په تکرار لاس پورې کوي چې موږ یې غواړو.*

*او له دې لارې د هغوی د فکر لوری بدلوو او کولای شو چې په همکاری یې باور وکړو.*[1] د نړیوالو اذاهانو مهارول یوازې په دې بڼه نه دی شو او یهودیانو حتا په *انټرنېټ کې د معلوماتو په سانسورولو*[2] *لاس پورې کړی*او د علم په څېر سپېڅلې پدیده یې هم په خپل لاس کې اخیستې ده.

## پوهه

*د تولید وروستی موخه د کالیو تولید نه دی بلکې د خپلواکو او له یو بل سره د ترلو انسانانو تولید په مساواتو کې دی*[3] او د علم موخه هم خپلواکي ده؛ خو لېبرالېزم او تر هغې پورې تړلی سیاسي سېستم د متخصصې طبقې په واسته د سرگردانو طبقو د غلامولو پر بنسټ ولاړ دی.

د سرگردانه طبقو غلامول هغه مهال شونې ده چې دا ډله په جهل او ناپوهی کې وساتل شي او دوکه ومني، نو له دې امله لېبرالېستانو د دې طبقو احمق ساتلو لپاره سره له دې چې د رسنیو په واسطه ناسم معلومات پیچکاري کوي، د علم له مقدسې پدیدې څخه په غلطې کارونې سره او د لیبرالیزم دوکې سره گډو ارزښتونو عملي کولو ته لاس پورې کوي او د مخالفینو نظرونه د لېبرال عالمانو د انتقادونو له بمبارد سره مخوي چې د غرب مدرن تمدن پورې تړلو ټولنو له خوا د لرلو امتیازونو سره، شمېر یې له مخالفینو څخه زیات دی، نو دوی یې په دې توگه یې له مخې گوښه کوي او د لیونیانو خطاب ورته کوي.

د غربیانو په واسطه تر صنعتي انقلاب او د اقتصاد د گټې اخیستنې د نظام له پیل وروسته، هغوی په دې وتوانېدل څو په علم کې پانگونه په داسې حال کې پیل کړي چې شرقي تمدن او په ځانگړې توگه اسلام چې د علم او تمدن زانگو وه، د زوال په حال کې و او غربیانو له دې موقع گټه واخیسته او په کلاسیکو نظرونو کې یې لاسوهنه وکړه، په خپل نامه یې ثبت کړی او دروغجن علمي تاریخ یې جوړ کړ.

---

1. The Protocols of the Elders of Zion; Protocol Number 13

2. Kevin Macdonald; The Culture of Critique; p 1xiii

3. Noam Chomskey; Chomsky on MisEducation; p 37

وړاندې تر دې ان (ادم سمېټ) لا زېږېدلی نه و چې ابن خلدون د نړيوال اقتصاد نظريات په علمي توګه وړاندې کړل؛ خو اوس هم غربيان ادم سمېټ ته سره د پخوانيو علماوو د لاس وهل شوو او غلا شوو نظرونو، د اقتصاد د علم پلار وايي. او په همدې منوال مسلمانانو په ټولو علمي اړخونو کې ستره ونډه لرله چې بدبختانه نن ورځ د اسلامي نړۍ د بې پروايۍ له امله ټول علوم د اروپايانو په نوم شول او هغوی هم په بې شرمۍ سره د بدبع تخصصي-علمي څانګو د پلرونو په توګه غربيان د دې څانګو پلرونه وګرځول.

د علم د غربي کولو او انحصار له ځانه سره لاندې څو مهمې اجنډاوې لرلې: د غرب د عصري تمدن د ارزښتونو معتبر کول، د نورو تمدنونو د ارزښتونو بې اعتبارول او له منځه وړل، د غرب د عصري تمدن د نړيوال کولو او د سرګردانه طبقو په څېر د نړيوالو غلامول چې د دې تمدن، په نړۍ کې استعمار او واکمني تضمينوي.

د غرب عصري تمدن او لېبرالېزم، لېبرالان او نړيوال د دې نظريې د ارزښتونو غوره ګڼلو ته متقاعدول، نو له دې امله يې د علم په کنټرول او انحصار لاس پورې کړ او په دريو علمي برخو اجتماعيات، سياست او اقتصاد يې ډېر تاکيد لاره او د دې برخو انحصار، نورې عملي-تخصصي برخې هم د دوی تر کنټرول لاندې راوستې. پر ټوليزو رسنيو د علم غربي تاريخ او د غربيانو اغېز د دې لامل شو چې غربي علماوو او علم له ډېر نړيوال اعتبار خوند واخيست تر دې چې د غرب تر ټولو احمق نظريات هم د يو علمي اصل په توګه ګڼل کېږي.

اوس مهال د غرب علمي ټولنو او علومو اعتبار دې حد ته رسېدلی چې ان د اسلام علماء په نړيواله اکاډميکه ټولنه کې د منل کېدو لپاره، د غرب نظرياتو ته د ديني رواياتو په پرتله يې د ترجېح هڅه کړې، او د مسلمانانو تر ټولو ستر وياړ دا دی چې د غرب په يو پوهنتون کې يې يوه علمي درجه ترلاسه کړې وي او بېرته د څو جلده غربي کتابونو او غربي نظرياتو څخه په ډک مغز اسلامي هېوادونو ته ورغلي وي او د يو عالم په توګه دا نظريات خپاره کړي.

د علم د غربي کېدو وخت چې غربيان يې ډېر خوښ ګڼي چې ورته د روڼ اندۍ وخت وايي، په حقيقت کې د هغه علمي انحراف وخت دی چې په کې له علم څخه د اقتصادي او سياسي وسيلې په توګه کار اخيستل شوی او له اصطلاحاتو څخه يې ناسم تعريفونه د علمي تعريفونو په توګه پېژندل کېږي چې د روڼ اندی او روڼ اندي تعريفونهيې تر ټولو ښه نمونه ده.

دا روڼ اندی څوک دی؟ روڼ اندی هغه څوک دی چې انتقادي تفکر ولري، خو دا انتقادي تفکر یوازې او یوازې د غرب د عصري تمدن مخالفو ارزښتونو او نظرونو پورې ځانګړی دی، دا روڼ اندي باید د خپل سیال تمدن او په ځانګړې توګه دیني ارزښتونه او اصول تر انتقاد لاندې راولي؛ خو کله چې د غرب د عصري تمدن په ارزښتونو نیوکه کېږي غلي کېني او هغه څوک چې دې تمدن ته د نیوکې په سترګه ګوري، ویې ټکوي او ورپورې وخاندي او په غیر غربي خو د غرب تر استثمار او استعمار لاندې ټولنو کې روڼ اندی هغه څوک دی چې په ټوله مانا د غربیانو مقلد وي او د غربیانو په څېر جامې واغوندي، خوراک وکړي، فکر وکړي، او ښکاره شي او تر ټولو مهمه دا چې د خپل هېواد د ارزښتونو او فرهنګ پر ویجاړولو لاس پورې کړي او په هرې شونې لارې یې بد ښکاره کړي.

*ښوونه او روزنه د فرهنګ د رامنځ ته کېدو اساسي عنصر دی او همدارنګه د یو کس د اجتماعي کېدو اساسي عنصر هغه لاره ګڼل کېږي چې یو کس مسلط اجتماعي پاردایم اصلي ارزښتونه باطني کړي، نو له دې امله فرهنګ په عمومي توګه او ښوونه او روزنه په مشخصه توګه د ډله ییزو او فردي ارزښتونو په ټاکنه کې حیاتي رول لري، ځکه چې یو څوک په ټولنه کې ژوند کوي، یوازې یو کس نه دی بلکې یو ټولنیز سړی دی*[1] د غرب استعمار او استثمار زموږ د ټولنې ټولې خواوې تر یرغل لاندې راوستې دي او د ښوونې او روزنې سېستم هم ترې مستثنا نه دی په دې حیاتي برخه کې استعمارګرانو د دیني او سنتي ارزښتونو د ورانولو له پاره ډېرې هڅې کړې دي او پر ځای یې غربي تیوریکي ارزښتونه چې اکثره یې نه په دلیلي او نه هم په تجربوي توګه په اثبات رسېدلي دي د علم په واسطه یې ترسره کړي دي.

د اسلامي نړۍ بې پروايي د دې لامل شوه، مسلمانان چې یو وخت د علومو رامنځ ته کوونکي وو، د غربي علومو په مقلدینو او ژباړونکو واوښتل او د لویدیځ تعلیمي نصابونه له هر اړخیزو څېړنو پرته اسلامي نړۍ ته راوړل او پرته له دې چې د غربي نظرونو سموالی ارزیابي کړي، په اسلامي ټولنو کې یې د هغې په تدریس پیل وکړ.

وارد شوي تعلیمي نصابونه هېڅکله بې لوري نه وو او د صاردوونکو تر اغېز لاندې د غرب د ارزښتونو د ځای پر ځای کولو له پاره او همدارنګه د مسلمانانو تر منځ د علمي اندېښنو د رامنځ ته کولو له پاره چاپ شول، په دې اړه د ونسکانسن پوهنتون استاد وایي: *ښوونه او روزنه په ژوره توګه په فرهنګي سیاست پورې تړلې ده. هېڅکله تعلیمي*

1. Takis Fotopoulos; From (mis) Education to Paideia; p 1

*نصابونه چې د يو ملت په صنفونو او کړنو کې راڅرګندېږي د بې لوري علم مجموعه نه ده او تل د هغو مشخصو سنتونو يوه برخه وي چې د يو شخص يا ډلې له خوا د قانوني پوهې په توګه ګڼل کېږي.*[1]

له بده مرغه اسلامي نړۍ اوس مهال داسې تر علمي استثمار لاندې راغلې چې د غرب تيوريکي نظرونه يې له پوښتنې او شک پرته منلي دي او ان د هغې د سموالي له پاره يې د ځينو اسلامي رواياتو لاره برابره کړې ده. مسلمانانو علمي نوښتونو ته پاملرنه ونه کړه او پر وړاندې يې د غربي کتابونو تقليد او ژباړه وکړه او غوښتل شوې او ناغوښتل شوې توګه ذهنونه داسې اماده شوي دي چې د غرب علمي نظريات ناسم کېداى نه شي.

که کوم مسلمان د غربي علماوو پر وړاندې نقد وکړي، د خپلو مسلمانو علمي ټولنې ور پورې خاندي او په حقيقت کې نور غربيان د خپلو ارزښتونو د پېچکاري کولو له پاره اسلامي هېوادونو ته د خپلو علماوو لېږلو ته اړ نه دي؛ ځکه چې د دوى کار او غوښتنې په وړيا ډول خپله اسلامي علمي ټولنه ترسره کوي.

يوه بله نسخه يې د مثبت پالنې په نوم راوړه او دا يې په دې علمي کړۍ کې نويسته په دې عقيده چې بايد د هرې پېښې مثبت اړخ ووينې او له منفي اړخونو څخه يې تېر شي، که امريکا، اسلامي هېواد تر نظامي حملې لاندې راوړي او په کې ميليونونه مسلمانان له منځه وړي،خو پر وړاندې يې يو مثبت اړخ هم شته چې د مسلمانانو له پاره څو وداني هم جوړوي او يو مثبت پالې شخص يې مثبت اړخ ويني او که يوه مبتذله رسنۍ په پرلپسې توګه مسلمانان تر فرهنګي يرغل لاندې راولي، نو په بدل کې يې معلومات هم وړاندې کوي او مثبت اړخ يې هم بايد وليدل شي.

له بده مرغه مسلمانان هم په غربي عصري تمدن کې د ګډون له پاره د مثبت پالنې په ترويج او تبليغ اخته دي، په داسې حال کې چې مثبت پالنه په حقيقت کې د مشهور متل مفهوم وړاندې کوي چې وايي: که له سړي غيرت لرې شي، نو بيا بې پروا دې ګرځي. خو اوس مسلمانان له سړي څخه د غيرت لرې کېدل عيب نه ګڼي.[2]

فرويد (Freud) پرته له دې يو برهاني يا تجربوي دليل وړاندې کړي، انسان يې يو غريزوي موجود تعريف کړى دى او د دې غريزو د رفعه کولو له پاره يې له محارمو او ان همجنس پالانو سره جنسي اړيکې وړاندې کړې دي. د اسلام علمي ټولنه پرته له دې

1. Teachers College Record; Colambia University; Vol 95; No 2; winter 1993; p 222 (Michael W. Apple; The University of Wisconsin-Madison, The Politics of Official Knowledge: Does a National Curriculum Make Sence?)

۲. په بل تعبير (ژباړن)

چې فروید وپېژني او وپوهېږي چې هغه خپله له وروڼو سره په یو همجنس پاله او بې لارې کورنۍ کې اوسېږي، هغه وروڼه چې ځلور بريالی او نابريالی ځان وژنې یې کړې دي، هغه ته یې د یو عالم خطاب کړی دی او د هغه د نظرونو پر تدریس اخته دي.

نیکولا مکیاولي سیاست ته د د علم او قدرت د کسب او د ساتنې په توګه او سیاسي ګوندونو د هغو احساساتو راپاروونکي ګڼي چې لړه ضربه ویني خو ډېره ضربه خپلو دښمنانو ته رسوي. خو مسلمانان پرته له دې چې درک کړي، سیاست په اسلام کې د متقابلو حقونو له رعایت څخه عبارت دی او د دوست او دښمن پر وړاندې د عدالت رعایت د اسلامي سیاست بنسټ تشکیلوي.

اسلامي عالمان پرته له دې چې داسې کوم څه درک کړي، نو غربي علماء د سیاست د علم ستر متفکرین ګڼي او د هغوی له نظریو پیروي کوي. ادم سمېټ انسان ته اقتصادي حیوان وایي چې له ګټې پرته بل څه نه پېژني له دې محور څخه پرته بل هر څه که صدقه، مرسته، قرباني او ترحم وي، خرافات ورته وایي، سود خوړلو ته علمي جواز ورکوي او د اقتصادي علماوو په واسطه د بازار مهارول ردوي، خو اوس هم په اسلامي نړۍ کې د اقتصاد د علم د پلار په توګه پېژندل کېږي او له غیر انساني نظرونو څخه یې تېرېږي او له علمي اعتباره یې خوند اخلي.

په داسې حال کې چې د ابن خلدون په څېر د اسلام ستر علماء په اسلامي علمي ټولنه کې هېڅ مهم ځای نه لري.

نړیوال استعمار او استثمار د غرب تر کنټرول لاندې د استعماري اقتصادي او د غرب تر کنټرول لاندې د بهره برداری اقتصاد اجنډاوو له تطبیق پرته ناشونی دی نو له دې امله د غرب د استعمار او استثمار د ښه پوهېدو له پاره د غرب تر کنټرول لاندې د اقتصادي سېستم او د تاریخي پړاو مطالعه او پېژندنه یو اړین کار دی.

## درېيم فصل
## اقتصادي استعمار

# د پیسو تاریخ

نړۍ په یوه داسې زمانه کې ده چې د بشریت تاریخ یې ساری نه دی تجربه کړی. دا زمانه، د چټک پرمختګ، چټک بدلون، معلوماتو، ټکنالوژۍ، علم، اقتصاد، سوداګرۍ او نړیوالتوب وخت دی؛ خو دا وخت داسې شی نه دی چې ښکاره شي؛ بلکې د فتنو او دوکو وخت دی چې په کې خپلواکي د غلامۍ، جګړه د سولې، جهالت د زور، نېکمرغي د شتمنۍ د لرلو، علم په کې له معتبر ځای څخه د ټاپه شوي کاغذ او سوداګري او اقتصاد په کې خولې ته د پورته کولو په مانا دی او په ظاهره او باطن کې له یو بل سره متضاد دي چې دا فتنې د رسول الله ﷺ د دجال د وخت له وړاندوېینې سره برابر دي.

زموږ د وخت تر ټولو ستره فتنه، د پانګونې نړیوال اقتصادي نظام دی چې په کې ډېری پانګې د ګردش په حال کې نه دي، ستر پانګوال تضمین شوي پیسه لرونکي دي. فقیران د تل په څېر د بې وزلۍ د میلو ترشا بندیان دي. *د نړۍ د ټولې پانګې له مجموعې څخه یې ۵۹ سلنه د ۴۵۰ تنو میلیاردرانو په لاس کې او ۸۰ سلنه یې د څو سترو هېوادونو په لاس کې دي*[1].

بالاخره ډېری خلک د وخت په تېرېدو سره د پانګوالو په کوچنیو اقلیتونو د غلامۍ په تلک کې ایسارېږي. پر اوسني اقتصادي نظام پوهېدل د پیسو د تاریخ په ځانګړې توګه د بربښنایي یا کاغذي پیسو له مطالعې او پوهې پرته شوني نه دي.

لومړنیو انسانانو د دې له پاره چې یو شی به بل نه لاره، خپل مال به یې ورسره بدلاوه، د بېلګې په توګه د اوربشو د لرلو له پاره یې غنم ورسره بدلول او له جنس څخه

1. Michel Chossudovsky; The Globalizaion of Poverty and The New World order; pp 7 & 21

د پیسو په توګه کار اخیستل کېده؛ ځکه پیسې د راکړې ورکړې وسیله ده. د خلکو، قبیلو، امپراتوریو او تمدنونو تر منځ د راکړې ورکړې په زیاتېدو او د بشر په تکامل سره جنس په جنس بدلونې سوداګري له ستونزو سره مخ کړه او د هغې د سستوالي لامل وګرځېده، نو له دې امله لوړ بیه لرونکې فلزي سکې (په ځانګړې توګه سره زر او نقره) د پیسو په توګه رامنځ ته شول.

د تاریخ په اوږدو کې د پیسو یوه اصلي ځانګړتیا، ذاتي ارزښت یې و. یعنې، هر هغه څه چې د پیسو په واسطه یې راکړه ورکړه کېده، په خپل ذات کې هم د ارزښت وړ وو، د بېلګې په توګه غنم، خرما، نقره، سپین زر او نور. د نقرې او سرو زرو سکې، د بشریت په تاریخ کې د پیسو تر ټولو اوږد دوره دي چې تر میلاد وړاندې له بابل او یونان څخه د فرانسې تر انقلابه پورې وکارېدې.

د سرو زرو او نقرو او د پیسو ټول هغه ډولونه چې د ذاتي ارزښت لرونکي دي، له شیطان صفته او واک پاله انسانانو څخه د مستقیم مهار کولو واک اخلي، نو له دې امله د دجال په لومړۍ ورځ او د لومړۍ ورځې په عملیاتي مرکز (برېتانیې) کې، *اتم هنري پادشاه د پیسو د کنټرول د رانیولو او د پیسو د ارزښت د مهارولو له پاره په تقلب لاس پورې کړ او د نقرې په اوبو یې د مسې سکو په رنګولو سره خلک د دې تقلبي سکو منلو د اصلي سکو په مساوي ارزښت اړ کړل او د خلکو د دوکه کولو په دې حالت کې یې د انګلیس د شاهي دولت ستره پانګه لاسته راوړه*[1].

همدارنګه په دیارلسمه پېړۍ کې یې، کتبي حوالو ، سوداګرو او بانکوالو سره مرسته کوله څو د حجیمو حوالو د انتقال پر ځای، حوالې له بانکونو څخه واخلي او انتقالولې به یې. دا حوالې د بانکوالو او هغو کسانو له خوا چې د ضرب طلا فابریکې یې لرلې، هغو کسانو ته لېږل کېدې چې ورسره به د سرو زرو او نقرې د اندازې له مخې اېښودل شوې وې.

کرار کرار یادې حوالې د پیسو په توګه د اصلي پیسو په بدل کې رواج شوې او په راکړه ورکړه کې کارېدې او وروسته د بانکنوټونو په نوم ونومول شوې. د ډېرو پېړیو له پاره بانکنوټونه په سرو زرو او نقرې او د نقرې او سرو زرو په سکو متکي وو چې بیا یې هم مستقیم مهار جوړونه ناشونې کوله، سره له دې چې بانکوالو د بېلابېلو حیلو او چلونو له مخې د غیر قانوني شتمنۍ له پاره ترې کار اخیست. د بېلګې په توګه هغه

1. James Robertson; The History of Money; p 7

سره زر او نقره چې د بانکنوټونو په بدل کې به ورسره ذخیره کېده هغه به د امانت په توګه اېښودل شوې وه.

دوی پوهېدل چې ټول خلک په ډله ییزه توګه په خپلو ذخیره شوو نقرو او طلاوو پسې نه راځي، نو ځکه یې په سود باندې پور ورکاوه او یوه پانګه په دوو ځایونو کې د دوو مراجعو تر څنګ یعنې د بانکوال او د پانګې له خاوند سره د ګردش په حال کې وه او همدارنګه د صادر شوو بانکنوټونو اندازه د ذخیره شوو سرو زرو او نقرو سره سمه نه وه، نو له دې امله یې د لږ ملاتړ له مخې ډېر بانک نوټونه بازار ته وړاندې کول او له هېڅ څخه یې پانګه ترلاسه کوله، په دې اړه د شپاړسمې پېړۍ کاتولیک کشیش داسې وایي: *"سوداګر او بانکوال د خپلو ابتکاري کړنو د کشف له پاره له څو ډوله چلونو کار اخلي چې موږ پرې نه پوهېږو."*

*تر دې ځایه حیلې او چلونه داسې جوړ شوي وو څو پورې له سود سره چې په میسحیت کې ګناه ګڼل کېږي پټه کړي، خو کرار کرار یې له مسیحیت څخه د سود خوړلو ګناه لرې کړه او بانکوال په دې وتوانېدل چې په ازاده توګه په سود پور ورکړي او د چلونو تمرکز یې له هېڅ څخه د پیسو پر تولید شو چې تولید شوې پیسې یو وار بیا په سود پور ورکړي*[1].

دا چلونه د دې لامل شول څو بانکوال یوازې د بانکنوټونو د چاپ په بیه او د دې بانکنوټونو پرمخ د ارقامو په لیکلو د سرو زرو او نقرې ارزښت هغوی ته ورکړي او د ځان له پاره له هېڅ څخه پانګه تولید کړي. بشري تاریخ پر دې شاهد دی، هغه کسان چې ډېره شتمني یې لرله، ډېر قدرت او واک یې هم لاره او همدارنګه ډېری دې خلکو خپله پانګه له غیر مشروعو لارو لاسته راوړه، د واک او شتمنۍ په ترلاسه کولو سره یې حرص زیات شو او د نور واک د ساتنې او ترلاسه کولو او همدارنګه د ډېرې شتمنۍ او غلامیتوب پر ساتنې پسې شول.

اروپایي بانکوال هم چې په هغه وخت کې د واک او شتمنۍ خاوندان وو او همدارنګه د هغه مهال په حکومتونو کې یې له سیاسي نفوذ څخه خوند اخیست، د خپل واک او شتمنۍ پر پراختیا پسې شول تر دې چې د ملي پیسو د کنترول له پاره یې طرحه جوړه کړه او د دې کار له پاره یې لومړی اړوند هېواد د دجال د لومړۍ ورځې عملیاتي مرکز و.

---

۱. همدا سرچینه؛ ۹ مخ

څرګنده ده چې هېڅ هېواد نه غواړي، خپلې پیسې په شخصي ټولنې پورې وتړي، نو له دې امله هغه بانکوالو چې سیاسي نفوذ یې لاره، برېتانیه او فرانسه یې لـه یـو بـل سره د جګړې پـه لـور وهڅـول. پـه ۱۶۹۴ *زي.دیـز کـال د فرانسـې د څوارلسـم پادشـاه لوییس او انګلېستان تر منځ جګړه د یوې واقعې باعث شوه چې د پیسو په تاریخ کې تـر ټولو ستر پړاو ګڼل کېږي.*

*د برېتانیې پادشاه درېیم ویلیم د جګړې پر مخ وړلو له پاره ډېرو پیسو ته اړتیا لرله او د برېتانیې پارلمـان د مـالیې لوړولـو تـه حاضـر نـه و، نـو لـه دې املـه د ویلـیم پېټرسـن سکاټلېنډي په مرسته، د لندن ځینې سوداګرو پادشاه ویلیم دې تـه قـانع کـړ چـې یـو بانک جوړ کړي څو دا بانک، پادشاه ویلیم ته پیسې په پور ورکړي. یاد بانک سره له دې چې یو شخصي سوداګریز بانک و، د انګلیس د بانک په نوم ونومول شو.*

*یاد بانک باوري و چې د خپلو پورونو ګټه لاسته راوړلای شـي، ځکـه حکومـت بـه د سود د ورکولو له پاره له مالیو څخه کار واخلي، نو ځکه یې پور ورکول پیل کړل، پرته لـه دې چې په ببرته ورکړې یې تېنګار وشي. په دې شرط شي چې سود بـه یـې ورکـوي. او دې کار حکومت د لا پسې ډېر پور اخیستلو ته تشویق کړ. حکومتونو په ټولـه نـړۍ کـې دا لاره تعقیب کړه چې نن ورځ خلک د خپلو درنو مالیو په واسطه د شخصـي بـانکونو د سود په ورکولو مجبور دي*[۱].

د انګلیس د شخصي بانک تشکیل چې د انګلیس پیسې یې چاپولې، د بشریت د تاریخ تر ټولو ستر اقتصادي فساد ګڼل کېږي چې تـر اوسـه یـې انسـانان پـه اقتصـادي ګوانتانامو کې را ایسار کړي دي او تر اوسه به داسې هېڅ انسان پیدا نکړې چې د دوکو او جعلي اقتصادي سېستم تر اغېز لاندې چـې لـومړنی هغـه یـې د انګلـیس بانـک و نـه وي.

په اتلسمه پېړۍ کې د راتشچایلډ د کـورنۍ پـه اقتصـادي پورتـه والـي او د جعلـي او خلکو ته له دروغو سره د ګډ سېستم په خپرېدو، د ملي بانـک پدیـدې پـه لاسـته ورتلـو، دې کورنۍ ته دا زمینه برابره شوه څو هغه پلانونه چې خزرانو په اتمه پېړۍ کې په سـر کې لرل، عملي اړخ ورکړي.

د امریکا د متحدو ایالتونو د کانګرس کاندید دوکتور کـن مټـو (Ken Matto) لیکـي: په ۱۷۷۳ *زېږدیز کال میر انچل باور (راتشچایلډ)، د طلا ویلـې کېـدو د فـابریکې مالـک،*

---

۱. همدا سرچینه، ۱۰ مخ

*صراف او پانگوال د ولس پرنفوذه او پانگوال سرړي خپل کاري دفتر ته د جرمني په فرانکفورټ کې راوبلل.*

*له دې غونډې څخه د هغې موخه دا وه چې دا کسان دې ته قانع کړي چې که خپلې پانگې سره يو ځای نکړي، نو د پانگو، طبيعي او انساني سرچينو کنټرول به ورته په ټوله نړی کې ناشونی شي او خپل ۲۵ پړاويز پلان يې ورته وړاندې کړ[1].*

د دې ديارلسو کورنيو ۲۵ پړاويز پلان چې فرېټس اسپرنگماير (Fritz Springmeier) يې د روښن فکرانو د ديارلس شيطاني نسبه (Illuminati) بولي، د صهيون د مشرانو د ۲۴ پروتوکولونو په څېر د يو تاريخي حقيقت په توگه نه دی ثابت شوی خو نننی او د څو وروستيو پېړيو تاريخي پېښې او پړاوونه د دې پلانونو د رښتيا کېدو شاهدې دي چې د صهيون د مشرانو د ۲۴ پروتوکولونو يوه بله نسخه ده.

په دې پلانونو کې ځينې مهمې برخې د علمي وينا وو پر ځای له وحشت او ترور څخه استفاده، د سياسي قدرت د ترلاسه کولو له پاره د لېبرالېزم تبليغ، د طبقاتي جگړو جوړول، د ديارلسو کورنيو پټ پاتې کېدل تر دې چې واک يې دې حد ته ورسېږي چې د دولت او خلکو زور پرې ونه رسېږي، د معلوماتو او رسنيو کنټرول، د مشهورو شعارونو په واسطه له سېستماتيکو چلونو کار اخيستل او د هغو پر خلاف عمل کول، د شرابو، زنا، موسيقی، نېشه يي توکو او نورو اخلاقي فسادونو په واسطه د ځوان نسل فاسدول او همدارنگه د بېلابېلو تيوريو (مارکسېزم، لېنېنېزم، فاشيزم، انارشېزم او نورو) په واسطه يې فساد ته هڅول چې پوهېږو دا (ديارلس کورنی) دروغ دي، او په پای کې د نوي نړيوال نظم (New World Order) په نوم د يو نړيوال حکومت جوړول.

تر دې ناستې وروسته، راتشچايلډ خپل پنځه زامن د اروپا پنځو مهمو ښارونو ته ولېږل او ډېر ژر يې د اروپا د مهمو هېوادونو د پيسو واک په لاس کې واخيست. راتشچايلډ او ورسره نورې ديارلس کورنی چې د خزر له نسب څخه دي، ټولو يې د بيت المقدس په مرکز کولو سره د يو نړيوال حکومت د جوړولو هيله لرله او له همدې امله له بريتانيې څخه په جغرافيايي او نفوسي لحاظ يو کوچنی هېواد و. د واک د انتقال په فکر کې شول او له همدې امله يې شمالي امريکا ته چې له جغرافيايي پلوه ستر او د نفوس له پلوه هم لوی و، واک انتقالاوه څو دا نړيوالې اجنډاوې د نوي جوړ شوي قدرت په مرسته عملي کړي.

1. Ken Matto; The History of the Federal Reseve System; p 4

د دې له پاره چې هغوی پرې توانېږي څو له امریکا څخه د خپلو سترو پلانونو د څارونکي په توګه کار واخلي نو باید متخصصه طبقه په کنټرول کې راولي او د سرګردانو خلکو طبقه غلامه کړي چې دا کار یوازې د پیسو په زور شونی و.

امریکا تر خپلواکۍ وړاندې د برېتانیې په بېلابېلو مستعمرو وېشل شوې وه او هرې مستعمرې یې د مرکزي بانک په واسطه د ځان له پاره جلا پیسې چاپولې. د انقلاب په پیل کېدو سره مستعمرو د جګړې د مخکې وړلو له پاره ډېرو پیسو ته اړتیا لرله، نو له دې امله د هرې مستعمرې بانکونو ډېرې پیسې چاپ کړې چې تر انقلاب وروسته د پیسو د تورم سبب وګرځېدې او د هرې مستعمرې پیسو له دې امله چې په بازار کې له حده ډېرې وې، خپل ارزښت له لاسه ورکړ او په دې حالت کې اروپایي بانکوالو د یو مرکزي بانک وړاندیز وکړ چې د انګلیس بانک ته ورته و او په امریکا کې لومړنی مرکزي بانک د شمالي امریکا د بانک په نامه جوړ شو.

دا بانک هم د پیسو د کم ارزښته کېدو له امله له رکود (ماتې) سره مخ شو او تر تاسیس څلور کاله وروسته په ۱۷۸۵ زېږدیز کال له منځه لاړ. خو له دې سره سره بیا هم اروپایي بانکوالو په امریکا کې د پیسو د کنټرول د ترلاسه کولو او د یو مرکزي بانک د بیا جوړولو هڅې پرې نه ښودې او د امریکا د اساسي قانون د تشکیل په کمیسیون کې یې د یو نوي بانک جوړولو طرحه وړاندې کړه.

توماس جیفرسن د امریکا یو بنسټ ایښودونکی او پخوانی ولسمشر په دې اړه وایي: *که امریکایان شخصي بانکونو ته د خپلو پیسو د وړاندې کولو اجازه ورکړي لومړی له تورم او بیا د بیو د راټیټوالي په واسطه په بانکونو او شرکتونو کې چې هم مهاله به له دې پدیدې سره وده وکړي، له خلکو څخه ملکیتونه غلا کړي تر دې چې یو ورځ به یې ماشومان په بې کورۍ په هغې لویې وچې کې وزېږېږي چې پلرونو یې نیولې وه*[1].

همدارنګه د امریکا یو بل بنسټ ایښودونکی ګورنر موریس په دې اړه وایي: *پانګوال تل هڅه کوي چې خپل واک وساتي او پاتې خلک غلامان کړي. هغوی تل دا کار کړی دی او تل به یې کوي، که موږ د حکومت په مرسته هغوی په یوه محدوده کې ونه ساتو، هغوی به د نورو ځایونو په څېر دلته هم خپله اغېزه ولري*[2]. د امریکا د دوو بنسټ ایښودونکو له مخالفت سره سره بیا هم بانکوال وتوانېدل چې د سیاسي مشرانو ترمنځ د نفوذ په مرسته د پیسو واک د امریکا کانګرس او حکومت ته ورنه کړي او پر وړاندې یې د

1. Patrick S. J. Carmack; The Money Changers; p 29

2. Jannifer nedelsky; Private Property and the Limit of American Constitutionalism; p 80

امریکا د لومړني بانک په نامه د امریکا د نوي بانک منشور د دې هېواد په کانګرس کې تصویب کړ.

*د امریکا لومړنی بانک لومړنۍ پانګه لس ملیونه ډالره وه چې دوه ملیونه یې د فدرال حکومت او پاتې یې د شخصي پانګوالو د پانګې اچونې په واسطه شوې وه. د دې بانک له ۲۵ تنو مشرانو څخه پنځه تنه د حکومت او پاتې شل تنه یې د شخصي پانګوالو په واسطه ټاکل کېدل*[1].

د مشرانو په کمېټه کې د شخصي خلکو د شمېر د ډېروالي له امله به ډېرې پرېکړې د شخصي پانګوالو په ګټه کېدې. د انګلیس بانک په څېر د دې بانک نوم هم داسې اېښودل شوی و چې خلک پرې د حکومتي بانک ګمان وکړي او همدارنګه یې هېڅکله فردي شریکانو نومونه رابرسېره نشي؛ خو ډېری محققین په دې باور دي چې راتچایلډ د دې بانک یوه تر ټولو محرکه قوه ده.

د امریکا دولت ډېر ژر له دې بانک څخه پوروړی شو او توماس جیفرسن چې د دې پور په پایلو پوهېده په ناتوانۍ او غم سره له دې بانک څخه د امریکا د مشرانو او دولت د غلامۍ نندارچي شو. په دې اړه یې پخپلې یوې بیانیې کې داسې وویل: *هیله مې دا ده چې په اساسي قانون کې د اصلاح یو امکان موجود وای چې له فدرال حکومته یې د پور اخیستلو واک اخیستی وای*[2]. او همدارنګه یې په یو بل ځای کې وویل: *پوره باوري یم چې بانکي ټولنې له نظامي اردو څخه خطرناکې دي*[3]. کله چې توماس جیفرسن د امریکا ولسمشر شو، د بانکوالو او د هغوی د نورو ملګرو په ټولو هڅو سره یې بیا هم ورته د امریکا د لومړني بانک د جوړېدو اجازه ورنکړه، خو وروسته بیا بانکوال وتوانېدل چې د امریکا د لومړني بانک په څېر یو بل مرکزي بانک د امریکا د دویم بانک په نامه جوړ کړي چې *د امریکا د متحدو ایالتونو دویم بانک له لومړني سره ډېر ورته والی لاره او د دوی یوازې لومړنۍ پانګې توپیر سره لاره چې ۳۵ ملیونه ډالره وه.*

*د لومړي بانک په څېر یې یو پر پنځمه برخه په حکومت پورې اړه لرله او یو پر پنځمه برخه یې هم حکومتي مشران وو، همدارنګه د لومړي بانک په څېر د دې بانک منشور هم د شلو کلونو له پاره تصویب شو*[4].

1. Roger T. Johnson; Historical Beginning... the Federal Reserve; p 8

2. Congressional Record-Senate; Feb 10 1997; S-1148

3. Jeff Barnes; Children of Liberty; p 164

4. Roger T. Johnson; Historical Beginning.. The Federal Reserve; p 9

کله چې انډریو جکسن په ۱۸۲۹ زېږدیز کال د امریکا ولسمشر شو، له پیسو سره د ترلو دوکو او چل د سېستم پر وړاندې یې مبارزه پیل کړه او په داسې حال کې چې د امریکا کانګرس څلور کاله تر وخت مخکې د متحده ایالتونو د دویم بانک منشور نوی تصویب کړ، رییس جمهور د رد له واک (وېټو) څخه کار واخیست او د دې مرکزي بانک د نوي والي مانع شو.

د ولسمشرۍ په دویمه دوره کې جکسن خپل مالیې وزیر ته له دې بانک څخه د حکومتي شتمنیو د را ویستلو فرمان صادر کړ چې د مالیې وزیر له دې کار څخه ډډه وکړه او جکسن مجبور شو چې د هغه د منفکې امر صادر کړي، تر ده وروسته د مالیې دویم وزیر هم د لومړني په برخلیک اخته شو تر دې چې له دې بانک څخه د حکومت د شتمنیو په راویستو د دې څوکۍ دریيم وزیر بریالی شو. ولسمشر د شخصي مرکزي بانک د له منځه وړلو په فکر کې و، خو د پر نفوذه او شاوخوا خلکو له ډېرو مخالفتونو سره مخ شو. د هغه په اړه د مرکزي بانک رییس وایي: *دا لایق ولسمشر که دا فکر کوي، په دې توانېدلی دی چې له هندیانو سرونه غوڅ کړي او قاضیان بندیان کړي او فکر کوي چې لاس یې بانک ته هم رسېدای شي؛ نو تېروتنه کوي*[1]. په ولسمشر فشار راوړلو له پاره مرکزي بانک له بازار څخه د پیسو راټولونه(Money Contraction) پیل کړه چې دې کار مالي ستونزه جوړه کړه. همدارنګه بانکوالو د ولسمشر د وژلو هڅې هم وکړې د اسلحې د ناکارېدو له امله بریالی نه شول او د هغه تورن کس د رواني ناروغۍ د لرلو له امله خوشې شو.

بانکوال د امریکا د متحدو ایالتونو په کانګرس کې د پیاوړې ډلې په لرلو سره د امریکا په تاریخ کې د لومړي ځل له پاره د رایو په اکثریت سره یې د ولسمشرۍ د سلبولو هڅه وکړه، خو ولسمشر جکسن مقاومت وکړ او په پای کې یې مرکزي بانک داسې له منځه یووړ چې راتلونکو اویاوو کلونو پورې بل شخصي مرکزي بانک د امریکا په متحدو ایالتونو کې جوړ نه شو.

په داسې حال کې چې ولسمشر جکسن د مرکزي بانک له منځه وړل او ځپل تر ټولو ستره بریا ګڼي، د بانکوالو د واک د راکمېدو له پاره یې کوم نوی سېستم جوړ نکړای شو او بانکوالو د کوچنیو ایالتي بانکونو په واسطه د ذخیرې د یوې برخې په توګه د بانکوالۍ پدیده (Fractional Reserve Banking) چې بانکوال په کې کولای شي د لږې ذخیرې په مرسته د ذخیرې څو چنده بانکنوټونه عرضه کړي (د بېلګې په توګه که

1. Edward Kaplan; The Bank of the United State and American Economy; p 133

د ۱۰۰۰ افغانیو سره زر ولري، د ۱۰۰۰۰ افغانیو په اندازه بانک نوټونه عرضه کولای شي) په دې توګه یې د پیسو په مهار کولو لاس پورې کړ او له هېڅ څخه یې پانګه لاسته راوړه.

د پیسو دې سیستم تر ۱۸٦۱زیږدیز کال پورې د بانکوالو واک زیات کړ او د عوامو له پانګو یې خپله ډېروله تر دې چې د امریکا شپاړسم ولسمشر ابراهام لینکن وغوښتل چې له بانکوالو څخه واک په پوره توګه واخلي او د پیسو کنټرول حکومت ته ورکړي، نو له دې امله یې د شنو پیسو (GreenBuck) په نوم نوې پیسې چې د حکومت له خوا چاپېدلی، لاس پورې کړ او ویې غوښتل چې د حکومت پور له منځه یوسي.

د لینکن پر مهال، په امریکا کې داخلي جګړې پیل شوې او همدارنګه اروپایي قدرتونو چې د لینکن د پیسو سیستم یې خطرناک ګاڼه، غوښتل یې پر امریکا حمله وکړي. په داسې حال کې چې په لینکن باندې داخلي او بهرني فشارونه مخ پر ډېرېدو وو، تزاري روسیې د لینکن مرستې ته را ودانګل، هغه په دې پوهېده چې د دې پردې تر شا د اروپا بانکوال دي او تر امریکا وروستۍ موخه روسیه ده.

تزاري روسیې له ولسمشر لینکن سره د داخلي جګړې د له منځه وړلو له پاره له مالي مرستې پرته په امریکا باندې حمله د تزار پر امپراتورۍ حمله وګڼله چې لینکن یې له جوړ شوي کړکېچ څخه وژغوره.

خو مخکې له دې چې لینکن وتوانېږي د پیسو یو داسې سیستم جوړ کړي چې د حکومت په لاس کې وي او دا کار قانوني کړي، د اروپایي بانکوالو په واسطه ووژل شو، چې د اروپایي بانکوالو په واسطه د دې کار ثبوت د ده له مرګ څخه څو کاله وروسته یو کاناډايي خبریال ته په لاس ورغی چې له یو امریکايي جاسوس څخه یې ترلاسه کړی و او په کاناډايي ورځپاڼه کې یې داسې ولیکل: د *غلامانو ازادوونکی نباغلی ابراهام لینکن، د یوې ډلې د دسیسې په واسطه چې د نړیوالو بانکوالو استازیتوب یې کاوه، ووژل شو*[1]. لینکن تر مرګ وړاندې په یوه لیک کې خپل ملګري ته داسې لیکلي وو: د *سولې پر مهال د پیسو ملت د ځان ښکار کوي او د بدبختۍ پر مهال د ملت پر وړاندې تري توطیه جوړوي. د پیسو واک له سلطنت څخه ظالم، له اوتوکراسۍ څخه سرغړوونکی او له بیروکراسۍ څخه ځان غوښتونکی دی*[2]. اوتوون بیسمارک د جرمني حاکم د لینکن د قتل په اړه داسې وايي: *د لینکن مړینه د مسیحیت له پاره یوه فاجعه ده. زه وېره لرم چې بهرني بانکوال به خپلو ماهرانه چلونو سره د امریکا ټوله شتمني به*

1. Michael A. Kirchubel; Vile Acts of Evil- Volume 1- Banking in America; p 62

2. Ron Hayhurst; How to Interpret History; 63

*واک کې کړې او د یو عصري سېستماتیک تمدن د خرابولو لـه پـاره بـه يـې وکـاروي*[1]. د لېنکن په له منځه تلو سره، شنې پیسې چې حکمي پیسې یعنې ملاتـړ يـې نـه لاره او د بازار له غوښتنې سره سم په ډېره اندازه د داخلي جګړې د لګښتونو له پـاره چـاپ شـوې وې، خپل ارزښت یې له لاسه ورکړ تر دې چې د سرو زرو په ملاتړ سره پیسـو تـر داخلـي جګړو څوارلس کاله وروسته د بانکوالو د فشارونو له مخې ځای ونیو.

همدارنګـه د لېـنکن د حکومـت د بـانکوالۍ ملـي قـانون چـې د ایـالتي بـانکونو پـه واسطه یې د بانکنوټونو عرضه کول منع کړي وو او دا صلاحیت یې څو سـترو بـانکونو تـه ورکړی وو چې منشور یې د فدرال حکومت په واسطه تصویب شوی و، تر ډېرو کلونو يـې دوام وکړ، خو ستونزه دا وه چـې دې بـانکونو د وال سـټرېټ (Wall Street) پـه مرکزيـت سره فعالیت کاوه او د بانکوالۍ د قدرت د ملـي بـانکوالۍ سېسـتم يـې سـلب کـړی و او حکومت د بانکوالو په پرتله پیاوړی کېده چې بانکوال له دې حالت څخه ناخوښ و او په امریکا کې د شخصي مرکزي بانک د جوړولو په هڅه کې شول، ځکـه یـوازې همداسـې یو بانک کولای شي چې د بانکوالو دایمي قدرت تضمین کړي.

بانکوالو د خپلو سیاسي پیاوړو ډلو په واسـطه، د انـډیانا پـولس (Indianapolis) پـه نوم د پیسو یو کمیسیون جوړ کړ څو په خپلې ګټې سره د پیسو سېستم اصلاح کـړي. د دې کمیسیون ډېری غړي داسې څوک چې په بانکوالو او سـترو بـډایانو پـورې يـې تـړاو لاره او دې پانګوالو په دې کمیسیون کـې *لـه پنځـه سـوه زره ډالـرو څخـه ډېـره پانګونـه وکړه*[2]. بالاخره د دې کمیسیون وروستي راپور د *یو مرکـزي بانـک د جوړولـو وړانـدیز وکـړ چې یوازې پیسې به عرضه کوي*[3].

اصلاح غوښتونکي یا هغه کسان چې غوښتل يـې اوسـنی سېسـتم د پرمختـګ مـانع وښیي او یو مرکزي بانک جوړ کړي، په ۱۹۰۰زېږدیـز کـال وتوانېـدل چـې د سـرو زرو د معیار قانون چې ټولې پیسې په کې سره زر او یا هم د سرو زرو ملاتړ و تصویب کـړ، خـو دا کار د پیسو د اوسني سېستم په له منځه وړلو پیل شو او دا قانون یې د ملي بانکوالۍ د سېستم د اصلاح له پاره پرانیست، په دې اړه فرنک وېلیم امریکایي اقتصاد پوه لیکي:

---

1. Chris Waltik; Wealth Builgind Strategies in Enery, Metals and Other Markets; p 182

2. Murray N. Rothbard; The Origins of the Federal Reserve; p 23

3. The Final Report of Indianapolis Monetary Commission; Journal of Political Economy 6 (June, 1898); pp 293-322

*دا څرګنده ده چې په پای کې کانګرس یو وار بیا د ملي بانکوالۍ د سېستم په بدلون مجبوربري*[1]. د جېمز لیونګستن په نوم امریکایي مؤرخ لیکي:

*دا ماده د یو مرکزي بانک د جوړولو له پاره د لومړني قدم په توګه جوړه شوې وه*[2]. په پای کې، په ۱۹۱۳زېږدیز کال بانکوال د امریکا د فېډرالي ذخیروي بانک (Federal Reserve Bank) په نوم د یو شخصي مرکزي نوي بانک په جوړېدو بریالي شول چې د نوم پر خلاف یې نه د فېډرال حکومت پورې تړلی بانک و او نه یې هم د پیسو د وړاندې کولو له پاره د سرو زرو د ذخیرې له پاره لازمه اندازه لرله،که څه هم بانکوالو د نوي سېستم نوم د سرو زرو په ملاتړ سره د پیسو یا سرو زرو د معیار سېستم ونوماوه، د نوو پیسو څرنګوالي دا ډول ځانګړتیاوې نه لرلې، بلکې په حقیقت کې د سرو زرو د معیار د اغوا کوونکي په نوم یې کاغذي تورمي پیسې جوړې کړې.

کله چې په نړۍ د دجال د لومړۍ ورځې عملیاتي مرکز واک لاره او پکس برېتانیکا (Pax-Britannica) ورته ویل کېده، د سرو زرو د معیار د اغوا کوونکي تر نامه لاندې یې، د سرو زرو د یوې سترې اندازې په راټولولو سره چې له افریقا، هندوستان او نورو مستعمرو څخه یې راغلا کړې وې، داسې یو سېستم جوړ کړ، چې د نړۍ یوازینۍ پیسې چې له سرو زرو سره بدلېدې، سټرلنګ پونډ و او په حقیقت کې سټرلنګ پونډ په نړیوال بازار کې د سرو زرو په توګه پېژندل کېده او نورو هېوادونو د سرو زرو د ذخیره کولو پر ځای سټرلنګ پونډ ذخیره کاوه چې دې کار د سټرلنګ پونډ ارزښت نور هم لوړاوه او دا چې سټرلنګ پوند ته نړیواله اړتیا پیدا کېده، نو له ډېر چاپ سره سره یې بیا هم خپل ارزښت له لاسه ورنکړ او برېتانیې د نړۍ د ارزښت لرونکې سرچینې د هغو پیسو پر وړاندې چې هېڅ ذاتي ارزښت یې نه لاره، لاسته راوړې.

د پېړیو له پاره برېتانیې په دې فاسد نړیوال سېستم لاس پورې کړی و او اوس دا مرداره دنده د دجال د دویمې ورځې عملیاتي مرکز او امریکا ته انتقال شوه. په لومړي ګام کې، امریکا د خپلو خلکو د پانګې د کنټرول او د امریکایانو د غلامۍ د زمینې د برابرولو له پاره داسې کار وکړ چې د بشریت د تاریخ تر ټولو ستره غلا یې ګڼلی شو. د امریکا دولت د سرو زرو د سکو لرل د دې هېواد اوسېدونکو ته منع اعلان کړل.

---

1. Frank W. Taussig; The Currency Act of 1900, Quarterly Uournal of Economics 14 (may, 1900); p 414

2. james Livengston; Origins of Federal Resurve System: Money, Class, and Corporate Capitalism, 1890-1913; pp 150-154

په هغه وخت کې د سرو زرو هر اونس د ۲۰ ډالرو ارزښت لاره او خلکو د سرو زرو هر اونس د شلو ډالرو په وړاندې بانک ته وسپاره. *وروسته د ۱۹۳۴ زېږديز کال په جنوری کې د امريکا حکومت د ډالرو ارزښت د سرو زرو پر وړاندې ۴۱ سلنه راکم کړ او بيا يې د سرو زرو د لرلو قانون باطل کړ. د امريکا خلک بېرته بانکونو ته ورغلل (د ډالرو پر وړاندې د بې اعتباری له امله) او بېرته يې هر اونس سره زر د ۳۵ ډالرو په بدل کې وپيرودل او په دې کار سره يې خپله ۴۱ سلنه پانګه له لاسه ورکړه*[1].

د نړيوالو بانکوالو او يا انترناسيونالېستانو وروستی هدف چې د يو نړيوال حکومت د جوړولو په هڅه کې و، يوازې امريکا نه و، بلکې په ټوله نړۍ يې اقتصادي، سياسي او فرهنګي راج غوښت.

نو له دې امله يې د امريکا په علمي، څېړنيزو ټولنو، رسنيو، سياسي ګوندونو او مدني ټولنو کې د پيسو په مصرفولو سره د ازاد بازار اقتصادي نظام او لېبرالېستي نظريو په علمي ښودلو لاس پورې کړ او د خپلو پلانونو د پلي کولو له پاره يې نړيوالې ټولنې جوړې کړې. تر دويمې نړيوالې جګړې وروسته چې نړۍ له پکس بريتانيکا څخه پکس امريکانا (Pax-Americana) پر لور په حرکت کې وه، د ملګرو ملتونو په څېر د نړيوالو سياسي سازمانونو د جوړولو ترڅنګ يې د برېټن ووډز په کنفرانس کې اقتصادي نړيواله ټولنه هم په امريکا کې جوړه کړه.

## برېټن ووډز (BRETTON WOODS)

کله چې د نړۍ هېوادونه په دويمه نړيواله جګړه اخته وو، د امريکا د متحدو ايالاتو په نوي همشاير ايالت برېټن ووډز کې د امريکا او برېتانيې په مشر ۴۴هېوادونو د ۱۹۴۴زېږديز کال د جولای په مياشت کې تر جګړې وروسته د اقتصادي طرحو په اړه خبرې اترې وکړې.

د دويمې نړيوالې جګړې پر مهال، ډېرو هېوادونو د جګړې د لګښتونو له پاره زياتې پيسې چاپ کړې وې او له دې امله يې له سرو زرو سره د هغې د تبادلې وړتيا له منځه يوړه چې د پيسو د تورم سبب شو او د بريټن ووډز د کنفرانس د ګډونوالو له پاره ښه چانس ګڼل کېده څو د نظر وړ هوکړه ليک لاسليک کړي. د بريټن ووډز کنفرانس په دريو کميسيونونو وېشل شوی و چې لومړی هغه يې د پيسو نړيوال صندوق، دويم کميسيون يې د بيارغونې او پراختيا بانک چې وروسته په نړيوال بانک واوښت او دريم

1. Imran N. Hosein; The Gold Dinar and Silver Dirham: Islam and the Future of Money; p 35

کميسيون يې داسې ټولنه جوړه کړه چې د نړيوالو اقتصادي همکاريو بله وسيله تر بحث لاندې ونيسي.

په داسې حال کې چې ډېرى هېوادونو فکر کاوه چې د دې کنفرانس د هوکړه ليک په مادو کې تصميم نيوونکي دي، *د امريکا او برېتانيې تر منځ په ۱۹۴۲ زېږديز کال په غير رسمي توګه په دې اړه خبرې اترې پيل شوې وې. امريکايانو له برېتانويانو او نورو هېوادونو له استازو سره د ۱۹۴۳ زېږديز کال تر اوږې پورې خبرو اترو ته ادامه ورکړه.*

*د امريکا او برېتانيې د استازو ترمنځ د ۱۹۴۳ زېږديز کال د جون په ۲۲مه او ۲۳مه نېټه د ليډنو پر مهال په يو نړيوال کنفرانس کې د پيسو د نړيوال صندوق په اړه د يوې ګډې بيانيې پلان جوړ شو.*

*د امريکا او برېتانيې استازو د سپټمبر له ۱۵ مې څخه د اکتوبر تر نهمې نېټې پورې نهه ځله غونډه وکړه. د پيسو د نړيوال صندوق د جوړېدو په اړه د کارپوهانو د ګډې بيانيې هوکړه ليک د ۱۹۴۴ زېږديز کال په اپرېل کې لاسليک شو، په داسې حال کې چې په دې هوکړه ليک کې د پيسو د نړيوال صندوق او د بيارغونې د بانک او نړيوال انکشاف په اړه ټول موضوعات نه وو ياد شوي، يوه لاره يې د برېټن ووډز له پاره چې د امريکا او برېتانيې استازو په کې موافقه کړې وه برابره کړه، امريکا او برېتانيې هغه په نورو هېوادونو ومنله*[1].

د برېټن ووډز د کنفرانس پايله د دريو نړيوالو اقتصادي ټولنو له جوړېدو څخه عبارت وه چې په کې د پيسو نړيوال صندوق (IMF)، د پرمختګ او بيارغونې نړيوال بانک (IBRD) يا اوسنى نړيوال بانک (WB) او د سوداګرۍ نړيوال سازمان (ITO) چې وروسته په سوداګرۍ او تعرفو د عمومي هوکړې (GATT) په نامه بدل شو او اوس د سوداګرۍ د نړيوال سازمان (WTO) په نامه پېژندل کېږي، شامل دي.

له دې پرته دې کنفرانس داسې هوکړه ليک لاسليک کړ چې د هغې قوانين د غرب او په ځانګړې توګه د امريکا د ګټو تضمين کوونکي او اوس مهال د امريکا د بهرنۍ سياست يوه ستره وسله ګڼل کېږي. د يادو ټولنو د اداره کولو سېستم دموکراتيک نه و او هر غړي هېواد په کې د مساوي پرېکړې د لرلو حق نه لري، بلکې امريکا په کې د څو غړو د رايې ورکولو حق لري او اداره يې له واشنګټن څخه کېږي.

د برېټن ووډز هوکړه ليک په داسې شرايطو کې لاسليک شو چې په جګړه کې ډېرى ښکېلو هېوادونو ورته کافي وخت نه لاره او تر دې چې د دې کنفرانس غړو هېوادونو

1. Mikesell R; The Bretton Woods Debates: a Memoir, Essay on International Finance; p 192

ډېرو استازو ان د کنفرانس رسمي ژبه (انګلیسي) هم زده نه وه او د دې هوکړه لیک سخت متنونه یې په سمه توګه نشو تحلیلولی چې په دې اړه ون دارمل لیکي: *په برېټن ووډز کې د ۴۴ هېوادونو استازو داسې هوکړه لیک لاسلیک کړ چې د هغې لوستلو ته یې وخت نه لاره*[1].

د برېټن ووډز کنفرانس چې د امریکا د مالیې وزیر او همدارنګه د هغې درې کمیسیونونه د امریکایانو او برېتانویانو په واسطه اداره کېدل د نوو تشکیل شوو سازمانونو په چوکاټ کې یې د نړیوالو ذخیروي پیسو په توګه امریکایي ډالر داسې تصویب کړل چې د سرو زرو یو انس له ۳۵ ډالرو سره معادل و او نورې ملي پیسې د تبادلې له یوې ثابتې بیې سره د ډالر او یا هم د هغې د سرو زرو پر وړاندې د بدلېدو وړ وي.

په سرو باندې د ډالرو د بدلونې حق یوازې په حکومتونو او دولتونو پورې تړلی و او خلکو نشو کولای خپلې پیسې په سرو زرو بدلې کړي. هېڅ هېواد حق نه لاره خپلې پیسې د پیسو د نړیوال صندوق له اجازې، په ۱,۵ سلنه او د دې سازمان د غړو له اجازې پرته له ۸ سلنه ډېرې کم ارزښته کړي. په دې سره، امریکایي ډالرو د هغې لوړې غوښتنې له مخې چې په نړیوال بازار کې یې پیدا کړی و او ټولو غړو هېوادونو هغه د هېواد د پانګې په توګه ذخیره کولې، د نړۍ تر ټولو ستره با ارزښته پیسه شوه او امریکا هم د نړیوالو غوښتنې لیدلې او له موقع یې ګټه واخیسته، ډېره اندازه ډالر یې چاپول، په داسې حال کې چې د سرو زرو لږ سلنې د چاپ شوو ډالرو له اندازې سره سمه ذخیره نه لرله.

په دې کار سره امریکا د برېتانیې ځای ونیو او د نړۍ د ستر او پیاوړي اقتصاد په توګه په نړۍ کې راڅرګند شو، خو د امریکا او برېتانیې موخه د برېټن ووډزر هوکړه لیک ته پابندي نه وه، بلکې له دې هوکړه لیک څخه یې د نورو هېوادونو د غلام کولو او بېلوالي په توګه کار اخیست.

د تبادلې ثابته بیه داسې تصویب شوې وه چې سټرلنګ پونډ د نړۍ د تر ټولو لوړې پیسې په توګه تقریباً د ډالرو څلور چنده ارزښت لاره او دا کار په نړیوال بازار کې د برېتانیې د تولیداتو د لوړېدو لامل شو او له همدې امله د برېتانیې د تولیداتو له پاره یې غوښتنه راکمه شوه او د برېتانیې دولت د لومړي ځل له پاره په ۱۹۴۹زېږدیز کال خپله پیسه د برېټن ووډز د هوکړه لیک پر خلاف چې خپله یې لاسلیک کړی و د پیسو د

1. Van A. Dormael; Bretton Woods: Birth of Monetary System; p 226

نړیوال صندوق او د دې سازمان د غړو له اجازې پرته ۳۰٫۵ سلنه راښکته کړه او په کرار کرار يې د خپلو پيسو د ارزښت په راکمولو پيل وکړ چې د ډالرو پر وړاندې د نړيوالې بې اعتبارۍ لامل شو.

په ۱۹۷۰زېږدیز کال کله چې فرانسې د ډالرو د ارزښت نوساني کېدل ليدل، خپلې ډالري ذخيرې يې د امريکا په لور واستولې او پر وړاندې يې د سرو زرو غوښتونکې شوه او دا چې امريکا د ذخيره شوو سرو زرو متناسب ډالر نه لرل، په ډېره بې شرمه توګه يې له خپل مسووليت څخه چې په لاسليک شوي هوکړه ليک کې و او مشري يې هم پر غاړه وه، سرغړونه وکړه او ريچارډ نېکسن د فرانسې دولت ته په يوې بيانيې کې کې وويل: *رقيبانو په وروستيو اونيو کې د امريکايي ډالرو پر وړاندې عيار جنګ پيل کړ.*

*نو له دې امله ما هم د ماليې وزير ته امر وکړ چې له ډالرو څخه د دفاع له پاره د سيالانو پر وړاندې لازمې کړنې وکړي. ما وزير کونلي (Konly) ته امر وکړ څو په لنډمهاله توګه له ډالرو سره د سرو زرو او نورو ذخيره شوو پانګونو بدلول ودروي. د خاصو شرايطو په استثناء چې د امريکا د متحدو ايالاتو او د پيسو د ثبات په ګټه وي*[1].

ريچاډ نېکسن د برېټن ووډز سېستم په پوره توګه له منځه يووړ د اسعارو د بدلونې د ثابتې بيې د له منځه تلو سبب شو او د نړۍ پيسې له کوم ذاتي ارزښت او ملاتړ پرته له چاپ شوو شمېرو سره د يو کاغذ په شکل تر اوسه د تاوېدو په حال کې دي. يوازې هغه څه يې چې تر اوسه پورې د برېټن ووډز له کنفرانس څخه پاتې دي د امريکا تر مشرۍ لاندې د يو ناليدونکي ظلم په توګه نړيوالې تړلې دي.

ريچارډ نېکسن د ډالر د کړکېچن حالت له پاره د حل لارې په فکر کې شو او د ډالر د نړيوال ارزښت د ساتنې له پاره يې د پېټرو ډالر (Petrodollar) عالي نظريه وړاندې کړه. د ډالرو په حکمي (له ملاتړ پرته) کېدو سره، نورو هېوادونو د ډالرو له ذخيره کېدو سره دلچسپي نه لرله او که ټولو هېوادونو له بانکي ذخيرو څخه خپل ډالر ويستل او په امريکايي بازارونو کې ښکته پورته کېدل نو په باور سره به د پيسو تورم د ډالرو د سقوط لامل ګرځېدلی وي.

امريکايي ډالر له منځه تلل او د امريکا امپراتوري تر ځوانېدو وړاندې د مرګ مزه وڅکله، خو ريچارډ نېکسن د ډالرو د نړيوالې غوښتنې د ساتنې له پاره سعودي عربستان ته سفر وکړ او د دې هېواد شاهي کورنۍ يې په دې قانع کړه څو د وخت تر

1. Kamran Dakhah; The Evolution of Macroeconomic Theory and Policy; p 118

ټولو ستر اقتصادي تولید (نفت) خرڅلاو یوازې د ډالرو پر وړاندې وکړي او د دې کار په بدل کې امریکا د ال سعود کورنۍ ته د بهرنیو او کورنیو ګواښونو پر وړاندې له شاهي کورنۍ څخه د ساتنې وعده ورکړه.

تر سعودي عربستان وروسته، د اوپک (OPEC) غړو هېوادونو او بیا وروسته د نفتو ټولو صادروونکو هېوادونو خپل نفت د ډالرو پر وړاندې خرڅول، یعنې که کوم هېواد غوښتل نفت واخلي، نو لومړی یې باید ډالر پېرلي وای او له اخیستل شوو ډالرو څخه وروسته یې نفت اخیستی شوای. په همدې توګه ډالر یو وار بیا د نړیوالې پیسې په توګه اوس د پېټروډالر په نامه پېژندل کېږي، یو وار بیا یې په نړۍ کې د امریکا واکمني تضمین کړه او د عثماني خلافت له منځه وړلو وروسته د ال سعود کورنۍ دویم ستر خیانت له اسلامي نړۍ او بشریت سره وکړ.

د ډالرو په حکمي کېدو سره، د امریکا د ذخیروي بانک او د ټولو شخصي مرکزي بانکونو برخوال چې په یو ډول له دیارلسو کورنیو سره تړاو لري او د راتچایلډ په کار ځای کې یې نړیوال ستر پلان جوړ کړی و، پرته له دې چې د کوم شخصي، حکومتي او نړیوال سازمان له خوا وڅارل شوې، د کاغذي پیسو په چاپ یې لاس پورې کړ او له هېڅ څخه یې نه باورېدونکې پانګه تولید کړه او د نړۍ ټول حکومتونه یې پوروړي کړل چې *نړیوال ناخالص مقروضیت په ۲۰۱۵ زېږدیز کال ۱۵۲ ترېلیونه امریکایي ډالرو ته رسیده*[1].

د ټولو هېوادونو (ځمکې) د مقروضیت مجموعه ۱۵۲ ترېلیونه ډالرو ته رسېده، خو پوښتنه داده چې ځمکه له چا څخه پوروړې ده؟ په باوري توګه چې ځمکې له مریخ او یا هم له کومې بلې سیارې څخه پور نه دی اخیستی، بلکې هېوادونو له شخصي بانکونو څخه د دولتي کړنو د مالي وجوهاتو د ترسره کولو له پاره پور اخیستی دی او نړیوال بانکوال چې تر اوسه هم د خپل هویت له ښکاره کولو څخه ډډه کوي، د حکومتونو لرونکي دي او ولسمشران یې د نانځکو په څېر ساز ته ګډېږي. امریکایي سناتور د امریکا د فډرالي ذخیروي بانک په اړه وایي: *ډېری امریکایان د پیسو له نړیوال پور ورکوونکو څخه واقعي پوهه نه لري. د ذخیروي فډرالي سېستم حساب هېڅکله څارل شوی نه دی، دا سېستم د کانګرس له کنټرول څخه بهر عمل کوي*[2] سره له دې

1. International Monetary Fund (IMF); World Economic and Financial Surveys: Fiscal Monitor; Debt: Use it Wisely; Oct 2016; p1

2. Patrick S. J. Carmack; The money Changers; p 4

چې امریکا د برېټن ووډزر سېستم مات کړ، د دې هوکړه لیک په واسطه د جوړو شوو ټولنو د فقر رامنځ ته کولو او یکه تازۍ (Hegemony) د نړیوال کولو له پاره کار اخلي.

## اقتصادي او غیر سیاسي مستعمره کول

د برېټن ووډز تر کنفرانس وروسته په داسې حال کې چې غربیانو له مستعمره هېوادونو څخه په ظاهري بڼه په نظامي او سیاسي توګه پرېښود، خو د بېلابېلو اقتصادي سازمانونو لکه د پیسو نړیوال صندوق، نړیوال بانک او د نړیوالې سوداګرۍ سازمان په جوړولو سره د دې هېوادونو په اقتصادي استعمار یې لاس پورې کړ.

*نړۍ اوس د غرب تر کنټرول لاندې سازمانونو په واسطه اداره کېږي چې عبارت دي له: د امریکا د متحدو ایالتو په مشرۍ د G7[1] او G8[2] په واسطه د پیسو د نړیوال صندوق، نړیوال بانک، د نړیوالې سوداګرۍ سازمان او د اقتصادي پراختیا او همکارۍ سازمان (OECD) په واسطه اداره کېږي*[3].

د امریکا په مشرۍ د پیسو نړیوال صندوق، نړیوال بانک او نړیوال سوداګریز سازمان په څېر سازمانونه د نړۍ د غلامۍ یو خطرناک مثلث جوړ کړی دی. د نړۍ غلامي د دې خطرناک مثلث په مرسته هغه مهال شونې ده چې فقر ټوله نړۍ ونیسي او هېوادونه له دې سازمانونو څخه سوال او خیر غوښتلو ته مجبور شي او له فقر څخه د خلاصي له پاره له سود سره ترلي پورونه او داسې پالیسۍ ومني چې د اقتصادي غلامۍ ترځنګ نور فقر هم وزېږوي.

د دې له پاره چې نړیوال، نړیوال حکومت یا نوي نړیوال نظم ته ګونډه ووهي، باید لومړۍ د غلامۍ سېستم داسې شي چې د نړیوال حکومت له پاره کار وکړي او په پای کې یې د مسیح الدجال د مشر په توګه وي. اقتصادي غلامي د دې سېستم تر ټولو مهمه برخه ده چې د هغې تګلارې داسې جوړې شوې دي څو د امریکا په مشرۍ اقتصادي سازمانونه، لومړۍ بې وزله هېوادونه هدف وټاکي او بیا بې وزلي په ټوله نړۍ کې نړیواله کړي.

د سترو غربي هېوادونو له سیاست پوهانو څخه چې له پېړیو راهیسې تري بانکونو د دې نړیوالې طرحې له پاره د نانځکو په توګه کار اخیستی د ټولې نړۍ د نانځکې کېدو

---

1. G7. یا د اوو پیاوړو هیوادونو ډله چې پکې امریکا، کاناډا، فرانسه، جرمني، ایټالیا، جاپان او انګلېستان شامل دي.
2. G8. یا د اروپایي اتحادیې په شمول اووه ګوني ډله
3. Richard Peet; Unholy Trinity: The IMF, World Bank and WTO; p 62

له پاره ترې کار اخلي. د دې له پاره چې یو هېواد او خلک یې د غلامۍ سیستم ومني باید دومره مجبور شي چې د غلامۍ له منلو پرته بل بدیل ونه لري او هغه یوازینۍ لاره چې هېوادونه یې د غلامۍ منلو ته مجبور کړي دي، د واشنګټن تر مشرۍ لاندې د سازمانونو په واسطه د دې هېوادونو پوروړي کول دي.

د اسعارو د بیې د ثابتې تبادلې سیستم د له منځه تلو وروسته د هېوادونو ملي پیسې په پوره توګه په تورمي پیسو بدلې شوې چې تل یې ارزښت د نوسان په حال کې وي او په دې سره یې د پیسو د نړیوال صندوق له پاره چې د پیسو د نړیوالو قوانینو او اړیکو د تنظیمولو یوازینی سازمان دی، د ټولو هېوادونو د پیسو د ارزښت د مهارولو چانس برابر کړی دی.

*د دې له پاره چې هېوادونه له نړیوال بانک او د پیسو له نړیوال صندوق څخه د پور اخیستلو له پاره اړ شي د دې هېوادونو پیسې د همدې سازمان له خوا کم ارزښته کېږي او دولتونه د بودیجې د برابرولو له پاره له دې سازمان څخه پور اخیستو ته مجبورېږي او که کوم هېواد مقاومت ونښيي، د هغه هېواد مشرانو ته د رشوت ورکولو هڅه کوي او کله یې چې مشران فاسد نه وي یا دا چې د امریکا د جاسوسۍ د سازمان له خوا وژل کېږي او یا د امریکا په مشرۍ د ناټو د نظامي لاسوهنې په واسطه د مقاومو هېوادونو نظام له منځه ځي*[1].

اوسنی اقتصادي سیستم خلکو ته د علمي ټولنو او د غربي رسنیو له خوا داسې بغرنج ښودل کېږي چې عام خلک پرې نه شي پوهېدی او اقتصادي کارپوهان د هغو علمي کتابونو په واسطه چې د غربي ټولنو له خوا یې د سانسور پړاو تېر کړی وي، اکتفا کوي. نو له دې امله د برېټن ووډز سازمانونو ته پراختیا ورکوي او د خپل هېواد د پراختیا له پاره د دې سازمانونو غړیتوب یو حتمي کار ګڼي، په داسې حال کې چې د دې هېوادونو پورونه له دوو خطرناکو پدیدو سود او د ساختاري تعدیل په څېر مشروطیتونو سره مل وي.

دا ټولنې په دې پوهېږي چې هېوادونه یې له ورکړل شوو پورونو او ورسره د اړوند سود له زوره نشي وتلی، د ملي پورونو د پراخولو له پاره داسې پور ورکوي چې ډېری د پور اخیستونکو هېوادونو په د ننه کې نه وي او پوروړي هېوادونه د اخیستل شوي پور له بار څخه نه شي وتلای. سربېره پر دې د هر کال کلنۍ ګټې فیصدي هم ورزیاتېږي او په دې سترو پورونو کې ډوبېږي.

---

۱. لا زیات معلومات د یو اقتصادي جنایتکار د اعتراسفونو په کتاب کې چې د جان پرکینز لیکنه ده.

هغه هېوادونه چې ښه اقتصادي پالیسي او سرچینې لري او کولای شي اخیستل شوی پور بېرته ورکړي، د دې سازمانونو له خوا تر اقتصادي یرغلونو لاندې د پویس د ارزښت په مهار کولو سره ښکته کړي، ځکه دا سازمانونه نه غواړي چې هېڅ هېواد دې له پور څخه خپلواک وي. *د ملي پیسو بې ثباته کول د نړیوال بانک او د پیسو د نړیوال صندوق د پټو اجنډااوو یوه کلیدي موخه ده.*

*د پیسو کم ارزښته کول په ناڅاپي او سمدستي توګه د بیو د لوړوالي لامل ګرځي او په ورته وخت کې د کاري ځواک د ارزښت او واقعي عاید د راښکته کېدو لامل ګرځي*[1].

همدارنګه دا کړکېچ د پورونو د بېرته اداءکولو د سختوالي لامل ګرځي او یاد هېواد همداسې پوروړی پاتې کېږي. کله چې هېوادونه د پور په ورکړې ناتوانه شي، دا سازمانونه د یو ملاتړي په توګه د بربادۍ له یوې نوې نسخې سره راڅرګندېږي او د پخوانیو پورونو د اداء کولو له پاره، نوي پورونه د اصلاحاتو په څېر له نوو شرایطو سره ورته وړاندې کوي.

د نوي پور له جملې څخه ډېره برخه په پخوانیو حسابونو کې پاتې کېږي او ډېره لږه برخه یې هېوادونو ته د اقتصادي پالیسیو د اصلاح له پاره ښکته پورته کېږي. *د پیسو د نړیوال صندوق تر واک لاندې د بودیجې د سختوالي پالیسي(budgetary austerity)، کم ارزښته کول، د سوداګرۍ خپلواکي او شخصي کول په ۱۵۰ پوروړو هېوادونو کې عملي کېږي. پوروړي ملتونه د مرکزي بانک او اقتصاد وزارت د حاکمیت حق ته په غاړې ایښودنې اړ کېږي چې د یو کلن اقتصادي او پیسو پالیسۍ کنټرول په غاړه لري، دولتي ټولنې له منځه ځي او د اقتصادي سرپرستۍ یو سېستم (د واشنګټن تر مشرۍ لاندې د ټولنو په واسطه جوړېږي. یو موازي دولت چې واک یې له مدني ټولنې څخه زیات وي، د نړیوالو اقتصادي سازمانونو له خوا جوړېږي. هغه هېوادونه چې د پیسو د نړیوال صندوق له کړنو او موخو سره سم عمل نه کوي، تور لېست ته لوېږي*[2].

کله چې هېوادونه د خپل پور د بېرته ورکولو توان ونه لري، د واشنګټن تر مشرۍ لاندې اقتصادي ټولنې د حکومت د لګښتونو د راکمولو او د عایداتو د زیاتوالي له پاره د اقتصادي سختوالي پالیسي (Austerity) وړاندې کوي. *اقتصادي سختګیري هغې پالیسۍ ته ویل کېږي چې موخه یې د حکومت د اقتصاد ښه والی وي. په دې پالیسۍ کې په عمده توګه د عامه سکتور د دندو کموالی، د عامه خدمتونو کارکوونکو ته د امتیازونو او اضافه کاریو کموالی، د دولتي ټولنو شخصي کول او د دولتي خدمتونو*

---

1 .Michel Chossudovsky; The Globalization of Poverty and the New World order; p 48

۲. همدا سرچینه؛ ۱۹ مخ

*کمـوالی پـه کـې شـامل دي. د دې ډول پالیسـیو بنسـټیز هـدف د حکـومتي لګښـتونو راکمول او د پورونو ورکول دي*[1].

دا چې په ښکاره توګه هېوادونه خپل پور ادا کړي، پرته له دې چې خپل کار کوونکي منفک کړي او د پاتې شوو کار کوونکو امتیازونه راکم کړي په خلکو او په ځانګړې توګه په ټیټو او منځنیو پاړکیو (طبقو) خلکو باندې درنې مالیې وضع کوي ځکه چې نړیوال شرکتونه د بهرنۍ پانګونې په لېوالتیا سره له دې مالیو بښل کېږي.

د حکومتونو په واسطه د کارکوونکو راکمول د بې کارۍ د کچې د زیاتوالي لامل ګرځي او همدارنګه د امتیازونو راکمول او مالیو لوړول د فقر لامل ګرځي چې دا هم د واشنګټن یوه عمده موخه ده، ځکه چې د غریبو خلکو کنټرول او تر واک لاندې کول اسانه کېږي. یوه ژوندۍ بېلګه یې په اوسني یونان کې لیدلی شوو.

الکسس سپراس (Alexis Tsipras) د چپ پالو یا سریزا (Syriza) له ګوند څخه د یونان صدارت ته کاندید د یونان په ټاکنیزو سیالیو کې یې د سخت پالنې پر ضد شعارونه ورکړل او د واشنګټن تر مشرۍ لاندې د سخت پالو پالیسیو سازمانونو او له اروپایي اقتصادي ټولنو څخه د یونان سترو شوو خلکو، نوموړي ته په دې هیله رایه ورکړه چې دا اقتصادي سخت پالنه به له منځه یوسي. کله چې د یونان صدراعظم شو او ویې غوښتل چې د یونان د سخت پالنې پالیسې له منځه یوسي. د ظالمو اقتصادي ټولنو له خوا یې دوه انتخابه ولیدل: یا به د دې سازمانونو تګلارې منې او یا به هم د اروپا له اتحادیې څخه وزي. اکسس سپراس د دوو ټاکنو انتخابول د عمومي رایو له پاره خلکو ته پرېښودل او په ۲۰۱۵ زېږدیز کال یې د ټولپوښتنې له پاره عمومي رایې پیل کړې؛ خو د عموي رایو پرخلاف یې د غرب د ټولنې تر فشار لاندې یو وار بیا غربیانو ته ثابته کړه چې اکثریت رایې او ولسواکي هغه مهال معتبره ګڼل کېږي چې په کې یې خپلې ګټې له ګواښ سره مخ نه وي.

دا تګلاره په افغانستان کې هم د ترسره کېدو په حال کې ده او افغانان هم ورځ تر بلې په اقتصادي سختۍ کې راګیر دي او د موازي ټولنو د یو ځای کېدو په نامه یې د حکومتي کارکوونکو په منفک کولو لاس پورې کړی او د حکومت د عوایدو په لوړولو سره درنې مالیې په کسبه کارانو، عادي خلکو او کارکوونکو وضع کېږي. د مخابراتي شرکتونو په څېر څو ملیتي شرکتونه چې عاید یې له اسمان سره لګېږي، د دې پر ځای چې د خپلو مصرفي کارتونو له عایداتو مالیه ورکړي، عام خلک چې هره کورنۍ *پنځلس*

1. European Union Center of North Carolina; EU Briefings, Policy Area: The Politics of Austerity; p 1

*زره افغانی عاید لري*[1] له تورمي پیسو څخه د دې مالیو ورکولو ته اړ اېستل کېږي چې د دې پیسو ارزښت په تدریجي توګه د کمېدو په حال کې دی.

د پیسو کم ارزښته کول د پانګو د غلا کولو او د فقر پیدا کولو یوه نړیواله وسیله ده. له ملاتړ او ذاتي ارزښت پرته کاغذي پیسې د مهار کېدو قابلیت لري او د دې پیسو مهار کېدنه د پیسو د سترو ټولنو په واسطه اسانه ده. د پیسو کم ارزښته کېدل د دولت د لاسوهنې په واسطه د واشنګټن تر مشرۍ لاندې د ټولنو په فشارونو او د دې ټولنو له خوا د راپیدا شوو بهرنیو عواملو په واسطه ترسره کېږي. *د پیسو کم ارزښته کول یو ډراماتیک او ان جنجال جوړوونکی اقدام دی چې یو حکومت یې پیلوي.*

*د معادلاتو له مخې د پیسو په ارزښت کې بدلون د امریکایي ډالرو پر وړاندې اندازه کېږي، نو له دې امله کم ارزښته کول د ډالرو پر وړاندې د یوې بهرنۍ پیسې د قیمت راټیټول دي*[2]. د واشنګټن تر مشرۍ لاندې ټولنو، په حکومت کې د اداءکولو په برخه کې د تعادل راوستلو او اقتصادي اصلاحاتو په پلمو، هېوادونه د پیسو کم ارزښته کولو ته مجبوروي او ډېری دولتونه د پیسو په کم ارزښته کولو کې احتیاط کوي او همدارنګه د غرب سیال هېوادونه د خپلو پیسو له کم ارزښته کولو څخه ډډه کوي، نو له دې امله دغه سازمانونه له بېلابېلو غیرقانوني لارو د دې هېوادونو د پیسو په بې ارزښته کولو لاس پورې کوي؛ د بېلګې په توګه: اقتصادي تحریم پرې وضع کوي، د یادو هېوادونو د اقتصادي ثبات په اړه دروغجن راپورونه خپروي او ان د غربي همغږو ټولنو لکه CIA، پېنټاګون او ناټو په واسطه سیاسي کړکېچونه پیداکوي.

نړیوال اقتصادي نظام داسې دی چې ټولې اقتصادي اړیکې یې له یو بل سره تړلې دي، یعنې کله چې له یوه اړخه زیان ویني، بل اړخ ګټه کوي. د یو هېواد د پیسو په کم ارزښته کېدو سره، د هغه هېواد اوسېدونکي د ارزښت د راکمېدو په تناسب، خپله پانګه له لاسه ورکوي او یوازې هغه هېوادونه له دې زیان څخه ګټه کوي چې پیسې یې د نړۍ د ذخیروي پیسو په توګه پېژندل کېږي او نورې پیسې د دوی د پیسو پر وړاندې خپل ارزښت له لاسه ورکوي.

کاغذي جعلي او پوچې پیسې تل د ارزښتي سقوط په حال کې وي او د هرې کاغذي پیسې له پیداکېدو څخه وروسته تر اوسه پورې د امریکایي ډالرو پر وړاندې د کم ارزښته کېدو په حال او امریکایي ډالر هم د خدمتونو او تولیداتو پر وړاندې د کم ارزښته کېدو په حال کې دی چې د سترو اقتصادي لوبغاړو له پاره یې د اصیلو نړیوالو

1. The Asia Foundation; A Survey of Afghan People: Afghanistan in 2015; p 76

2. Richard N. Cooper; Currency Devaluation in Developing Countries; p 3

پــانگو د غــلا کولــو لــه پــاره موقــع برابــره کــړي ده. یــوه بېلګــه یــې ترکیــه ده چــې د *۱۹۹۴ زېږدیز کال په لومړۍ ربعه کې یې ترکي لیرې د امریکایي ډالر پر وړانـدې خپـل ۵۰ سلنه ارزښت له لاسه ورکړ*[1].

په ۱۹۹۴زېږدیز کال د ترکانو پانګې په داسې حـال کې ورکـې شـوې چـې ظـاهراً هېڅ غل د ترکانو د کورونو مخې ته ونه لیدل شو، په داسې حال کې چې ملـي کاغـذي پیسې د ډالر پر وړاندې د کم ارزښته کېدو په حال کـې وې. د مـالونو بیـې ډالـر محـوره دي، یعنې که په ۱۹۹۳زېږدیز کال یو ترک په ۱۰۰ ترکـي لیـرو یـو ټلویزیـون اخیسـتی شوای، په ۱۹۹۴زېږدیز کال یې په ۲۰۰ ترکي لیرو اخیست.

د نورو هېوادونو د پیسو کم ارزښته کېدل او پـر وړانـدې یـې د واشـنګټن تـر رهبـرۍ لاندې سازمانونو د چلونو په واسـطه د غربیـانو د پیسـو بـا ارزښـته کېـدل د کـار د قـوې اقتصاد د ارزانه کېدو باعث ګرځي او د نورو هېوادونو(د غربیانو په باور د درېیمـې نـړۍ) خلک د لږو غربي پیسو پر وړاندې خپله کاري انرژي لګوي.

په دې حالت کې غربي څو ملیتي شرکتونه له دې ارزانه کاري قوې څخه ګټه اخلـي او خپل تولیدات د غربي مارک په وهلو سره له واقعي ارزښت څخه په څو چنده لوړه بیـه پلوري. همدارنګه د ټولیزو رسنیو او نورو غربي سازمانونو اغېز دومره خپور شوی دی چې دا کـارکوونکي پـه غربـي مـارک سـره تولیـدات ډېـر خوښـوي او د باکیفیتـه سـیمه ییـزو تولیداتو له اخیستو څخه په ارزانه بیه ډډه کوي.

د ډالرو د با ارزښته ساتلو له پاره اړینه ده چـې امریکـایي ډالـر پـه ټولـه نـړۍ کـې د ګرځېدو په حال کې وي او سربېره پر دې، نړیوالې سوداګریزې بیې هم ډالر محوره وي، نو له دې امله د سـوداګرۍ د خپلـواکۍ پـه نامـه، د نـړۍ د ډالـر کېـدو پالیسـي عملـي کېږي.

غربیانو وروسته تر دې چې په ختیځو مستعمره ملکونو کې سختې ماتې وخوړې، نور یې نه غوښتل چې فزیکـي اسـتعمار تـه ادامـه ورکـړي، نـو لـه دې املـه یـې د فکـري او فرهنګي استعمار ترڅنګ په مالي او اقتصـادي اسـتعمار هـم پیـل وکـړ چـې درې سـتر اقتصادي نړیـوال سـازمانونه چـې اوس مـردار اقتصـادي مثلـث جـوړوي پـه بـریټن ووډز کنفرانس کې پیل کړ.

دا درې سازمانونه له یو بل سره په همغږۍ کې داسې کار کوي چـې دې یـووالي تـه یې د نړیوال مالي او اقتصادي وزارت نوم ورکړ؛ خـو دا وزارت پـه داسـې حـال کـې چـې

1. Oya Celasun. Macroeconomics and Growth Group; Development Research Department; The World Bank; The 1994 Currency Crisis in Turkey; p 2

نړیــوالې ســوداګریزې اړیکــې کنټرولــوي، یــوازې او یــوازې د یهــودي – مســیحي (صهیونېستي هېوادونو) د اتحاد ګټې تامینوي.

نړیوال بانک او د پیسو نړیوال صندوق له پـور څخـه د پیسـو د انـدازې د کمـوالي او نورو استعماري پالیسیو په بدل کې، هېوادونه د نړیوال سـوداګریز سـازمان غړیتـوب تـه مجبوروي چې د ملـي اقتصـاد د لـه منځـه وړلـو او د وارداتـو پـه هڅـونې سـره د کورنیـو تولیداتو د له منځه وړلو له پاره یوه عمده وسیله ګڼل کېږي.

*د برېټن ووډز سازمانونه ادعا کوي چې د دې سـازمانونو پـه واسـطه د وړانـدې شـوو تعرفو پـه جوړښـت کـې د صـادراتو ضـد پالیسـي شـامله ده چـې د صـادراتي اقتصـاد د کموالي لامل کېږي او د صادراتي سکتور پر وړاندې د سیمه ییز بازار پراختیا تشویقوي. که څه هم، ډېر لـږ شـواهد شـته چـې دا پالیسـي دې د صـادراتو پـه ګټـه د سـرچینو د بدلون لامل وګرځي*[1] او پر خلاف یې د دې سازمانونو په واسطه وړانـدیز شـوو تعرفـو څـو ملیتي شرکتونه وارداتو ته وهڅول او ان سیمه ییز تولیدات هم هغوی ته سپاري.

د نړیوالې سوداګرۍ سازمان غړي هېوادونه د داسې تعرفو د سېستم پـر منلـو اړ دي چې د صهیونېستي څو ملیتي شرکتونو پر خدمتونو او تولیداتو یـې وارداتـي مالیـه کمـه کړې ده او پر وړاندې یې د دې شرکتونو پر سـیالو سـیمه ییـزو تولیـداتو یـې درنـه مالیـه وضع کړې ده.

همدارنګه د سوداګرۍ تـر خپلـواکې پالیسـۍ لانـدې او د بهرنیـو پـانګونو د هڅـونې تګلارې سره دا ستر شـرکتونه لـه مـالیو بښـل شـوي دي او پـر وړانـدې یـې، سیمه ییـز کوچني شرکتونه د درنو مالیو په ورکولو مجبورېږي چې د داخلي سوداګرۍ د لـه منځـه تلو لامل کېږي، سوداګر او کارکوونکي یـې د څـو ملیتـي شـرکتونو لمنـو تـه لـوېږي او د هغوی غلامي مني. د صهیونېستي څو ملیتي شرکتونو راننوتل له ځـان سـره د شخصـي کولو یوه بله تګلاره هم لري څو وکولای شي طبیعي سـرچینې او هغـه سـرچینې چـې د خدای ﷻ له خوا خلکو ته ډالۍ شوې دي وتښتوي.

امریکا د نړیوالې امپراتورۍ د جوړولو او ساتنې له پاره د هېوادونو اقتصادي کنټـرول او سرچینو ته اړ دی، نو له دې امله د سـاختاري اصـلاحاتو تـر تګـلارې لانـدې د پیسـو نړیوال صندوق او نړیوال بانک پوروړي شـرکتونه د عامـه خـدمتونو او دولتـي شـتمنیو د دولتي ټولنو په شخصي کولو مجبوروي.

1. Michel Chossudovsky; The Globalization of Poverty and The New World order; p 54

د دې ټولنو په ساختاري اصلاحاتو کې يوه هېواد تـه د پرمختـګ او پراختيـا لـه پـاره يوازې د پروژو د ټاکنې حق ورکول کېږي او دا ټولنې پرېکړه کوي چې کومه پروژه د دې هېواد په ګټه ده او کومه پروژه ورته زيانمنـه ده چـې دا ټـولنې ډېـری د خپلـو پورونـو پـه واسطه داسې پروژې عملي کوي چې د صهيونېستي څو مليتي شرکتونو او امريکا ګټـې په کې تامين وي. د بېلګې په توګه په افغانستان کې يې لومړی هغه پروژې عملي شوې چې د ناټو د تجهيزاتو د انتقال له پاره يې اسانتيا راوړه.

کله چې دې ټولنو پرېکړه وکړه، کومه پروژه د يوه هېواد لـه پـاره چـې پيسـې يـې پـر هغه هېواد د پور په توګه شمېرل کېږي، عملـي شـي د شخصـي کولـو او د سـوداګرۍ د ازادۍ تر پاليسيو لاندې يې داسې شرکتونو ته ورکوي چې کـه پـه خپلـه خوښـه هماغـه کار ته برابر وي، نو دا شرکتونو اکثره هماغـه څـو مليتـي شـرکتونه وي چـې د امريکـا لـه متحدو ايالتونو څخه سرچينه اخلي.

په حقيقت کې دا ټولنې په داسې حال کې چې يـو هېـواد پـورورۍ کـوي، پيسـې د امريکا له متحدو ايالتونو څخه نه راباسي او يوازې يې د امريکا په يو ايالت کې له بانکي حساب څخه د امريکا په بل ايالت کې يو امريکايي شـرکت تـه انتقـالوي. د دې سـترې دوکې مثال کولای شو په افغانستان کې په واضح توګه د لـويې لارو د جوړولـو پـه پـروژو کې ووينو.

امريکا په ډېرې بې شرمۍ سره ادعا کوي چې ميلياردونه ډالر يې له افغانستان سـره مرسته کړې ده، په داسې حال کې چـې د افغانسـتان د لويـو لارو د لسـګونو او سـلګونو ميليارډ ډالرو پروژې يې له دوو سترو امريکـايي شـرکتونو چـې لـويز برجـر او آی آر ډي، سره قرارداد کړې وې (ويل کېږي چې د امريکا د ولسمشر مرستيال ډېـک چينـي د دې شرکتونو ونډه وال و) او دې دوه شرکتونو ډېرې لږې پيسې سـيمه ييـزو قراردادیـانو تـه د دې کار د ترسره کولو له پاره بېلې کړې او نورې پاتې پيسـې لـه را رسـېدو ورانـدې او يـا وروسته بېرته امريکا ته لېږدول شوي دي.

په همدې توګه ټـول هېوادونـه د هغـو پيسـو پـه واسـطه چـې هېڅکلـه د امريکـا لـه متحده ايالاتو څخه نه وځي، داسې پورورۍ کېږي چې بېرتـه يـې ورکـول ناشـوني وي او په پای کې د دې پيسو پر بدل کې د امريکا متحده ايالاتو تر مشـرۍ لانـدې ټـولنې لـه هغوی څخه د طبيعي سرچينو غوښتنه کوي او هېوادونه د ناچيزه بيې پر ورانـدې د دې طبيعي سرچينو ورکولو ته مجبورېږي او په حقيقت کې امريکا د ارزښت لرونکو هېوادونو طبيعي سرچينې د چل او دوکې په واسطه لاسته راوړي.

پـه دې ډول چلونـو او ظلـم سـره امریکـا وتوانېـده چـې د دجـال د دویمـې ورځـې د عملیاتي مرکز په توګه، خپله شیطاني امپراتوري د غیر انسـاني فتنـو د پراختیـا لـه پـاره جوړه کړي او کله چې هر هېواد یا کس د دې امپراتورۍ پر وړاندې ودرېږي، د امریکـا د پوځ او صهیونېستي متحدینو (ناټو) په واسطه یې د له منځه وړلو پلان په بـې شـرمانه او دروغو پلمو سره نیول کېږي.

په دې اړه د امریکا د استخباراتي سازمان (CIA) پخوانی مامور جان پرکېنز په خپلو اعترافونو کې د یـو اقتصـادي جنایتکـار د اعترافـاتو پـه نـوم وایـي چـې امریکـا د خپلـې امپراتـورۍ جــوړونې او ســاتنې لــه پــاره داســې کســان چــې د امریکــا د هجمــوني (Hegemony) پـر وړانـدې درېـږي، لـومړی هغـوی د پیسـو او واک د وعـدو پـه مرسـته فاسدوي او که بیا هم دا هڅه ناکامه شوه، د هغوی د وژنې طرحه جوړوي؛ څرنګـه چـې د پانامې دوه ولسمشران د CIA په واسطه ووژل شوو او کـه دا طرحـه هـم ناکامـه شـوه، لکه څنګه چې له صدام حسین سـره وشـول، امریکـا خپـل نظـامي ځـواک د هغـه د لـه منځه وړلو له پاره ګماري.

په ۲۰۰۱زېږدیز کال صدام حسین د لـومړي ځـل لـه پـاره د پېټـرو ډالـر پـر وړانـدې ودرېد او ویې غوښتل چې خپل نفت پر یورو وپلوري، خو دا چې د نفتو خرڅلاو پـه ډالـر (Petrodollar) د امریکایي پیسو یـوازینی ملاتـړی دی، امریکـا پـر عـراق د ډلـه ییـزې وژنې د وسلو د لرلو تور ولګاوه او له دې تور څخه یې پر دې هېواد د حملې د مقدمې په توګه کار واخیست چې د عراق تر نیولو وروسته امریکا شیطاني هېواد اعتـراف وکـړ چـې عراق د ډله ییزو وژنو وسلې نلرلې[۱].

همدارنګه د لیبیا پاچا معمر القذافي د افریقا د اتحادیې په جوړولو سره وغوښتل پـه لیبیا کې د سرو او سپینو زرو د سکو پولي سېستم جـوړ کـړي او بیـا یـې پـه افریقـا کـې برابر کړي چې د ډالرو د هجموني له پاره ستر خطر ګڼل کېـده، نـو لـه دې املـه نـاټو د امریکا په مشرۍ پرې حمله وکړه او د هغه په وژل کېدو سره یې د افریقا یوازینی باثباتـه هېواد له خاورو او وینو سره برابر کړ.

د دې اقتصادي نړیوالو ټولنو تګلارې په نـړۍ کـې د نړیـوال فقـر د رامـنځ تـه کېـدو لامل شـوې او د دې ټولنـو د ظـاهري پلانونـو پـرخلاف نړیـوالې اقتصـادي نـابرابرۍ پـه تعجیلي چټکتیا سره د زیاتېدو په حال کې دي چـې پـه ټولنـو کـې د اقتصـادي پـاړکیو (طبقو) د جوړېدو او د دې طبقو تر منځ د بدبینۍ او نفـرت د راتـګ لامـل شـوې دي. د

۱. د لا زیاتو معلوماتو لپاره د Marin Katusa کتاب The Colder War: How the Global Energy Trade Slipped From Americal Grasp ته مراجعه وکړئ.

پیسو نړیوال صندوق د فقر د له منځه وړلو له پاره د خپلو تګلارو په نه اغېزمنتیا اعتـراف کوي: *که څه هم په وروستی لسیزه کې په دې اړه چې ایا د (IMF) پروګرامونـه اغېـزمن دي کنه؟ ډېرې څېړنې شوې دي. د شته څېړنو له مخې، هېڅـوک نشـي ویـلای چـې د مالي وجوهو د برابری د پروګرامونو منل د پراختیـا اغېـزې تـه یـې مرسـته کـړې ده. پـه حقیقت کې دا څرګنده شوې ده چې دا پروګرامونه، له ځـان سـره د تـورم زیـاتوالی او د پراختیا د مقیاس سقوط لري*[1]. اوسنی اقتصادي سیستم لـه پورتـه دوکـو پرتـه، یـوه بلـه غولوونکې پدیده هم لري چې د بورس یا برخو د بازار (Stock Market) په نامه یادېږي.

## د بورس یا برخو بازار

د غرب د عصري تمدن اقتصادي نظام یو داسـې نظـام دی چـې د کوچنیـو اقلیتونـو (اکثره د صهیونېزم مشرانو) ګټو او د خلکو غلام کولو ته کار کوي. د دې اقلیت د ګټـو د تامین له پاره، د پانګوالی اقتصادي نظام د سهمونو د بازار پدیده لري. ستر شرکتونه، د سترو پروژو د مالي وجوهو د تامین له پاره چې د پروژې له پاره اړونده بودیجـه نـه لـري، خپلې برخې د سهمونو په بازار کې په څو برخـو وېشـي او دا برخـې پـه دې بـازار کـې د خرڅلاو له پاره داوطلبی ته ږدي.

د خلکو په واسطه د دې برخـو اخیسـتل، شـرکتونو خپـل مـالي صـندوق یـا وجـوه د سترو پانګونو له پاره لاسته راوړل او د هغو خلکو لـه پـاره چـې دا سـهمونه یـې اخیسـتي دي، په سـترو شـرکتونو کـې د شـراکت یـو باطـل خیـال ورکـول کېـږي. ډېـری وخـت د سهمونو د پېر او پلـور شـرایط داسـې دي چـې د سـهم خرڅـوونکی شـرکت د خلکـو پـه واسطه د لګول شوو پیسو په بېرته ورکولو مجبور نه وي او خلک یوازې کـولای شـي دغـه سهمونه د بورس په بازار کې وپلوري.

په ظاهره د شرکتونو د سهمونو بیه د هماغه شرکت پرمختګ ته په کتو زیاتېږي او یـا کمېږي او په داسې حال کې چې خلکـو تـه د شـراکت یـو باطـل خیـال ورکـول کېـږي، هغوی د شرکتونو د سترو برخو له پېرلو سره سره بیا هم په دې شـرکتونو کـې د پرېکـړې کولو حق نه لري. د سهمونو بازار په حقیقت کې د سترو شرکتونو له پاره د یو وړیا بانـک په څېر دی چې د دې بانک په واسطه، شرکتونه سترې پانګې پرته له دې چې پـه بېرتـه ورکولو یې مجبور وي، له عامو خلکو څخه یې په دوکه لاسته راوړي.

---

1. Mohsin Khan; The Macro Economic Effects of Fund Supported Adjustment Programs: IMF staff Papers; Vol. 37; No. 2; 1990; pp 196, 222

د سهمونو بازار د دې تر څنګ چې د سترو شرکتونو له پاره د شيدو غوا ده، د منځنی طبقې د پانګو د غلا يوه عالي وسيله هم ګڼل کېږي چې دا کار د سترو شرکتونو د سهمونو د بازار په مهارولو او د رسنيو په محرکو قوو سره کېږي. اوس مهال د سهمونو بازار د هېوادونو د اقتصاد د اغېزمنتيا ښودونکی دی چې په لوړوالي سره يې د خلکو اقتصادي وضعه ښه کېږي او د په سقوط سره يې په هېوادونو کې اقتصادي کړکېچ راځي چې د پانګونې دا ستره اندازه او ارزښت په دې بازارونو کې د اقتصاد پوهانو او مهاروونکو له پاره د سرمايو د غلا ښه موقع برابره کړې ده.

کله چې د خلکو پانګې د شرکتونو د برخو په اخيستلو ولګول شوې، مهاروونکي په بېلابېلو لارو د خلکو د پانګو د غلا کولو له پاره د برخو بيې زياتولای او کمولای شي. کله کله چې د يو شرکت د سهم د ډېرې اندازې په اخيستو سره د نوموړي شرکت د سهمونو ارزښت په تدريجي توګه لوړېږي او خلک د دې شرکت پرمختګ ته په کتو سره د هغه د سهمونو په پېرلو لاس پورې کوي، کله چې د يو شرکت په سهمونو کې د ډېرو پانګو اندازه راټوله شوه، مهارکوونکي د هغه شرکت په اړه د منفي اقتصادي راپورونو په خپرولو او همدارنګه د سهمونو په بيا ځلې خرڅلاو سره داسې خلکو ته ښيي چې دا شرکتونه د رکود او ماتې په حال کې دي او په دې کار سره سهمونه په ناڅاپي توګه خپل ارزښت له لاسه ورکوي او خلک له دې وېرې چې سهمونه بيا سقوط ونکړي، هغه خرڅوي او ستره ضربه او تاوان ويني او مهارکوونکي يو وار بيا دا سهمونه په ډېره ارزانه بيه اخلي او په تدريجي توګه يې په همدې چلونو سره د هغې د بيې په لوړولو لاس پورې کوي.

د منيسولا له پوهنتون څخه راجيش کوما اګروال او د هوستن له پوهنتون څخه ګوجونو په دې اړه خپلې څېړنې ترسره کړې دي چې هغوی د سهمونو د بازار له ۱۴۳ مهاروونکو حالتو سره مخ شوي دي، وايي: *مهارکوونکي لومړی سهمونه اخلي او بيا يې پلوري*[1]. همدارنګه اقتصاد پوهان د بورس د بازار له سقوط او له حکومتونو څخه د پيسو په اخيستو سره د اقتصادي کړکېچ په رامنځ ته کولو ډېرو سترو او نه ماتېدونکو شرکتونو (Too Big to Fail) ته نجات ورکوي او کوچني او منځني پانګوال د غربت په لور رابښکته کوي او ځانونو ته په همدې توګه ګټه رسوي. په دې اړه په اقتصاد کې د نوبل د جايزې ګټونکی جوزف سټګلېټس د اقتصاد په اړه وايي: *دې پوهانو، په امريکا کې په*

1. The University of Chicago; Jounal of Business (2006); Vol. 79; No. 4; P 1917

۲۰۰۸ *زیږدیز کال د بورس د بازار سقوط او اقتصادي کړکیچونه راوړل*[1]. د اوسنی نړۍ اقتصادي نظام په پوره توګه یو غیر عادلانه، د طبقو او نابرابریو منځ ته راوړونکی، فقر تـه کشوونکي، ظالمانه او غیر اسلامي دي.

## اوسنی اقتصادي نظام او اسلام

کله چې د (الیوم اکملت لکم دینکم و اتممت علیکم نعمتـی و رضـیت لکـم الاسـلام دینا[2]) نازل شو، مسلمانانو فکر وکړ چې د قران کریم د ایتونو د نزول لړۍ د دې ایت پـه نازلېدو سره پای ته ورسېده او تر دې وروسته به ایت نازل نه شي، خو د رسول اللـه ﷺ تر وفات کېدو څو ورځې وړاندې الله ﷻ د سود په اړه ایاتونـه نـازل کـړل او هغـه یـې لـه خدای ﷻ او رسول ﷺ سره جګړه وګڼلـه: *اې مؤمنـانو! کـه پـه رښـتیا سـره مـو ایمـان راوړی وي، نـو لـه خدایـه ووېرېـږئ او پـر خلکـو مـو چـې کـوم سـود پـاتې دی، هغـه ور پرېږدئ، خو که تاسې داسې ونه کړل، نو خبر اوسئ چې د اللـهﷻ او د هغـه د پیغمبـر ﷺ له خوا ستاسې پر خلاف د جګړې اعلان دی، کـه اوس هـم توبـه وباسـئ (او سـود پرېږدئ)، نو تاسې د خپلې پانګې اخیستلو حقدار یاست، مه تاسې تېری کوئ او نـه بـه پر تاسې تېری وشـي*[3].

سود په اسلام کې یوه تر ټولو خطرناکه کبیره ګنـاه ګڼـل کېـږي چـې بشـریت تـه لـه ځان سره فاجعه راوړونکې پایلې لري. اسلامي ښوونې تل له سود خوړلو څخه د لرېوالي تاکېد کوي او هغه تر ټولو بده پدیده ګڼـي. *حضـرت محمـد* ﷺ *پـر هغـو کسـانو لعنـت ویلی چې سود خوري، سود اخلي او د سود معاملې لیکـي*[4]. *همدارنګه* په یو بـل حـدیث *کې سود په درې اویا برخو وېشل شوی دی چې تر ټولو لږ جدیت یې له مـور سـره د زنـا معادل ګڼلی دی*[5].

---

1. Joseph E. Stiglitz; The Price of Inequality, General Principles; Moving money from the bottom of the pyramid to the top

۲. سورالمائده، ۳ آیات، نن ما ستاسې دین، ستاسې لپاره بشپړ کړ او خپل نعمت مې پر تاسې پوره کړ او ستاسې لپاره مې اسلام ستاسې د دین په توګه منظور کړ.

۳. سوره البقره، ۲۷۸ څخه تر ۲۷۹ آیتونو پورې: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ اتَّقُواْ اللّهَ وَذَرُواْ مَا بَقِيَ مِنَ الرِّبَا إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿۲۷۸﴾ فَإِن لَّمْ تَفْعَلُواْ فَأْذَنُواْ بِحَرْبٍ مِّنَ اللّهِ وَرَسُولِهِ وَإِن تُبْتُمْ فَلَكُمْ رُؤُوسُ أَمْوَالِكُمْ لاَ تَظْلِمُونَ وَلاَ تُظْلَمُونَ ﴿۲۷۹﴾

٤. صحیح مسلم؛ ۱۵۹۸ حدیث

٥. المستدرک علی الصحیحین؛ ۲۲۵۹ حدیث

د غرب د عصري تمدن او د هغې د اقتصادي نظام په راتلو سره چې د بانکوالۍ په نوم یوه نوی پدیده یې له ځانه سره لرله، په سود اخیستلو او خوړلو، سره له دې چې په ټولو اسماني دینونو کې یوه ستره ګناه شمېرل کېږي، مشروعیت ورکړل شوی او د یوې قانوني سوداګرۍ په توګه شمېرل کېږي؛ خو الله ﷻ د هغه چا له پاره چې سود اخیستل او سود خوړل سوداګري ګڼي، داسې اخطار ورکوي:

*کوم خلک چې سود خوري، د هغو حال به د هغه چا غوندې وي چې پېریانو نیولی وي او پر دې حال د هغو د اخته کېدو دلیل دا دی چې وایي: (سوداګري خو هم لکه سود غوندې شی دی.) په داسې حال کې چې الله ﷻ سوداګري روا او سود ناروا کړی دی. نو چاته چې د هغه د رب له لوري دا نصېحت ورسېد او په راتلونکې کې یې د سود له خوړلو ډډه وکړه، نو څه چې یې مخکې خوړلي هغه خو یې خوړلي دي، د هغه معامله له خدای سره ده او څوک چې له دې حکم وروسته بیا هم همداسې کار کوي، هغوی دوزخیان دي، تل به په کې اوسېږي.*[1]

الله ﷻ سود له سوداګرۍ څخه جلا کړی دی او هغه یې حرام ګرځولی، نو د سواګرۍ او سود ترمنځ توپیر څه دی؟ سوداګري هغې معاملې ته ویل کېږي چې په کې د دواړو لوریو تر منځ د ګټې او زیان شونتیا شته وي، په داسې حال کې چې په سودي معاملو کې د سود ورکوونکو ګټه او د سود اخیستونکو زیان تضمین شوی دی. د اسلامي سوداګرۍ په معاملاتو کې پانګې د ګرځېدو په حال کې وي ځکه چې په اسلامي سوداګرۍ کې ګټه او زیان شته او د یوې ډلې او کس لاسته د پانګو راټولېدنه له دوکو پرته ستونزمنه وي؛ نو له دې امله پانګې لاس په لاس د ګرځېدو په حال کې وي.

*له کنز څخه چې یوه حرامه اسلامي پدیده ده*[2] مخنیوي کېږي، په داسې حال چې کې د سود پر بنسټ په اقتصادي نظام کې د پیسو په منظمې راټولوني او د سود له احتمالي خطر پرته نغدي پیسې راټولېږي او پانګې یې په تدریجي ډول له ځان سره

---

۱. الَّذِينَ يَأْكُلُونَ الرِّبَا لاَ يَقُومُونَ إِلاَّ كَمَا يَقُومُ الَّذِي يَتَخَبَّطُهُ الشَّيْطَانُ مِنَ الْمَسِّ ذَلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُواْ إِنَّمَا الْبَيْعُ مِثْلُ الرِّبَا وَأَحَلَّ اللّهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبَا فَمَن جَاءهُ مَوْعِظَةٌ مِّن رَّبِّهِ فَانتَهَىَ فَلَهُ مَا سَلَفَ وَأَمْرُهُ إِلَى اللّهِ وَمَنْ عَادَ فَأُوْلَئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿۲۷۵﴾

۲. سوره التوبه، ۳۴ آيات: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ إِنَّ كَثِيرًا مِّنَ الأَحْبَارِ وَالرُّهْبَانِ لَيَأْكُلُونَ أَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ وَيَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ اللّهِ وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلاَ يُنفِقُونَهَا فِي سَبِيلِ اللّهِ فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿۳٤﴾، ژباړه: اې مؤمنانو! د دې اهل کتابو د زیاترو علماوو او روحانیونو حال دا دی چې د خلکو مالونه په ناروا لارو خوري او هغوی د الله له لارې څخه منع کوي او هغه خلک چې سره او سپین زر خزانه کوي او د خدای په لاره کې یې نه لګوي؛ نو دوی ته د دردناکه عذاب زیری ورکړه.

ذخیره کېږي او له ګرځېدو پاتې کېږي او په پای کې د نن ورځې په څېر یو داسې اقتصادي نظام راځي چې د نړۍ لس سلنه پیسه لرونکي وګړي په نوي سلنو پانګو سره خوند ترې اخلي او نوي سلنه خلک د لس سلنو پانګو پسې سرګردانه دي. اوسنی اقتصادي نظام په پوره توګه په سود ولاړ دی تر دې چې د دې نظام پیسې هم سودي دي.

مخکې له دې چې کاغذي حکمي پیسې پیدا شي، لومړی د هغې په واسطه سود پیدا کېږي، ځکه چې تقریباً په ټولو ملکونو کې د دې کاغذي پیسو د چاپ مسوولیت تر شخصي مرکزي بانکونو پورې تړاو لري او دا بانکونه هغه مهال پیسې چاپ ته سپاري چې حکومتونه د پور غوښتنه ترې وکړي چې دا کار په ښکاره توګه له سود سره تړلی دی. حضرت محمد ﷺ څوارلس سوه کاله وړاندې د بشریت د نن ورځې حالت په ډېرې حیرانتیا سره داسې اټکل کړی دی: *په یقیني توګه به په انسانانو داسې ورځ را ورسېږي چې هر کس به سود خوري (یا ورکوي) او که څوک داسې ونکړي نو اغېز به یې پرې وي*[1]. د دې له پاره چې دجال وتوانېږي د سود فتنه نړیواله کړي او ټول انسانان په مستقیمه او غیر مستقیمه توګه په سودي معاملو کې ښکېل کړي، په لومړي ګام کې یې هغه پیسې چې د ذاتي ارزښت لرونکې دي له منځه یوړی تر دې چې وتوانېده د پیسو د ارزښت ملاتړ هم له منځه یوسي او داسې پیسې یې جوړې کړې چې ارزښت یې یوازې په چل ول سره په هغه اعتبار کې چې خلک یې ورته لري نغښتی دی.

له بده مرغه د غربیانو په واسطه د پیسو له جوړ سېستم څخه د مسلمانانو درک چې د اسلام د قسم خوړونکو دښمنانو په واسطه د پانګو په قانوني غلا کې ډېر مهم رول لري، لږ دی او نه هم په دې پوهېږي چې د پیسو سېستم به په پای کې پر مسلمانانو د اسلام د دښمنانو د اقتصادي زورواکۍ لامل شي، په دې اړه په دې تاریخي پړاو کې د یهودي او مسیحي اتحاد په اقتصادي غلامۍ کې ډېری مسلمانان راغلي دي.

*له ټولو بده دا ده چې د عصري پیسو پر وړاندې د اسلامي علماوو کنوونکې چوپتیا چل او دوکې سره یو ځای ده. ان کله چې دوی وپوهېږي چې د پیسو په دې عصري سېستم کې چې یو څه ناسم دي، نو د ناسموالي او حرام ګڼلو جرات یې نه کوي. په اسلامي هېوادونو کې حاکم حکومتونه، د دې ننداري تر ټولو د بد حالت لرونکي لوبغاړي دي، نه هغوی د اوسنیو پیسو د خطرناک حقیقت درک کوي او نه هم غواړي*

---

۱. سنن ابو داود. کتاب البیع، باب: فی اجتناب الشبهات

*چې درک یې کړې او دلیل یې د یهودي او مسیحي اتحاد له پاره د دې حکومتونو غوره مالي ده چې اوس پر نړۍ حکومت کوي*[1].

د اسلام له مخې پیسې د ذاتي ارزښت او ګټور عمر لرونکې دي چې ارزښت یې مهار کېدای نه شي او د هغې د ارزښت کم او زیات کېدل هم د انسانانو په واسطه په اسانۍ سره د لوړې او ژورې کېدو وړتیا نه لري. په قران مجید کې ډېر مهال کله چې د پیسو یادونه شوې ده د دینار (د سرو زرو سکې) او درهم (سپینو زرو سکې) کلمې یادې شوې دي او د رسول الله ﷺ د سنت له مخې، کله چې په بازار کې د دې سکو کموالی احساسېده، نور شیان چې د ګټور عمر او ذاتي ارزښت لرونکي وي. د پیسو په توګه کارېدل، د بېلګې په توګه: خرما، اوربشې، جوار، غنم او نور.

*حضرت بلال ﵁ له یوې ټوکرۍ ښو خرماوو سره د محمد ﷺ خواته ورغئ او هغه یې محمد ﷺ ته وړاندې کړې. محمد ﷺ خرماوو ته وکتل ویې ویل: بلاله! دا ډېرې ښایسته خرماوې دي، دا دې له کومه ځایه راوړې؟ بلال ﵁ ځواب ورکړ: اې د الله ﷻ رسوله! ما دوه ټوکرۍ عادي خرماوې لرلې او هغه مې له دې ښو او چینډل شوو خرماوو سره بدلې کړې. انحضرت ﷺ وفرمایل: دا کار د سود ماهیت ځان ته غوره کوي*[2]. په یو بل روایت کې راغلي دي چې *د حضرت محمد ﷺ په وخت کې یو اوښ له پنځو اوښانو سره بدل شوی دی*[3]. د دې کار له پاره قانع کوونکی دلیل چې ولې د دوه ټوکریو خرما بدلول له یوې سره سود ګڼل کېږي او یو اوښ له څو نورو سره سود نه دی، دا دی چې خرما په هغه وخت کې چې په بازار کې د سرو او سپینو زرو د سکو د کموالي پر مهال د پیسو په توګه کارېدلې او د پیسو له بدلېدو څخه ګټه سود ګڼل کېږي او اوښ ځکه د پیسو په توګه نشي کارېدلی چې د هغې ګټور عمر معلوم نه دی او د مړینې امکان یې هم هره لحظه شته دی.

که مسلمانانو په اوسني انحطاط کې چې لمن یې ورته نیولې ده، نه وی او د سرو او سپینو زرو د حلالو سکو څخه یې ګټه اخیستې وای، هېڅکله به د امریکایي پیسو واحد د اکثرو اسلامي هېوادونو د ۷۰ پیسو له واحد سره نه برابرېده او اوس به صهیونېستي غربیانو پر مسلمانانو اوسنی اقتصادي زوروا کې واک نه لاره. د عصري پیسو ارزښت د پیسو د نړیوالو ټولنو په واسطه مهار کېدای شي، خو دا ټولنې له دې وړتیا څخه د بشري ټولنې او په ځانګړې توګه د اسلامي هېوادونو د فقیرولو له پاره کار اخلي.

---

1. Imran N. Hosein; The Gold Dinar and Silver Dirham: Islam and the Future of Money; p 8

۲. صحیح مسلم؛ ۳۸۷۱ حدیث

۳. امام مالک؛ الموطا؛ ۳۰ فصل؛ ٦۱ حدیث

د پیسو د مهار کولو واک غربیانو ته دا زمینه برابره کړې ده څو د اسلامي نړۍ د طبیعي زېرمو او تولیداتو ارزښت پخپله ګټې مهار کړي چې دا کار په اسلام کې حرام ګڼل کېږي، لکه په دې اړه په یو مبارک ایت کې داسې راغلي دي: *اې قومه له عدالت سره سم تول او پیمانه وکړئ او خلکو ته د هغو په شیانو کې تاوان مه ورا ړوئ او په ځمکه فساد مه خوروئ*[1].

۱. سوره هود، ۸۵ آیات: وَيَا قَوْمِ أَوْفُواْ الْمِكْيَالَ وَالْمِيزَانَ بِالْقِسْطِ وَلاَ تَبْخَسُواْ النَّاسَ أَشْيَاءهُمْ وَلاَ تَعْثَوْاْ فِي الأَرْضِ مُفْسِدِينَ ﴿۸۵﴾

## څلورم فصل
## نورې ننګونې او حل لارې

### ملت پالنه

اسلامي امت هېڅ کله د خپل څوارلس سوه کلن تاريخ په اوږدو کې اوسنى بد حالت چې په کې دا وياړلى امت تر ظلم، بې اتفاقۍ او په هر اسلامي ښار کې داخلي جنګونه دي او د علم له کاروان څخه وروسته پاتې دي، نه دى تجربه کړى.

د اسلامي امت د اوسني له ستونزو ډک حالت لاملونه ډېر زيات دي، خو هغه تر ټولو مهمه ستونزه چې د دې امت ګرېوان يې نيولى دى، د اسلامي چارو هېرول او پر ځاى يې د دښمنانو د وارداتي فکرونو خپلول دي. يو له خطرناکو فکرونو څخه اسلامي چې نړۍ ته راننوتى دى، ملت پالنه (Nationalism) دى او دا کار لامل شوى، هغه مسلمانان چې الله ﷻ ورته د دوى په خپل منځ کې د يو بل د ورورخطاب کړى دى، له يو بل سره په جګړه واچوي.

د اسلام دښمنانو د دې الهي سپېڅلي دين له پيل څخه د اسلامي امت د کمزوري کولو هڅه کړې ده او له دې انساني دين سره يې د ښکاره جګړې له اعلان ځان نه دى ژغورلى.

کله چې د صلاح الدين ايوبي په واسطه صليبيان له اسلامي هېوادونو څخه په بې شرمانه توګه ووېستل شول او چنګېزي مغولو، سره له هغو ډېرو ورانيو چې په اسلامي ښارونو کې يې کړې وې او د دې دين تر درک او د ښکلاوو ليدنې وروسته يې اسلام راووړ.

د اسلام دښمنان دې ته قانع شول چې د اسلامي امت ماته د نظامي قوې په واسطه شونې نه ده، نو له همدې امله يې د دې ستر امت په ټوټه ټوټه کېدو پيل وکړ. د فرانسې تر انقلاب او له سياست څخه د دين تر بېلوالي وروسته دين په اروپا کې يوه

شخصي کړنه وګڼل شوه او خپل ایډیالوژیک ځای یې له لاسه ورکړ چې د ایډیالوژیکي تشې د رامنځ ته کېدو لامل شو او دا چې د انسان فطرت له ایډیالوژۍ څخه تش کېدای نه شي او ایډیالوژیکي تشه د ټولنو د زوال سبب ګرځي.

نو له دې امله د دې تشې د ډکېدو له پاره ملت پالنه د یوې عقیدې او ایډیالوژۍ په توګه جوړه شوه. ملت پالنه په دې بریالۍ شوه چې هغه اروپایان چې یو وخت به یې د مسیح ﷺ په نوم په ټوله اروپا کې له مسلمانانو سره په جګړه کې تر یو صلیبي بیرغ لاندې په یو شکل راټولېدل په بېلو ملتونو او له یو بل سره په دښمنانو بدل کړي او د دې بریا په لیدو سره هغو صهیونېستانو چې د بیت المقدس په مرکزیت سره یې د دجال تر واک لاندې د یو نړیوال حکومت جوړېدل موخه وه، وغوښتل څو تر اروپا وروسته خپل بل ستر سیال یعنې دا نړیوال حکومت (اسلام) هم د ملت پالنې په نوم ټوټه ټوټه کړي او د هېوادونو تر منځ له اختلافاتو څخه په کار اخیستو سره هغوی په ځان پورې وتړي چې د هغوی پر وړاندې د نړیوال حکومت د جوړېدو پر مهال ونه درېږي او په ګونډو کېدو ته مجبور شي.

صهیونېستانو د دې له پاره چې خپل الحادي عقاید په اسلامي نړۍ کې خپاره کړي، لومړی باید له اسلامي پوهې څخه د مسلمانانو درک زیانمن شي او وروسته د هغوی نظرونه د ځای ناستي په توګه وپېژندل شي، *څرنګه چې د ډزرایيلي په نامه د برېټانیې یهودي لومړي وزیر یو ځل د قران کریم یو ټوک د انګلېسانو په یوه عمومي غونډه کې را واخیست او قران ته یې په اشارې سره وویل: مسلمانان به هېڅ کله هم ماتې ونه خوري تر هغې چې دا (قران) ترې وانه خیستل شي*[1]. د دې کار د ترسره کېدو له پاره صهیونېستي غربیان اسلامي نړۍ ته د خپلو مبلغینو لېږلو ته تیار شول او په خواشینۍ سره اسلامي خلافت د غرربیانو تر فشار لاندې دې مبلغینو او د هغو لېږدوونکو غربي ټولنو ته، په اسلامي هېوادونو کې د فعالیت اجازه ورکړه.

په داسې حال کې چې دا غربي مبلغې ټولنې، اسلامي هېوادونو ته د ساینسي علومو د زده کړې او انسان دوستانه مرستو په نامه ننوتل، اصلي موخه یې په اسلامي نړۍ کې د غربي ټولنیزو او سیاسي نظرونو، تدریس او راوړل وو.

د غرب مبلغي ډلې په یو بل پسې د مسلمان امت د لېوالتیا د نشتوالي له امله ناکامېدلې او تړل کېدې، خو دې قسم خوړلو دښمنانو له خپلو هڅو لاس وانه خیست او په دې وتوانېدل چې په بیروت کې یې د تبلیغ یو مرکز جوړ کړي او د مسلمانانو د

1. Shabir Ahmad; Roots of Nationalism in Muslim World; p 9

علاقې پیداکولو له پاره یې د دې ټولنې غړي د مسلمانانو له منځه وټاکل چې دې خلکو خپل دین پر دې مبلغینو پلورلی و او په غربي روڼ اندو بدل شوي وو.

د دې ټولنې تر بریالي کېدو وروسته، هغوی په شام او نورو اسلامي هېوادونو کې هم دا ډول ټولنې جوړې کړې او د خپلو نظرونو په تبلیغ او د رسالو او کتابونو په چاپ او خپرولو یې پیل وکړ. د ناپیلیون په واسطه د مصر نیول کېدل د اسلامي نړۍ د غربي کېدو پیل ګڼل کېږي. فرانسویانو پرته له دې چې په مصر کې یې نوی تعلیمي نصاب جوړ کړ، په دې هېواد کې یې د ملت پالنې تخم هم وشینده.

فرانسوي علماءوو هغه کتابونه چې په کې د مصر تاریخي ویاړونه، پخواني تمدنونه او د مصر د پخواني فرهنګ جلال په ډېر ویاړ سره یاد شوی او د مصر خلک یې ښه ښکارول، چاپ کړل چې له دې جملې څخه د Nationality په نامه د سیلوستر دیساسي کتاب او همدارنګه د یعقوب زووی کتاب چې له پلاره یهود او له موره ایټالوی و او په پاریس کې یې ژوند کاوه د الوطن المصري په نامه یادولی شو.

کله چې ابراهیم پادشاه د شام د اسلامي خلافت والي غوښتل د سوریې له پاره نوی تعلیمي نصاب جوړ کړي، د دې مبلغینو له پاره ښه موقع وه څو د نوي نصاب جوړوونکي تر اغېز لاندې راولي او د مصر نصاب چې د غربي نظرونو بیانوونکی و، سوریې ته ننه باسي او په سوریه کې هم ملتپالنه خپره کړي. په ترکیه کې هم یهودي علماوو په ترکي ژبه د ملت پالنې تشویقوونکي کتابونه ولیکل او چاپ یې کړل. په دې اړه یې د نردنار لوییس په نوم ستر پېژندل شوی مستشرق اعتراف کوي چې *اروپایي یهودیانو (خزران)، د ترکیې د ملت پالنې روح را ژوندی کړ*[1].

په اسلامي نړۍ کې د ملت پالنې په خپرېدو سره د ترکانو او عربو تر منځ نفرت جوړ شو چې په پای کې عربو د عثماني خلافت پر وړاندې بغاوت وکړ او د عثماني خلافت د له منځه تلو لامل شو. تر دې چې د مسلمانانو ترمنځ ورځ تر بلې ملتپالنه زیاتېده او د سایکس پیکات تر تړون وروسته د صهیونېستانو د توطیو له امله اسلامي نړۍ د عربو په جزیرې او منځني ختیځ کې د ملت پالنې په نظریو ولاړ نوي هېوادونه جوړ کړل او اسلامي نړۍ یې په کوچنیو ټوټو ووېشله.

ملتپالنه له پیدا کېدو سره سمبشریت ته د هېوادونو تر منځ جنګونه، لومړۍ او دویمه نړیواله جګړه جوړه کړې ده. او دې پدیدې د اسلامي امت یووالی چې د نړۍپالو صهیونیستانو پر وړاندې یوازنۍ ستر ګواښ ګڼل کېږي، له منځه یووړ او اسلامي امت

1. Bernard Lewis; Islam in History; p 132

يې د ملتپالو هېوادونو په نوم پر کوچنيو مړيو بدل کړل چې د نړۍ پالو له پاره يې ژوول او خوړل اسانه کړي دي.

د دې پديدې له امله افغان ملت، د پاکستان او ايران د ملت دښمن ګڼل کېږي او پاکستانيان له افغانستان پرته بنګلدېش هم خپل دښمن ګڼي. په داسې حال کې چې الله ﷻ ټولو مسلمانانو ته د يو بل د ورونو خطاب کړی دی، نو له دې املـه دا ناغوښـتل شوې دښمني له اسلام څخه د ناپوهۍ او ملتپالنې د پديدې له امله راغلـې ده او د دې هېوادونو سېکولر دولتونه له دين سره هېڅ اړيکه نه لري.

د خپل واک د ساتنې له پاره دې دښمنيو ته لمن وهي او د اسلام يو موټی امت يـې د افغان، پاکستان، بنګله دېش، ايران او نورو ملتونو په نـوم لـه يـو بـل سـره واچـول. تـر اوسه ډېری مسلمانان د دې دښمنيو پر لامل پوه نه دي او د خپلې نـاپوهۍ لـه املـه لـه الله ﷻ څخه د يو بل بربادي غواړي او د مرګ شعارونه له يـو بلـه قربـانوي چـې لـه دې حالت څخه د اسلام اصلي دښمنانو ګټه اخيستې او يوې ډلې تـه يـې د دوسـت او بلـې ته يې د دښمن په ويلو سره پر د دې محرکو پر طبله ډېره طبله ووهله چـې د دې طبلـې پـه ويجـاړوونکي غـږ سـره د اصـلي مسـلمانانو غوږونـه خـراب شـول او مـزدور او جاهـل مسلمانان ورته نڅېږي.

ملت پالنه د خلکو تر منځ ديني اړيکه ردوي او وطن ته د مطلقې وفادارۍ او د ملت پـالنې تـر بيـرغ لانـدې خلـک سـره ټولـوي چـې لـه سياسـت څخـه د دينـد بېلـوالي (سېکولريزم) سبب کېږي او همدارنګه د يوې نـوې عقيـدې پـه توګـه، د دينـي سياسـت بديل کېږي او د دين په څېر هم ګڼل کېږي چې ډاکتر علامه محمـد اقبـال لاهـوري دا مطلقه وفاداري په دې ډول بيان کړې ده: *اسلام له تخت (سياسي قدرت) سره نه بلکـې له خدای ﷻ سره وفاداري غواړي او پر ورانـدې يـې ملـت پالنـه دولـت-ملـت تـه مطلقـه وفاداري غواړي او دولت د يو بل خدای په توګه معرفي کوي*[1].

ملتپالنې تل د هېوادوالو د ګټو له پاره د هغو کسـانو د ګټـو پـر وړانـدې چـې د يـوې عقيدې او ځانګړې ايډيالوژۍ لرونکي دي کار کوي او سياستونه يې هـم پـر دې بنسـټ اېښودل کېږي چې په دې سياستونو کې د ښه او بد مسئله د ملت د ګټو پر وړانـدې نـه مطرح کېږي. د هېوادونو ترمنځ جګړو، سياسي اړيکو کې، د هېوادونو تر منځ جګړو کـې او داسې نورو مسئلو کې، د ملتونو خلک د ملت پالنې تر نامه لاندې، که څه هم حق له

1. Zeenath Kausar; A Philosophical Critique of Nationalism; Reflection of Iqbal; p 4

مقابل لوري سره وي، له خپل ملت څخه ملاتړ ته اړ ایستل کېږي او رقیب ملت، سره له دې چې مظلوم واقع کېږي، په شیطاني سترګه ورته کتل کېږي.

ملتپالان د خپل ملت د ښه ښودلو له پاره د ښه او بد فلسفه په نظر کې نه نیسي، تاریخ کې لاسوهنه کوي، پر پخوانیو افسانو او فرهنګونو که څه هم دروغ او یا باطل وي، ویاړ کوي او تر دې حده چې د خپلو پخوانیو ملي قهرمانانو او مشرانو عبادت کوي چې په دې اړه د نړۍ مشهور مؤرخ (ویل دورانټ) لیکي: *نولسمې پېړۍ ملتپالنه کشف کړه او تقریباً ټول مؤرخین یې مفسد کړل*[1].

ملتپالنه پر غرور، تکبر او شیطاني ښه والي ولاړه ده چې ملتپالان خپل ځان له نورو ملتونو ښه ګڼي او نورو ته د بربري په سترګه ګوري او د شیطان په څېر چې د تکبر له امله یې د خدای ﷻ له امر څخه سرغړونه وکړه د خدای ﷻ له امر څخه پر دې چې مومن خپل ورور وګڼي سرغړونه کوي. ملتپالنه یوه غیرمنطقي عقیده ده چې هربرټ لوثي داسې تعریف کړې ده: *ملتپالنه د ځینو اصولو پر بنسټ یوه داسې عقیده ده چې له ساینسي او فکري پلوه منطقي نه ګڼل کېږي او یوازې د خپلو پیروانو په ذهنونو کې اعتبار لري*[2]. همدارنګه البرت انیشټین وایي: *ملتپالنه د بشریت شرى (سرخکان) او د ماشومانو ناروغي ده*[3]. د ملتپالو نظریه اچوونکي د ملت د یو ملت د جوړولو لپاره په جغرافیايي، ژبنیو، قومي، سیاسي-اقتصادي، تاریخ او تمدن عواملو تکیه کوي. په داسې حال کې چې ډېرى مهال دا نظریه جوړوونکي خپله د ځان پر وړاندې راځي او په لږ دلیل سره ردېږي، که د یوه ملت د جوړېدو عامل جغرافیه وي، نو ولې یو مصرى د دې پر ځای چې ځان ته مصري ووایي، عربي نه وایي؟ که ژبه د یوه ملت د جوړېدو عامل وي نو ولې ځینې کردان، ترکي، عراقي، سوریايي او ایراني دي؟ که نژاد او قوم د یوه ملت د جوړېدو عامل وي نو ولې بلوڅ په ایران او پاکستان پورې تړلي دي؟ او که تاریخ او تمدن د یوه ملت د جوړېدو عامل وي د مسلمانانو تر ټولو لوی تاریخي او تمدني ویاړونه د اسلام له صعود څخه پیلېږي، نو ولې ټول مسلمانان یو ملت نه دي؟ د ملتپالنې یووالی لنډمهاله وي او تر هغې یو ملت متحد وي چې بهرنی ګواښ احساس کړي او کله چې هېواد د سولې او ثبات په حالت کې وي، بېلابېل قومونه او ژبې د واک د وېش په سر له یو بل سره سیالي کوي چې د ژبنیو او قومي تعصبونو د رامنځ ته کېدو لامل ګرځي.

1. Will Durant; The Mantions of Philosophy; p 239

2. Johann Herder; A Rehabilitation of Nationalism; p 85

3. Dryan Lawson; The Language f Space; p 164

رامنځ ته شوي تعصبونه د اسلامي نړۍ په ملتونو کې په پوره توګه محسوسېدای شي او مسلمانان پر دې له پوهېدو پرته چې ټول له يو پلار او مور څخه دي او الله ﷻ د اسلامي نظريې پر بنسټ يووالی غواړي. او پرته له دې چې وپوهېږي زموږ لارښود حضرت محمد مصطفی ﷺ تعصب بد ګڼلی دی او هغه کسان چې تعصب کوي د امت له کړۍ وتلي دي، له يو بل سره جګړه کوي او د دښمن ژرندې ته اوبه اچوي.

ملتپالنه له اسلام څخه يو پردی مفهوم دی؛ ځکه چې د قومي او کورنيو اړيکو پر بنسټ پر يووالی ټينګار کوي، په داسې حال کې چې اسلام خلک د الله ﷻ د يوګڼلو د عقيدې او د حضرت محمد ﷺ د پيغمبر ګڼلو پر محور يوځايوي. او په بل عبارت، اسلام ايډيالوژيکه اړيکه غواړي[1].

په اسلام کې رنګ، نژاد، قوم، طايفه، ژبه او جغرافيه مطرح نه دي او د غوره واي معيارونه د انسان په تقوا کې نغښتې دي. اسلام په هغه وخت کې چې ژبنۍ او نژادي تعصبونه په اوج کې و، د تورپوستي حبشي حضرت بلال رضي الله عنه په مؤذن کولو، له پيغمبر ﷺ سره د تورپوستي اسامه رضي الله عنه په خپلولو، د پيغمبر ﷺ په واسطه د سلمان فارسي په اهل بيت کولو او انصارو ته په فضليت ورکولو سره يې داسې امت جوړ کړ چې د دې امت د قومونو، ژبو او بېلابېلو ډلو تر منځ جوړې شوې مينې او اسلامي عقيدو ته مطلقې وفادارۍ د هغه وخت دوه سترې امپراتورۍ شرمنده او ړنګې کړې.

اقبال ملتپالنه تر دې عنوان لاندې چې ملت د وطن اساس نه دی، د ښکلي شعر په قالب کې په خپل کتاب (د بې خودۍ رموز) کې داسې نقد کړې:

| | |
|---|---|
| آن‌چنان قطع اخـــــوت کرده‌انـد | بـر وطـن تعمیـر ملــــــت کرده‌انـد |
| تا وطن را شمــع محفـل ســاختند | نــوع انســـان را قبـــــائل ســاختند |
| این شـجر جنت ز عالم بـرده اسـت | تلخــی پیکـــــــار بــار آورده اسـت |
| مردمی اندر جهـــان افسـانه شـد | آدمــی از آدمــی بیـــــــــگانه شــد |
| روح از تن رفت و هفت انـدام مانـد | آدمیـت گــــم شـد و اقــوام مانـد |
| مملکت را دیـن او معبـود ســاخت | فکـر او مـذموم را محمــود ســاخت |
| بوسه تا بر پـای ایـن معبــــود زد | نقـد حـق را بـر عیـار ســـــود زد |

1. Shabir Ahmad; Roots of Nationalism in Muslim World; p 23

## فرقه پالنه

یو بل تریخ او انکار نه منونکی حقیقت چې د اسلامي امت د دردوونکي حالت لامل ګڼل کېږي، د دې امت بې اتفاقي ده. په داسې حال کې چې د غرب عصري دجالي تمدن د پخوانۍ او ژورې کینې له مخې چې له اسلامي عقیدې او تمدن سره یې لري، له اسلامي نړۍ سره یې خپله سخته دښمني اعلان کړې ده او په خپلو هر ډول وسلو سره زموږ پر لور حمله کوي. مسلمانان د دې پر ځای چې د پخوا په څېر خپل داخلي اختلافات یوې خواته کېږدي او د یوموټې او متحد امت په چوکاټ کې د فرعونیانو د وخت پر وړاندې مبارزه وکړي، له بده مرغه په خپلو کې له یو بل سره په جګړه دي او د ملت، قوم، نژاد، ژبې او له ټولو مهمه مذهب، په نومونو سره د یو بل پر وژلو اسلامي امت کمزوری کوي او په غوښتل شوې یا ناغوښتل شوې توګه د دښمنانو له خوا استعمالیږي.

کله چې د ایران انقلاب بریالی شو، په داسې حال کې چې صهیونېستان په ښکاره توګه د دې انقلاب مخالف وو، خو په باطن کې ځکه خوښ وو چې په اسلامي نړۍ کې یې د مذهبي جګړې له پاره ښه وسله لاسته راوړه په ایران کې د نوي دولت په رامنځ ته کېدو سره د ایران او عربستان ملتپالو حکومتونو او د ملت پالو متحدینو ترمنځ یې سیالۍ پیل شوې او یادو سېکولرو حکومتونو د خپلو ګټو د تامین او د واک د ساتنې له پاره د هېوادونو په دننه او بهر کې له مذهب څخه د یوې وسیلې په توګه استفاده پیل کړه.

په داسې ډول چې ایران خپل ځان د اهل تشیع او د عربستان شاهي حکومت خپل ځان د اهل تسنن استازي وښودل او د امت تر منځ یې د نفرت په خپرولو پیل وکړ. اوس مهال چې اور سوځوونکې جګړې لړترلړه ډېری اسلامي ښارونه نیولي دي، پرته له دې چې د صهیونېستانو او د هغوی د هم ټرونو تر سخت بمبارد لاندې مسلمانان رنځېږي، د ایران او عربستان له خوا تمویل شوو ډلې له دې جګړو سره، د محمد ﷺ د امت په وژلو کې ستره مرسته کوي.

د الله ﷻ د حاکمیت د حق اخیستل بیا ملګرو ملتونو، او بیا دولتونو، او له اسلامي مختارو او وروستارو سره سېکولرو حکومتونو ته د هغه په سپارلو سره یې د شرک نه بښېدونکې ګناه ترسره کړه چې د الهي عذاب سبب ګرځي. او ډېری مسلمانان یې پرې ککړ کړي. او همدرانګه الله ﷻ فرقه پالنې ته د شرک په توګه کتلې دي او اوس ډېری مسلمانان په دې ګناه هم اخته دي. الله ﷻ فرمايي: *د الله ﷻ لوري ته رجوع کوونکي*

*واوسئ، له هغه ځخه ووېرېږئ، لمونځ قايم کړئ او لـه مشـرکانو ځخـه مـه اوسـئ، هغـو ځخه چې خپل دين يې ټوټه ټوټه کړ او ډلې ډلې شول او هره يوه ډله لـه هغـه ځـه (لـه دين ځخه) چې ورسره و پرې خوښ شول* [1].

الله ﷻ د دې سترې گناه (شرک) پر وړاندې د سخت عذاب وعده چې يو يې د يوې ډلې په واسطه د بلې تعذيبول دي، ورکړې ده. ځرنگه چې فرمـايي: *ووايـه، اللـه ﷻ دی چې تاسې له هغې (تياري) او بل هـر کـړاو ځخـه ژغـوري، بيـا تاسـې نـور لـه هغـه سـره شريکان گڼئ – ووايه، هغه پر دې قادر دی چې پر تاسې کوم عذاب له پاسـه يـا هـم لـه لاندې نازل کړي ، يا هم تاسې ډلې ډلې يو بل سره واچوي (او په تفرقـې مـو مـخ کـړي) او ستاسو د ځينو عذاب پر ځينو (نورو) وڅکـي. وگوره! ځنگه (خپل) ايتونـه پـه بېلابېلـو( لا رو) بيانوو، ښايي چې دوی وپوهېږي.* [2]

اسلامي امت په بېلابېلو ډلو وېشل شوی دی چـې د يهـودو او نصـاراوو پـه اړه د اللـه ﷻ له وينا سره سم، مسلمانان هم له دين ځخه له پوهې او برداشت سره خپل ځـان پـه حقه گڼي او نورې ټولې ډلې باطلې گڼي، ټول وايي يا زموږ لاره او يا هېڅ لاره.

د شخصي برداشت او تاويلاتو په اړه دا ډول ليدلوری، يو ډول تکبر دی چې د ډلو تر منځ د بې دينيو او تعصبونو سبب شـوی دی او د امـت يـووالی لـه منځـه وړي. اللـه ﷻ اسلامي امت ته د يو موټيتوب امر کړی دی او د ډلو رامنځ ته کول او پـه ډلـو ويـاړ کـول يې ستره گناه گڼلې ده. الله ﷻ فرمايي: *او ټول د خدای رسی کلکه ونيسـئ او تيتبـږئ مه او پر خپل ځان د خدای نعمت ياد کړئ، کله چې د (يو بل) دښمنان وئ، نو ستاسو په زړونو کې يې مينه واچوله ځو د هغه پـه لطـف سـره د يـو بـل ورونـه شـوئ، او د اور د کندې پر غاړه وئ چې تاسو يې له هغه ځايـه وژغـورلئ. اللـه ﷻ پـه دې ډول تاسـو تـه خپلې نښانې رونښانوي، تر ځو لا رموندونکي شئ.* [3] په يو بل ځای کې رسـول ﷺ تـه پـه

---

۱. سوره الروم؛ ۳۱ او ۳۲ آيتونه؛ مُنِيبِينَ إِلَيْهِ وَاتَّقُوهُ وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَلَا تَكُونُوا مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿۳۱﴾ مِنَ الَّذِينَ فَرَّقُوا دِينَهُمْ وَكَانُوا شِيَعًا كُلُّ حِزْبٍ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُونَ ﴿۳۲﴾

۲. سوره الانعام؛ ٦۴ او ٦۵ آيتونه؛ قُلِ اللّهُ يُنَجِّيكُم مِّنْهَا وَمِن كُلِّ كَرْبٍ ثُمَّ أَنتُمْ تُشْرِكُونَ ﴿٦٤﴾ قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلَى أَن يَبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِّن فَوْقِكُمْ أَوْ مِن تَحْتِ أَرْجُلِكُمْ أَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا وَيُذِيقَ بَعْضَكُم بَأْسَ بَعْضٍ انظُرْ كَيْفَ نُصَرِّفُ الآيَاتِ لَعَلَّهُمْ يَفْقَهُونَ ﴿٦٥﴾

۳. سوره آل عمران؛ ۱۰۳ آيات؛ وَاعْتَصِمُواْ بِحَبْلِ اللّهِ جَمِيعًا وَلاَ تَفَرَّقُواْ وَاذْكُرُواْ نِعْمَتَ اللّهِ عَلَيْكُمْ إِذْ كُنتُمْ أَعْدَاء فَأَلَّفَ بَيْنَ قُلُوبِكُمْ فَأَصْبَحْتُم بِنِعْمَتِهِ إِخْوَانًا وَكُنتُمْ عَلَىَ شَفَا حُفْرَةٍ مِّنَ النَّارِ فَأَنقَذَكُم مِّنْهَا كَذَلِكَ يُبَيِّنُ اللّهُ لَكُمْ آيَاتِهِ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ﴿۱۰۳﴾

خطاب کې وايي: *هغه کسان چې خپل دين يې ټوټه ټوټه کړ او ډلې ډلې شول، ته ورسره کار مه لره، خدای ﷻ ورسره کار لري، هغه يې له کار او کړنې څخه خبر وي*[1].

د ډلې پالنې ستونزه ورځ تر بلې په اسلامي نړۍ کې د پراختيا په حال کې ده او د ډلو ترمنځ بدبيني دې حد ته رسيدلې ده چې يو بل کافر بولي او د يو بل پر وړاندې جهاد اعلانوي. د کافر ګڼلو کار کومه تاريخي مخيينه نه لري، بلکې له اخرالزماني فتنو څخه ده چې له بده مرغه يې اوس مهال د اسلامي امت لمنه نيولې ده. هغه لومړنۍ ډله چې په اسلام کې يې تکفير وکړ، د خوارجو ډله وه چې حضرت محمد ﷺ ورته د ځمکې پر مخ د بدترينو موجوداتو خطاب وکړ.

په اوسني وخت کې له بده مرغه له ډېرو مسلمانانو سره داسې ټاپه په لاس کې ده چې په کې د کافر کلمه حک (ليکل) شوې ده او هر هغه مسلمان چې د دوی د نظرونو مخالف عمل کوي او يا هم نظر ورکوي، د هغې ټاپې پر مټ چې په لاس کې يې لري، په تندي يې د کفر کلمه وهي او کافر يې بولي. هغه ستر علماء او فقهاء چې مذاهب او فرقې ورپورې تړل کېږي، هېڅ کله يې يو بل کافر نه دي ګڼلي او اسلامي امت يې د خپلو اجتهاداتو منلو ته مجبور کړی نه دی، بلکې تر هر اجتهاد وروسته يې ويلي دي چې (والله اعلم) يا الله ﷻ ښه پوهېږي او هېڅ کله يې اسلامي امت ډله پالنې ته نه دی هڅولی.

د اسلام په څوارلس سوه کلن تاريخ کې ټولې اسلامي ډلې په وروګلوۍ سره د حج مراسم اداء کوي او هېڅ کله کومې فرقې، ډلې او مذهب د امت د اجماع په واسطه دا الهي فريضه منع نه کړه، د الله ﷻ کور ته د ننوتلو حق يوازې مسلمانان لري، نو که کومه ډله، فرقه او يا مذهب کافر وو نو بايد د خدای ﷻ کور ته يې د ورتګ اجازه نلرله. اوس چې امت په ستر انحطاط کې دی او هره خوا جهالت نيولې، موږ ته لازمه نه ده څو د پخوانيو علماوو په مخالفت چې له موږ څخه په لږ انحطاط کې وو، د يو بل په کافر کولو لاس پورې کړو او د اسلامي امت ترمنځ د اختلافاتو سبب شو. حضرت محمد ﷺ فرمايلي دي: *لکه څنګه چې بني اسراييل په يو اويا ډلو ووېشل شول، "زما امت" به هم په يو اويا ډلو ووېشل شي. ټول به په دوزخ کې وي پرته له يوې ډلې*[2]. د دې حديث شريف په اړه بېلابېل نظرونه موجود دي، ډېری علماء په دې عقيده دي چې د اور له اهلو موخه، دايمي اور نه دی؛ بلکې هغه مسلمانان دي چې اصلي لاره کې

---

١. سوره الانعام؛ آيه ١٥٩؛ إِنَّ الَّذِينَ فَرَّقُواْ دِينَهُمْ وَكَانُواْ شِيَعًا لَّسْتَ مِنْهُمْ فِي شَيْءٍ إِنَّمَا أَمْرُهُمْ إِلَى اللّهِ ثُمَّ يُنَبِّئُهُم بِمَا كَانُواْ يَفْعَلُونَ ﴿١٥٩﴾

٢. سنن ترمذي، ٢٦٤١ حديث

تېروتي دي، د دې کار سزا به ويني؛ خو په دې کار سره د اسلام له کړۍ څخه نه دي وتلي، ځکه چې حضرت محمد ﷺ ورته (زما امت) ويلی دی. امام البيهقي رحمه الله په دې اړه وايي: د دې حديث مفهوم دا *ښيي چې هغوی به د يوې ټاکلې مودې له پاره په اور کې سزا ويني نه د تل له پاره؛ او دليل يې دا دی، چې حضرت محمد ﷺ فرمايلي دي چې زما امت به ډله ډله شي، نو له دې امله سره له دې چې ټول به يې ډله ډله کېږي حضرت محمد ﷺ خپل امت ګڼلی دی*[1]. همدارنګه الخطابي وايي: د حضرت محمد ﷺ *وينا چې زما امت به په دري اويا ډلو وېشل کېږي ښکاره کوي چې دا ډلې به د امت له کړۍ نه وځي، ځکه چې زما د امت خطاب ورته شوی دی*[2]. د رسول الله ﷺ صحابه کرام د تکفير او مسلمانانو ته د کافر ويلو په برخه کې به يې ډېر احتياط کاوه، له جابر بن عبدالله انصاري رضي الله عنه څخه پوښتنه وشوه چې داسې جا ته دې د کافر خطاب کړی چې د مکې (د مسلمانانو قبلې) په لور لمونځ کوي؟ ويې ويل: نه! پوښتنه ترې وشوه چې ايا هغوی ته دې مشرک ويلي؟ ويې ويل معاذ بالله، يعنې الله سبحانه وتعالی ته پناه وروړم[3]. حضرت محمد ﷺ فرمايلي: درې شيان د ايمان ريښې دي:

*۱- د هغه چا له وژلو ځان ژغورل چې لا اله الی الله وايي.*

*۲- چاته کافر او نامسلمان نه ويل سره له دې چې هر ډول ګناه هم ترسره کړي.*

*۳- او غير مسلمان نه ويل چا ته د هر عمل پر وړاندې يې چې کوي يې*[4]. په يو بل روايت کې راغلي دي چې يو کس عبيدالله بن عمر ته وويل: *زه يو ګاونډی لرم چې راته مشرک وايي او هغه ځواب ورکړ: لا اله الا الله ووايه او هغه دروغجن ثابتېږي*[5].

نن ورځ ډېرې ډلپالنې سياسي اړخ لري او ډېری مسلمانان پرته له دې چې د تکفير د ګواښونو او په اسلام کې د هغې د مخيينې په اړه پوره معلومات ولري، يو بل کافر بولي، نو د عربستان، ايران او صهيونېستانو ژرندو ته اوبه جوړېږي.

---

1. Surkheel Sharif. The Seventy Three Sects. P. 7

۲. همدا سرچينه، ۸ مخ

۳. المعجم الاوسط للطبراني؛ باب الميم من اسمه محمد؛ ۷۵۴۸

٤. سنن ابوداود؛ ۲۱۷۰ حديث

٥. امام ابن اساکر؛ تبيين کذب المفتری؛ ۳۷۳ مخ

## سیاسي تعصبونه

تعصب د اعتقاد یو ډول دی چې یو انسان یا یوه ډله خپل ځان لـه نـورو انسـانانو یـا ډلو څخه ښه ګڼي. هغه عناصر چې له مخې یې انسانان له نورو ځانونه ښه ګڼي په کې نسل، نژاد، ژبه، د پوستکي رنګ، مذهب، نړیوالتوب، استعداد، ملت، فرهنـګ، جغرافیـه او سیاسي ایډیالوژي ده چې د اسلام سپېڅلي دین په دې هر ډول تعصب او ښـه والـي د بطلان خط راښکلی دی او ټول انسانان یې له یوه مور او پلار څخـه او مسـاوي ګڼلـي دي. تر دې چې الله ﷻ حضرت محمد مصطفی ﷺ ته فرمایي: *ووایه! پرته له دې څـه نه دي چې زه هم ستاسې په څېر یو انسان یم چې ماته وحیـه کېـږي*[1]، نـو لـه دې املـه مسلمانان او مؤمنین باید له هر ډول غوره ګڼلو څخه ځان وژغوري، خـو لـه بـده مرغـه د غرب په راتګ سره او د غرب د مدرن تمدن د نظرونو په خپرولو سره، مسلمانان داسـې د غربي فکرونو تر یرغل لاندې راغلل چې نن ورځ یې د اسلام له خـوا حرامـو او منـع شـوو غوره ګڼلو ته لاس پورې کړی. او تر دې چې د نن ورځې مسلماناند تر ټولو ښـه نظـام او قاوانینو (اسلام) په لرلو سره سره، سیاسي غوره ګڼلو ته لاس پورې کوي.

مسلمان ځوانان د علم د ترلاسه کولو له پاره له خپلو کورونو وځـي، خـو لـه دې وتلـو سره سم په علمـي مرکزونـو کـې د دې پـر ځـای چـې ورتـه اسـلامي سیاسـي، ټـولنیز او اقتصادي نظام تدریس شي، د لیبرالیزم، سوسیالیزم، انارشیزم، فاشیزم او نـورو پـه څېـر بشري نظامونو په ویلو مجبورېږي او دا چې لـه اسـلامي نظـامونو څخـه بـې خبـره پـاتې کېږي، یا دا چې له پورته نظامونو څخه یو ځان ته د خپلې ایډیالوژۍ په توګه ټاکي او د غیر اسلامي ایډیالوژۍ په لرلو سره د هغې له مخې په سیاسي تعصب لاس پـورې کـوي او یا هم غواړي د اسلام پوره دین ته د خپلې ایډیالوژۍ په چوکاټ کـې ځـای ورکـړي او هغه توجیه کړي.

د خپل باطل سیاسي نظام په چوکاټ کې د غرب داخلېدل د ګونـد او ګونـد پـالنې په نوم یوه بله ډالۍ له ځان سره راوړي چـې د تفرقـې یـو بـل ډول دی او لـه بـده مرغـه مسلمانان د ګوند او ګوندپالنې دا پدیده چې له اتحاد څخـه د لرېـوالي او تفرقـې لامـل

---

۱. سوره الکهف؛ ۱۱۰ آیت؛ قُلْ إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُوحَى إِلَيَّ أَنَّمَا إِلَهُكُمْ إِلَهٌ وَاحِدٌ فَمَن كَانَ يَرْجُو لِقَاء رَبِّهِ فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَالِحًا وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهِ أَحَدًا ﴿۱۱۰﴾ ژباړه: اې محمده ورته ووایه: زه خو ستاسې په څېر یو انسان یم. ماته وحیې کیږي چې ستاسې خدای همدا یو خدای دی. نو څوک چې له خپل پروردګار سره د یو ځای کېدو په هیله وي، هغه ته په کار ده چې ښه عمل وکړي او په بندګۍ کې له خپل رب سره بل څوک شریک نکړي.

کېږي. د پرمختګ او روڼ اندي. يو ډول يـې ګڼـي او د دې پديـدو پـه راخپلولـو سـره پـه کوچنيو ډلو وېشل شوي دي او وياړ پرې کوي.

ګوند پالنه د اسلامي امت تر منځ د يووالي د رامنځ ته کېدو مخه نيسي، ځکـه چـې له غربي ايډيالوژيو سره ګوندونه مسلمانان د غير اسلامي ايډيالوژيو منلـو تـه هڅـوي او ګوندونه تر اسلامي شعار لاندې او له اسلامي مختاړو او وروستاړو سره هر يو خپـل ځـان د اسلام استازي پېژني او نور ګوندونه باطل ګڼي.

ګوندونه له خپلو غړو څخه د حزب منشور (اساسنامې) ته د وفاداری غوښـتنه کـوي او سياسي موخو ته د رسېدو له پاره دا اساسنامې د اسلام په چوکاټ کې توجېه کوي او په ځينو ځايونو کـې خپلـو سياسـي موخـو تـه د رسـېدو لـه پـاره د اسـلام د بنسـټونو پـر وړاندې مخالف عمل کوي او ان د خپلو مالي او سياسي ملاترو له پـاره د دښـمنانو غېـږ ته ځان اچوي.

په اسلامي نړۍ کې د ګوند پالنې تاريخ دا راښـيي چـې ګوندونـه سـره لـه دې چـې خپلې کړنې د اسلام پـه لاره کـې د مبـارزې پـه نامـه ښـکاره کـوي هـېڅ مرسـته يـې لـه اسلامي امت سره نه ده کړې بلکې د اسلامي امت تر منځ په بين الحزبـي جګـړو کـې د وژنو او اختلافونو د رامنځ ته کېدو لامل شوي دي.

کله چې د اتحاد جماهېر شوروي صهيونېستي قواوو، د افغانستان اسلامي هېواد تر وحشيانه يرغل لانـدې ونيـوه، باغيرتـه مسـلمانانو د دې غيـر انسـاني تجـاوز پـر وړانـدې مبارزه وکړه، خو له بده مرغه چې د اسلام د مکتـب پـرخلاف پـه ګونـدونو ووېشـل شـول چې د ښې خوا صهيونېستانو (لېبرال) ته له دې جهاد څخه د بدې ګټـې اخيسـتنې لـه پاره يې چانس برابر کړ.

د کيڼ لـوري صهيونېسـتانو (کمونېسـتانو) تـر وتلـو وروسـته پـه خپلـو کـې د واک د ترلاسه کولو له پاره پرخلاف شول او د صهيونېستي وسلو په واسطه يـې پـه دې اسـلامي هېواد کـې د بـې ګنـاه وګـړو او يـو بـل پـر وژلـو پيـل وکـړ او د دې لامـل شـو چـې هغـه صهيونېستان چې افغانانو له دې خاورې شړلي وو دويم ځليورته د ښه راغلاست په ويلـو سره بېرته دا ځمکه په لاس ورکړي.

همدارنګه په شام کې، سره له دې چې له څلوېښتو د ډېـرو صهيونېسـتي هېوادونـو، مسلمانان په بې رحمۍ سره بمباروي، تلفات يې د اسلامي ګوندونو له وژنو څخه لږ دي چې په خپل منځ کې سره جنګېږي ، نو لـه تجربـې تـاريخ څخـه پـر دې پـوهېږو چـې د مسلمانانو ناپوهي د خارجيانو د حملو په پرتلـه د دې امـت د سـتونزمن حالـت يـو لـوی لامل دی.

## غرب ځپنه او ناپوهي

*یقیناً د وروستي زمانې یوه نښه دا ده چې پوهه له منځه ځي او ناپوهي خپرېږي*[1].
اوس داسې وخت دی چې ناپوهي علم ګڼل کېږي. د بشر په تاریخ کې د لومړي ځل له پاره علم په دوو رسمي او غیر رسمي ډلو وېشل شوی دی. رسمي علم هغه دی چې په دولتي مکتبونو، پوهنتونونو او رسنیو کې تدریسېږي او د داسې نصابونو له لارې لاسته راځي چې د غربي مرکزونو او په ځانګړې توګه د ټولیزو ټولنو په واسطه تایید شوی وي.

دا رسمي زده کړې محصلینو او متعلمینو ته دا ورښیي څو هره ویل شوې کلمه او جمله پرته له دې چې سموالی یې وپوښتي، د سر په خوځولو سره یې تایید کړي. رسمي علم چې د فرانسې تر انقلاب وروسته یې شهرت موند، د دې علم د تولیدونکي تمدن په څېر ماده پالی و او په کې له علمیت څخه موخه ګټه غوښتنه وه چې حق او باطل په کې ځای نه لاره.

دا حق هغه دی چې په کې شخصي ګټه نغښتې وي؛ خو واقعي (غیر رسمي) علم ګټه غوښتونکی نه دی بلکې وروستۍ موخه یې د حق او باطل بېل والی دی او حق ته د رسېدو له پاره سره له دې چې ټول دموکراتیک او ټولیز مرکزونه یې مخالف وي او نیوکه پرې کوي، بیا هم د حق لاره نه پرېږدي.

ډېری خلک اوس مهال د مادي او دنیا د غوره ګڼلو له امله په رسمي علم پسې دي او یوازې هغه کسان په حق او باطل پسې دي چې په خپرې سوې بې عدالتۍ سره چې ملګري یې ازاروي، دې کار سم غمجن کړی او غواړي حق ته د رسېدو او د حق پیغام په رسولو سره خپل دا غم له منځه وېسي. هغه کسان چې د حق او باطل تر منځ د توپیر غوښتونکي دي، هغه کسان دي دی چې د بې عدالتۍ پر وړاندې مقاومت ښیي، خو د رسمي علم د شاګردانو او علماوو له خوا، یعنې د هغو کسانو له خوا چې د علمیت منهج یې غربي عالمان چې د خپلو تیوریو لپاره دلیل نه لري، د هغو رسنیو له خوا چې د دروغو پرپاګندو تر ټولو لوی مرکزونه دي، د هغو علمي مرکزونه له خوا چې په ړانده ډول غربي باطل الفاظ تکراروي او د هغو جعلي ستورو له خوا چې د غربي مرکزونو او رسنیو له خوا ورته کاذب شهرت ورکړل شوی دی، تل تر یرغل یا تېري لاندې دي او د زوړ فکري، غیر متمدن او ان لېوني او احمق په څېر لقبونو سره یې ورته خطاب کړی دی.

---

١. صحیح مسلم، ۲٦٧١ حدیث

داسې ده چې هغه محصلین چې غواړي حق او باطل بېل کړي ورځ تر بلې کمېږي او ټول په یو داسې جهالتي کاروان کې شامل دي چې نوم یې علم دی. اوسني وخت ته د معلوماتو وخت وایي خو یو مشهور غربي متل دی چې وایي: د معلوماتو په زمانه کې تر ټولو د معلوماتو ستره وسله دروغ ده، له دې امله د لږ شمېر حق پالو د کنټرول له پاره د هغو کسانو له خوا چې د حق موندنې له پاره یې نقاب وهلی، د دروغو معلومات خپرېږي چې د علمي اغتشاش د رامنځ ته کېدو سبب شوی دی. د ولسواکۍ اندېښنه د اوسني وخت د علمي پرېشانۍ تر ټولو ستره بېلګه ده، چې حقیقت ته یې د رسېدو له پاره باید زرګونه ضد او نقیضې نظریې مطالعه شي.

یوازې په دې اړه د اسلام د موقف د موندنې له پاره زرګونه اسلامي نظریې او فتواوې شته چې یو بل نفي کوي، د بېلګې په توګه یو مفتي وایي رایه ورکول له اسلامي بیعت سره برابر دی، یو بل اسلام د ولسواکۍ پر قالب کې تعریفوي، ځینې ورته عام او تام مشروعیت ورکوي او ډېری یې نفي کوي چې په دې منځ کې لوستونکي داسې په علمي اغتشاش کې ورکېږي چې تر کلونو مطالعې او څېړنې وروسته بیا هم په دې اړه قطعي پرېکړې ته رسېدی نشي.

علمي اغتشاش دین ته هم راننوتی دی او د ستر اسلامي جهالت لامل شوی دی. *۱۲۴۰۰۰ صحابه کرام له رسول الله ﷺ سره ناست او له هغه ﷺ څخه یې زده کړه کوله، خو ډېر لږ یې په دیني مسایلو کې د فتوا په ورکولو قادر وو او محمد ﷺ بهترین نسل صحابه او تر هغې دوه نسله وروسته (تابعین او تبع تابعین) ګڼلي دي*[1].

هغه ښاغلي سره له دې چې مستقیماً یې د رسول الله ﷺ په واسطه ښوونه او روزنه ترلاسه کړې وه، په اسلامي مسایلو کې یې د فتوا له صادرولو یا ډډه کوله او یا یې هم په ډېر احتیاط سره خپل نظر ښکاره کاوه، خو اوس چې اسلامي نړۍ ټوله انحطاط نیولې او هره نوې پېښه یې له ځان سره زرګونه فتنې لري او ډېر لږ به داسې مسلمانان ومومو چې په یو نه یو ډول په فتنو کې ښکېل نه وي.

په هر ښار او کلي کې زرګونه مفتیان دي چې د دوه یا درې کتابونو په ویلو سره، پرته له دې چې قران عظیم الشان یې په سمه توګه مطالعه او درک کړی وي او پرته له دې چې د قران کریم د ایتونو شاه نزول یې مطالعه کړی وي او د الله ﷻ له وېرې پرته فتواوې صادروي چې په مسلمان امت کې د فتنو سبب شوی دی. دین اوس د څو

1. Shaykh Muhammad hisham Kabbani; The Approach of Armageddon?; p 105

ناپوهو ځوانانو لاسته ورغلی چې د انټرنېټي پاڼو تر شا فتوا صادروي او د مسلمانانو په تکفیر لاس پورې کوي.

دا ځوانان غواړي دین ته په خپله خوښه خدمت وکړي، دوی د اسلامي امت تر منځ په ناسم ډول د اختلافونو سبب شوي دي او ان له اسلام څخه د ناسم درک له امله د اسلام د مقدس دین په نسبت د بې دینیو سبب شوي دي، څو ناسمې فتواوې د دې سبب شوې چې د اسلامي علماوو باور کمرنګی کړي د غرب ځپلو ناسمو کارپوهانو په څو کلمو انګلیسي او د څو غربي علماوو په سرچینه کولو، په ځانګړې توګه په مستشرقینو سره ځان ته عالم وایي او په اسلامي ټولنو کې د عالم اعتبار خپلوي چې همدا ناپوهه غرب ځپلي په اسلامي امت کې یوه ستره ستونزه ګڼل کېږي.

که یو وخت و چې د قرانکریم د یو ایت یا په عربي یوه منقول خبر په اورېدو سره مو خولې تړل کېدې او هر مخالف په خپل ځای کېناست، خو اوس په هر نقل کې د فلاني غربي یوه جمله، زموږ خولې بندوي او په دې اړه کار دومره رسوایۍ ته وتلی چې د غرب ستور پېژندونکو او فال کتونکو وړاندوېینه په یو وار ټوله نړۍ په جنب او جوش راوړي او په وېره کې یې اچوي. اوس نو نازل شوې وحیې له اسماني کتابونو تللې؛ رویټر او یونایټېډ پرېس...، دا سترې کمپنۍ د جعلي او غیر جعلي خبرونو جوړوونکي![1]. اوس د هغو کسانو عالم ګڼل کېږي چې د غربیانو له نظره روڼ اندی وي، د غربیانو په څېر واغوندي،ووايي او ښکاره شي. دا غرب ځپلي روڼ اندي هغه څوک دي چې لاس یې سترګو ته نیولی او د غرب ویناوې یې خپل کار ګرځولی دی، ټولې نړۍ ته د غرب له عینکو ګوري، له خپل فرهنګ، تاریخ او تمدن څخه بې خبره دي، د غربي رسنیو تر ټولو وفاداره لیدونکي دي، د هرڅه له پاره ځواب لري، د نظر خاوندان دي او د کال د نوي ماډل موټر په راتلو او له خپلو قېمتي درېشیو سره د فقیرو له طبقې دفاع کوي.

دوه ډوله غرب ځپلي چې اسلامي نړۍ ډېره ګواښوي، یو یې هغه غرب ځپلي دي چې د غربي ارزښتونو د تبلیغ له پاره یې پیسې اخیستې دي او خپل دین او فرهنګ یې خرڅ کړی دی او بل هغه غرب ځپلي چې څو ورځې یې غرب ته د علمي بورسونو او رسمي او شخصي سفرونو له لارې سفر کړی دی او یا یې هم د غرب عصري تمدن نظر او فکر لرونکو رسنیو له لارې، پرته له دې چې د عصري تمدن له تیاره باطن څخه ژور درک ولري د غرب خبرې کول یې خپله دنده ګرځولې ده او په ناغوښتل شوې توګه د

---

[1]. جلال آل احمد؛ غرب ځپنه؛ ۱۲۶ مخ

غربیانو وړیا وسله ګرځي. په دې اړه د انګلېسانو پخوانی لومړی وزیر توني بلیر وایي: *موږ باید هغه حکومتونه او خلک چې د پاینښت اجازه ورکوو، متقاعد کړو چې زموږ لاره وروستۍ ده. موږ غواړو چې د مسلمانانو د پوهنتونو محصلین او د ښوونځیو ماشومان وړاندې له دې چې ان پوه شي، د ارزښتونو جګړه پیل شوې ده زموږ پلوي شي. موږ غواړو هغوی مغشوش او مست کړو*[1]. غرب ځپلتوب او غرب ځپنه د دې سبب شوې ده څو مسلمانان د غرب وفاداره مقلدین شي او د اسلام اصیل ارزښتونه هېر کړي. په هر اسلامي ښار کې په قدم وهلو سره د غرب ځپني ستونزه په ښکاره توګه لیدی شو.

په هر ښاري ګرځېدو سره مسلمان هلک مومې وروځې یې جوړې شوې وي، وېښتان یې په عجیبو رنګونو سره سیخ سیخ شوې وي او اسمان ته اشاره لري، په جامو کې یې د یو غربي هنري او ورزشي ستوری وي تصویر وي او ښځو ته ورته خوی یې ښکاروي چې پوهه یې د ټولنیزو شبکو له دایرې څخه لوړه نه ده تللې. له غربي ژوندانه څخه په فردي او ډله ییز ډول تقلید کول د مسلمانانو په واسطه د اسلامي تمدن د ژوندي کولو له پاره یو انکار نه منونکی او ستر ګواښ ګڼل کېږي. په داسې حال کې چې زموږ ځوانان په غربي غیر محجو جامو سمبال وي او خپل ځان روڼ اندی ښیي، زموږ د فهنګ سنتي او محجبې جامې په کورنیو او بهرنیو موزیمونو کې بند دي او یوازې په ځانګړو پروګرامونو کې ننداري ته وړاندې کېږي چې دا جاهلانه تقلید د حضرت محمد ﷺ د یوې وړاندوېینې رښتیا کېدل دي چې فرمایي: *په یقین سره تاسو به له خپل ځان څخه د پخوانیو قومونو لارې ذرع په ذرع (اېنچ پر اېنچ) او وجب په وجب عملي کړئ، داسې چې که هغوی د مار په کوم سوري کې ننوتل، تاسو به هم هغوی تعقیب کړئ، صحابه وو وپوښتل: اې د الله ﷻ رسوله! ایا ستاسې موخه یهود او نصارا دي؟ انحضرت ﷺ ځواب ورکړ: نو څوک!*[2]

## داسلام او القابو محاصره

د عثماني خلافت تر ړوټه کېدو وروسته، اسلامي نړۍ د اسلام د دښمنانو له خوا داسې محاصره شوه چې د هرې ورځې په تېرېدو سره د دې محاصرې کړۍ راتنګېدله. نن ورځ مسلمانان له دښمنانو سره په نظامي، اقتصادي، علمي او هر ډول قدرت سره نه شي پرتله کېدای او په داسې حال کې چې تر بل هر وخته اوس د اسلامي تمدن

---

1. Abdul Ghafur Muslim; Survival of the Islamic Ummah; p 12

۲. صحیح مسلم؛ ۴۸۲۲ حدیث

جوړوېد ته اړتیا ده، مسلمانان په داسې انحطاط کې دي چې د غرب په ویاندویانو بدل شوي دي او د غربیانو په څېر د حق غږ د بنسټ پالو، تاوتریخپالو او تروریستانو په نوم راټیټوي.

صهیونېستان د اسلام تر شعار لاندې د خو ډلو په جوړولو سره د هغې نرمې قوې په واسطه چې په لاس کې یې لري، پر اسلام یې په داسې نرمو حملو پیل وکړ چې اوس که یو باز کومه کوتره ښکار کړي، نو د صهیونېستي رسنیو په سرلیکونو کې به وي چې (یوې مسلمانې تروریستې الوتکې، یوه بله بې ګناه مرغۍ د یو تروریستي عمل په ترځ کې ووژله) او له بده مرغه مسلمانانو هم د رسنیو پر قدم پښه ایښې او له تحقیق پرته یې د دا ډول سرلیکونو په منلو سره، له صهیونېستي پلانونو سره مرسته کوي، خو که دې شاهین په ناڅاپي توګه یو یهودي او یا مسیحي له اوبو را وویست، خامخا به یې کومه روحي او یا رواني ناروغي لرله او هېڅ تروریستي اړیکه نه ګڼل کېږي؛ نو واقعاً تروریزم څه دی؟ او تروریست څوک دی؟

د تروریزم د تعریف له پاره سیاسي او علمي هڅې او له جرمي تاوتریخوالي څخه یې بېلوالی وروستۍ پایلې ته نه دي رسېدلي خو هغه تعریف چې ډېری ورسره هوکړه لري، تروریزم د سیاسي موخو له پاره له تاوتریخوالي څخه کار اخیستل ګڼي چې دا تعریف د جګړې له تعریف سره ډېر ورته والي لري. تروریزم او جګړه په خپل څرنګوالي کې ډېر توپیر سره نه لري او تل په جنګي پروپاګندو کې د وېرې د رامنځ ته کولو له وسلې څخه کار اخیستل کېږي.

چنګېزخان به د هر ښار تر نیولو وړاندې، د هغه ښار وګړي د پروپاګندو په رامنځ ته کولو او وسیلو سره وېرول څو د پر نفس باور یې را کم کړي او د مقاومت قدرت یې له منځه یوسي، نو له دې امله تروریزم له کړنې څخه تر ډېره پورې رواني حالت دی. د *تروریزم تاریخ منځنۍ ختیځ ته راګرځي، یعنې کله چې د فدایانو (Zealots) په نوم د یهودیانو یوې ډلې د رومي قواوو پر وړاندې پر سېستماتیک ترور لاس پورې کړ، نور یهودیان چې له نظر سره یې پلوي نه وو، ووژل شول او د روم حکومتي مامورین یې ووژل*[1].

په معاصر تاریخ کې د لومړي ځل له پاره، د تروریزم او ترور کلمه د فرانسې په انقلاب کې د چنګبز (Jacobins) د ډلې له پاره وکارول شوه، یعنې کله چې دې ډلې د

1. University of California Press; Edited by Gerard Chaliand and Arnaud Blin; Translated by Edward Schneider, Kathryn Pulver, and Jesse Browner; The History of Terrorism: From Antiquity to All Qaeda; pp 55 & 57

سېکولرېزم د لاسته راوړلو له پاره تر لس گونو زرو انسانانو زيات ووژل او بيا کله چې کډوالو يهوديانو غوښتل په فلسطين کې د اسراييلو يهودي دولت جوړ کړي، د مسلمانانو پر وړاندې يې په تروربستي کړنو لاس پورې کړ او په هغو ځايونو کې چې د انگليس دولت د يهوديانو په اشاره نه گډېده، د انگلېسانو پر وړاندې يې ترې کار واخيست، خو اوس مهال تروريزم د صهيونېستانو له پاره په اسلامي نړۍ کې د غير عادلانه جگړو د توجيه کولو په موخه په عامه اذهانو کې د وېرې د رامنځ ته کولو مهمه وسيله ده.

صهيونېستانو د خپلو ظلمونو د توجېه کولو او د دې ظلمونو پر وړاندې د مسلمانانو د مقاومت د له منځه وړلو له پاره ځو اسلامي ډلې جوړ کړې او د *دروغجنو بيرغونو*[1] په ځو حملو سره او د رسنيو په واسطه د دې حملو د لوی ښودنې له لارې يې د تروريزم پر وړاندې د جگړې په نامه په ظاهره مشروعي دليل لاسته راوړ. چې د دې په واسطه د عدالت غوښتنې هر غږ د اسلامي تروربستانو په نامه (چې په خپله يې دا نوم ځان ته ورکړی دی) غلې کوي. د امريکا د بهرنيو چارو پخوانی وزير، ستر ديپلومات، جرمني الاصله يهود او هغه ځوک چې نړيوال حکومت ته کار کوي، هنري کسنجر وايي: *موږ په امريکا کې هغه ډله خلکو ته چې نړيوال سېستم نه مني، تروربستان وايو*[2]. همدارنگه جورج بوش د سپټمبر له يوولسمې پېښې وروسته نړيوالو ته وويل: *يا به له موږ سره (زموږ ملاتړي) او يا به له تروربستانو سره ياست*[3].

نو د صهيونېستانو له نظره د تروربزم تعريف ډېر واضح او ښکاره دی، هر هغه ډله او خلک چې له صهيونېستي اجنډاوو سره مخالفت وښيي، تروربست ورته ويل کېږي، لکه د فلسطين مجاهدين چې د اسراييلو د ټولو غاصبانو له بې عدالتيو سره سره ورته د تروربست خطاب وشو.

---

۱. د درواغجنو بيرغونو عمليات، هغو عملياتو ته ويل کيږي چې د نظامي، شبه نظامي، معلوماتي يا سيسي ادارو له لوري ترسره کيږي چې داسې فکر رامنځته کړي چې دا عمليات نورو هيوادونو ترسره کړيدي. د بيلگې په توگه د لوري قواوې د يوه کلي د اوسيدونکو د قتل عام کولو او حملې او بيا وروسته په دې وژنو سره د بل لوري د تورن کولو لپاره د مقلبل لوري له نظامي لباس او بيرغ څخه په جگړه کې له دروغجنو بيرغونو څخه گټل کيږي. د دروغجنو بيرغونو د علماتو له ترسره کولو څخه موخه د اصلي مرتکبينو د هويت پټ ساتنه او يا هم د مقابل لوري د بدنام کولو او په هغوئ د حملې لپاره د ترسره کولو يوه بهانه ده.

2. Waldemar De Gregori; “Jews” “Non-Jewish Jews” and a Manifesto for Planetary Governance; p 73

3. South Asian Studies; A Research Journal of South Asian Studies; Vol 24; No 2; July-December, 2009; p 177

هغه مسلمانان چې د صهیونېستي پلانونو پر وړاندې د علم او فکر له لارې مبارزه کوي، د بنسټ پالو په څېر لقبونو باندې څنډو ته کېږي، په داسې حال کې چې هر واقعي مسلمان بنسټ پالی دی، ځکه چې د بنسټ پالنې مفهوم دا دی چې د اسلام په بنسټیزو اساساتو عمل وشي او هغه په خپل ژوندانه کې عملي شي.

هر هغه مسلمان چې اوس یې هم د ایمان نور په زړه کې ځلېږي او په خپل ظاهري او قلبي لید سره ټولې بې عدالتۍویني، باید د حل د لارې په فکر کې شي او د الله ﷻ له خوا ورته د ورکړل شوې دنده چې د الله ﷻ دین ته کار کول ده ترسره کړي.

## حل لاره

اوس مهال د مسلمانانو نفوس تر ۱٫٦ بیلیونو تنو زیات دی، یعنې د نړۍ هر څلورم وګړی مسلمان دی، خو بیا هم دا ستره بشري کتله په پرلپسې توګه سپکه ده او تر ظلم لاندې نیول شوې ده، په نړیوال نظم کې مهمه اغېزه نه لري او په پای کې په ډېر بده توګه په ټوله نړۍ کې وژل کېږي چې د هر واقعي مسلمان زړه دردوي او کینې یې ان د چاودېدو په حال کې دي.

په دې حالت کې مسلمانان د اوسني بې انصافانه نړیوال نظم سره غاړې ته شوي دي او په یوه فرد پاله توګه په ژوندانه کې د خپل ځان او کورنۍ د ارامۍ له پاره د اسلامي امت پر وړاندې پر ظلم او بې انصافیو غلي دي او یا هم د ژغورنې له پاره د حل لارې په فکر کې دي.

د اسلامي تمدن په زوال سره مسلمانان له خپل بد حالت څخه د وتلو په فکر کې شول او د سید قطب، حسن البنا، ډاکټر علي شریعتي، سید جمال الدین افغاني، عمران نظر حسین او د اسلامي نړۍ نورو سترو علماوو په څېر اسلامي متفکرین بېلابېلې حل لارې وړاندې کوي.

اوس مهال، مسلمانان له اوسني بد حالت څخه د وتلو له پاره د حل لارو په جنجال هم اخته دي او په سیاسي، ګوندي او فکري تعصبونو یې لاس پورې کړی دی. په دې برخه کې مسلمانان په بېلابېلو ډلو وېشل شوي دي چې ان د خپلې حل لارې د منلو له پاره د نورو پر وړاندې بد تبلیغات کوي او نورو مسلمانانو ته د ناکامو مسلمانانو خطاب کوي چې کولای شو په لاندې ډلو یې ووېشو:

- هغه کسان چې جهاد د حل یوازینۍ لاره ګڼي،
- هغه کسان چې د اسلام له مخې ځان جوړونه یوازینۍ حل لاره ګڼي،
- هغه کسان چې اقتصادي پرمختګ او پراختیا یوازینۍ حل لاره ګڼي،

- هغه کسان چې په مادي علومو (ساينس او ټکنالوژۍ) کې پرمختـګ د حل يوازينی لاره ګڼي،
- هغه کسان چې اسلامي علوم يوازينی حل لاره ګڼي،
- هغه کسان چې مسلمانان او غير مسلمانانو ته تبليغ کول يوازينی حل لاره ګڼي،
- هغه کسان چې د عقيدې جوړول يوازينی حل لاره ګڼي،
- او هغه کسان چـې د حضـرت عيسـی ﷺ او حضـرت امـام مهـدی بيـا راتګ يوازينی حل لاره ګڼي،

اسلام سپېڅلی دين يو جامع، هر اړخيز او څو بعدي ديـن دی او اسـلامي امـت هـم بايد څو بُعدي فکر وکړي او يوازې د خپل ځان په واسطه وړانديز شوې حل لاره وړانـدې نه کړي. اوس مهال ټول مسلمانان ټولو يادو حل لارو ته په همغږيتوب سره اړتيا لـري او د اسلام تاريخ ښيي چې له نوموړو حل لارو څخه د يوې په نظر کـې نيولـو او د نـورو پـه پرېښودلو سره ټاکلې پايله تر لاسته کېدای نشي؛ نو لـه دې املـه اسـلامي امـت پـه يـاد شوو ټولو برخو کې صادقو او متخصصو خلکو ته اړتيا لري.

اسلامي امت اړتيا لري چې يوه برخه يـې د اللـه ﷻ پـه لاره کـې جهـاد وکـړي او پـه همدارنګه دې ته هم اړتيا ده چې د امت يوه ډله د امت د ارامۍ له پاره ساينسي علومـو او ټکنالوژۍ ته لاسرسی ولري. د امت يوه برخـه پـه اقتصـادي راحتـۍ فکـر وکـړي، يـوه برخه يې د دين په تبليغ لاس پورې کړي او يوه برخه د اخرالزمان په هکله د خپل وخت د پېژندلو په هکله او د حضرت عيسی ﷺ او امام مهدي د راتلـو پـه اړه څېړنــې وکـړي؛ خو حتمي او ضروري اړتيا دا ده چې ټول له يو بل سره په همغږۍ او د الله ﷻ د رضا او په دې برخه کې د الله ﷻ له دين سره د مرستې له پاره مبارزه وکړي.

د اسلامي امت د اوسنۍ معضلې لپاره د حل لارې موندنه د يوه کس، يوې ډلې او يا هم يو ځانګړي سازمان کار نه دی، بلکې دې ته اړتيا ده څو له ټولې نړۍ څخه اسـلامي عالمان د حل لارې موندنې له پاره هر ډول تعصب پرته او يوازې د الله ﷻ د رضا له پاره راټول شي او د قران او سنتو په رڼا کې ځان حل لارې ته ورسوي چې د امت د اکثريـت له پاره د منلو وړ وي؛ خو څو ټکي چې د هرمسلمان لپاره، په داسې حالـت کـې پـه هـر حالت کې د وتلو لپاره اړين دي:

۱. **عقيده او ايمان:** *اسلام يـوه سـاده او واضـحه عقيـده ده چـې پـه کـې هېڅ ډول پېچلتيا او ستونزه نشته. د الله ﷻ په څېر بل هېڅ څه نشـته، هغـه د ټولو شيانو پيدا کوونکی دی او محمد ﷺ د نورو انسانانو پـه څېـر انسـان*

*دی، خو دا چې هغه ته وحیه شوې څو خلک د لاشریک یوازیني خدای د عبادت لور ته هدایت کړي. نه اولاد لري او نه د چا اولاد دی*[1].

له شک پرته اسلامي عقیده ډېره ساده او عام فهمه ده او د پوهېدو ته یې فلسفي علومو، کلامي علومو، منطق او متداوله علومو ته اړتیا نشته، بلکې لږ تر لږه هر هوش لرونکی او ذکاوت لرونکی انسان کولای شي اسلامي عقیده درک کړي، ځکه چې اسلامي عقیده د الله ﷻ پر وحدانیت د پیداکوونکي، ساتونکي او د کایناتو د مالک په توګه راڅرخي او د ټولو چارو د حاکمیت حق خاص د الله ﷻ لایزال ذات ته دی، نو له دې امله اسلامي عقیده پرته له دې چې یوه معنوي عقیده او د انسان په باطن کې د سولې د راوستو له پاره یوه وسیله ګڼل کېږي، یوه سیاسي عقیده هم ده، ځکه اسلامي عقیده ټولې کړنې د الله ﷻ له قانون سره سمې غواړي.

له اوسني حالت څخه د وتلو له پاره، باید مسلمانان په سیاسي او دیني چارو کې د الله ﷻ وحدانیت او د هغه پاک ذات د حاکمیت حق ته راسخه عقیده ولري. د اسلامي عقیدې لرل تر پیاوړي ایمان پورې هم تړلې ده؛ ځکه چې همدا پیاوړی ایمان دی چې انسانان له دنیوي قید او بند څخه خلاصوي او د الله ﷻ د وحدانیت په رڼا کې د هغه د رضا له پاره ژوند کوي، مري، خوري او کار کوي.

اسلامي عقیده او پر هغې پیاوړی ایمان مسلمانانو ته دا ورزده کوي چې د دنیا ژوند لنډمهاله او لنډ دی او تلپاتې ژوند تر قیامت وروسته د نېکو او بدو اعمالو د حساب په ورځ پیلېږي. اسلامي علماء سره له دې چې پر ژبه او زړه ایمان د اسلامي عقیدو اقرار ګڼي، د انسانانو اعمال هم په ایمان کې شامل ګڼي، په دې اړه عبدالقاسم بن سلام وایي: *ایمان د زړه په واسطه الله ﷻ ته په صادقانه توګه تسلیمېدل، پر ژبه یې د شهادت جاري کول او د جسم په واسطه د (الله ﷻ په اوامرو) عمل کول دي*[2]. *پر مذهبي مقدساتو ایمان او اعتقاد معجزه‌یي اغېزې لري. ایمان زموږ قوت فوق العاده ډېروي او لوړوي او ان زموږ دردونو ته دوا کېږي. ایمان هغه قوه ده چېرته چې ټول مادي وسایل بې اغېزې کېږي، اغېزمن واقع کېږي.*

---

۱. شهید سید قطب؛ د اسلام نظریه او نړیواله سوله؛ د سید ناصر خسرو شاهي ژباړه؛ ۴۷ مخ

2. Habib Ali al-Jifri. The Concept of Faith in Islam; p 13

*د ایمان همدا معجزه ډوله اغېزې دي چې قران مجید دا کلمه په بېلابېلو مشتقاتو سره ۸۵۰ ځله تکرار کړې ده او هغه یې د اسلام د پرمختګ او د مسلمانانو د ښه والي لامل ګڼلی دی او مسیحیان د بېلګې په توګه جرجي زیدان هم په ځینو ځایونو کې اعتراف کوي چې ایمان د اسلامي تمدن د پرمختګ یوازینی عامل دی، لکه چې لیکي: مسلمانانو تر هرڅه خپلو دیني اصولو باندې یې ایمان لاره، هغوی له زړه باوري وو چې د الله ﷻ په امر سره د اسلام دین د پرمختګ له پاره جګړې ته ځي، که ووژل شي شهید به شي او البته د اخرت نعمتونه د دنیا له خوندونو ښه او دایمي دي*[1]. مسلمانان د قوي ایمان او راسخې عقیدې په رڼا کې یوازې او یوازې د الله ﷻ د رضا له پاره حرکت کوي او د ژوند په ټولو چارو کې د الله ﷻ له اوامرو سره سم عمل کوي، نو له دې امله قوي ایمان د دې لامل کېږي څو مسلمانان له دنیوي زیانمنو پایلو تېر شي، ستونزې وزغمي، سېکولرې ټولنې رد کړي او د الله ﷻ په توکل د امر الفرایض (د اسلامي خلافت د جوړولو) له پاره چې په کې سیاسي، اقتصادي، ټولنیزې او نورې چارې په یوازیني الله ﷻ پورې اړه لري، کار کوي او امت له دا ډول حالت څخه خلاص کړي.

۲. **دعا او توبه:** *د مؤمنانو تر ټولو ستره وسله دعا ده*[2]، خو اوسني مسلمانان دعا ته ډېره لږ پاملرنه لري. په داسې حال کې چې موږ مسلمانانو دعا نه ده هېره کړې او ډېر مهال دعا کوو، خو زموږ نظر او کړنه نسبت دعا ته ټکنۍ شوې ده. زموږ ډېرو دعاوو ځان ته د تشریفاتو بڼه اخیستې ده او یوازې هغه مهال د خپلو ستونزو د حل له پاره دعا کوو چې ټولې دنیوي هڅې ناکامې شي. دعا له پیداکوونکي الله ﷻ سره د راز او نیاز محاوره ده او یو خارق‌العاده ارزښت لري چې د خوښۍ، ازادۍ غوښتنې، د پیاوړتیا د احساس او غوره مکالمې له پاره یو ډېر مهم عمل دی چې یو شخص یې لرلای شي.

یوه ورځ حضرت محمد ﷺ د یوې ډلې خلکو له څنګه تېرېده چې په یوه رنځ اخته وو، حضرت محمد ﷺ وفرمایل: دوی ولې له دې څخه د خلاصون له پاره الله ﷻ ته دعا نه کوي؟ همدارنګه د بدر په جګړه کې،

---

۱. خلیل الله مومند؛ د مسلمانانو انحطاط او د اسلام حیرانوونکی پرمختګ، ۲۲ او ۲۳ مخونه

۲. بو عبدالله حاکم نیشاپوري؛ المستدرک علی الصحیحین؛ لومړی ټوک، ۴۹۲ مخ

حضرت محمد ﷺ د شپې له مخې د مسلمانانو د بري لـه پاره دعا کوله. سلطان صلاح الدین ایوبي هم د شپې لـه خوا الله ﷻ تـه پـه زارۍ او ژړا کېده، د مسلمانانو د بري له پاره به یې دعا کوله چې پـه دواړو جګړو کې مسلمانان بریالي شول، نـو لـه دې املـه مسـلمانان د مسـلمان امـت لـه ستونزمن حالت څخه د خلاصون له پاره شپه او ورځ د الله ﷻ ذات ته په دعا لاس پورته کړي او د خپلې دعا په اجابت داسې ایمان ولـري چې د باران د دعا پر مهال له کوره چترۍ سره راووځي.

سره له دې، مسلمانان باید د خپلـو دعـاوو د قبلېـدو لـه پـاره لـه بـدیو او ګناهونو توبه وکړي او د خپلو تېرو ګناهونو او تېروتنو لـه املـه لـه لایـزال اللـه ﷻ ذات څخـه بښـنه وغـواړي، ځکـه اسـلام د ګنـاهونو او تېروتنـو لـه پـاره تحریکوونکي عوامل او انګیزې درک کوي او په وړاندې یې د توبې او استغفار لاره یې خلاصه پرې‌ایښې ده.

اوس مهال مسلمانان د سترو فتنو په زمانه کې ژوند کوي او د دې امکان چې په دې وخت کې د داسې مسلمان شته وي چې ګناه یـې نـه وي کـړې، نه شته. خو مسلمانان باید له الهي رحمت څخه ناهیلي نه شي او د ګناهونو د پنډونو په لیدو سره باید ځان د اسلام له لارې او ټولنې څخه لرې نه کـړي، بلکې په ایمان سرهچې الله ﷻ بې حده بښونکي او مهربـان ذات دی، توبـه او استغفار وکړي او له خپلو مسلمانو وروڼو سره په همغږیتوب د اسلامي امت د ارامۍ له پاره هلې ځلې وکـړي. پـه دې اړه اللـه ﷻ فرمـایي: *ووایـه ای زمـا بندګانو چې (د ګناه په کړلو مو) پر ځـان زیـاتـی کـړی! د خـدای لـه رحمـت څخه مه ناهیلې کېږئ، په یقینـي ډول الله ﷻ ټولې ګناوې بښـي؛ ځکه هغـه ډېر بښونکی او مهربان دی*[1]. همدارنګه حضرت محمد ﷺ فرمايي: په هغـه *الله ﷻ قسم چې زما روح د هغه په لاس کې دی، که تاسې ګنـاه ونـه کـړئ، الله تعالی تاسې له منځه وړي! او ستاسې پر ځای داسې کسـان راوړي چـې ګناه وکړي او بیا توبه وکړي او بښنه وغواړي او الله ﷻ بیا هغوی وبښـي*[2].

---

١. سوره الزمر؛ ۵۳ آیت: قُلْ يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَى أَنفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوا مِن رَّحْمَةِ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا إِنَّهُ هُوَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ ﴿۵۳﴾

٢. صحیح مسلم؛ ۲۷۴۹ حدیث

که دلته په سلیم عقل سره ګورو، پوهېږو چې حضرت محمد د ګناه په لور نه یو هڅولي، بلکې په هغه علم سره چې الله ﷻ ورکړی دی، درک کړې یې ده چې مسلمان امت به ګناه کوي نو، موږ ته پیغام راکوي چې که چېرې لـه موږ څخه ګناه وشي، توبه او استغفار وکړو او نه ځان له اسلام څخـه وباسـو او نه هم څوک کولای شي زمـوږ د ګنـاوو پـه لیـدلو سـره، مـوږ لـه اسـلام څخـه وباسي. توبه او استغفار د انسان د پوره کېدو سـبب ګرځـي او انسـان د پـوره ایمان لورې ته کاږي.

۳. **ځان جوړونه:** د اسلامي امت تـر مـنځ مشـهوره مقولـه ده چـې وایـي: "ځان جوړ کړه، نړۍ په خپله جوړېږي"، دا مقوله سره له دې چې تر یوه حده سمه ده، خو د فرد پالنې بوی ترې راځي او تر یوه حده له نړیوال اسـتعمار او استثمار سره مرسته کوي. هغه درک چې ډېری مسلمانان یې له دې مقـولې څخه لري دا دی چې لومړی باید یو انسان پوره مؤمن او مسلمان شـي او بیـا د اسلامي امت او ټولنې په فکر کې شي، خـو پـه دې تمـه چـې لـومړی ټـول مسلمانان د اسلام او ایمان بشپړتیا ته ورسېږي د اسلام پـه عملـي دیـن کـې یوه غیرعملي تمه ده.

مسلمانان باید په دې بهیر کې چـې ځـان جـوړوي، د اسـلامي ټـولنې د جوړولو په فکر کې هم وي او د مقولې پرخلاف هم کار و نه کړي، یعنـې پرتـه له دې چې ځان جوړوي، د ټولنې جوړېدل هم وغواړي، نو له دې املـه ځـان جوړونه د اسلامي امت د جوړولو یوه مهه برخه ګڼل کېږي او مسـلمانان بایـد د خپل ځان جوړېدو ته ډېره پاملرنه وکړي او په همدې حـال کـې د اسـلامي امت جوړېدو ته هم پام واړوي.

د عباداتو ترسره کول او لړ تر لړه، د هغو عباداتو ترسره کول چې په پنځه مسلماني بناوو کـې دي. د دې لـه درک سـره چـې دا عبادتونـه څـه ګټـې او پیغامونه د مسلمانانو لپاره لري او سربېره پر دې چـې او د اسـلامي اخلاقـو د لرلو سربېره، د ځـان جـوړونې عمـده برخـه جـوړوي. یـو مسـلمان بایـد د دې ترڅنګ چې پنځه وخته لمونځ ادا کوي، باید د لمـونځ پـر بنسـټیزو مفـاهیمو وپوهېږي او عملي یې کړي.

کله چې په لمانځه کې وایو (ایـاک نعبـد و ایـاک نسـتعین) (یـوازې تاتـه عبادت کوو او یوازې له تا څخه مرسته غواړو)، نو باید په عمل کې هم یـوازې او یوازې د الله ﷻ عبادت وکړو او د ستونزو د حـل لـه پـاره یـوازې لـه همغـه

پاک ذات څخه مرسته وغواړو او هېڅ څوک، ټولنه او يا حکومت د تکيې په توګه نه وټاکو، کله چې سجدې ته ځو نو الله ﷻ ته ډېره بندګي ورښيو نو بايد له الله ﷻ پرته د هېچا او هېڅ شي په بند کې ونه اوسو. کله چې په هر حرکت کې الله اکبر وايو، نو بايد ملګري ملتونه يا بل دولت لوی ونه ګڼو او د حاکميت هغه حق چې په الله ﷻ پورې اړه لري، هغوی ته ونه سپارو.

په پای کې، داچې الله فرمايي، زموږ لمونځ بايد موږ له فحشا او منکراتو ليرې کړي. روژه نيول، د دې ترڅنګ چې يوه اسلامي فريضه ده، د مسلمانانو له پاره يو ډېر مهم پيغام دی. د الله ﷻ په امر سره د سهار له وختي د ماښام تر تيارې پورې وږي پاتې مسلمانانو ته دا ورښيي چې د دې نړۍ ژوند يوازې د الله ﷻ له پاره دی او هغه مسلمان چې د روژې دا پيغام درکوي، پوهېږي چې روژه نيول د دنيوي قيد او بند څخه د خپلواکۍ د پوهېدو له پاره يو عمده او اغېزمن بنسټ دی او دا مسلمان يوازې د الله ﷻ د رضا له پاره ژوند کوي او مري او دې مسلمان ته کله چې يو عمل د الله ﷻ د رضا له پاره ترسره کوي، هېڅ مهمه نه ده چې نور خلک د هغه په اړه څه فکر کوي او هېڅ قدرت يې مخه نيولای نه شي.

په همدې توګه، ذکات هم د اسلامي ټولنې د اقتصادي ارامتيا له پاره يوه ستره مرسته ده. حج موږ ته د اسلامي امت يووالی را زده کوي او نور عبادات هم د اخروي ثواب ترڅنګ، دنيوي ګټې هم له ځان سره لري. يوازې عبادات کافي نه دي، بلکې يو واقعي مؤمن او مسلمان بايد د اسلام په چوکاټ کې د نېکو او ښو اخلاقو لرونکی وي. الله ﷻ د رسول الله ﷺ په اړه فرمايي: *او ته لوړ او ښه اخلاق لرې*[1] او همدارنګه په يو بل ځای کې زياتوي چې: نو د الهي رحمت په (برکت) له هغو سره نرم خويه (او مينه ناک) شوی يې او که بد خويه او سخت زړی وې نو قطعاً ستا له شاو خوا څخه خواره کېدل، نو دوی وبښه، او ورته ښښنه وغواړه او په کار (کارونو) کې ورسره مشوره ومړه او کله دې چې پرېکړه ونيوله نو پر الله ﷻ توکل وکړه، ځکه چې الله ﷻ توکل کوونکي خوښوي.[2].

---

١. سوره القلم؛ ۴ آيت؛ وَإِنَّكَ لَعَلى خُلُقٍ عَظِيمٍ ﴿٤﴾

٢. سوره آل عمران؛ ١۵٩ آيت؛ فَبِمَا رَحْمَةٍ مِّنَ اللّهِ لِنتَ لَهُمْ وَلَوْ كُنتَ فَظًّا غَلِيظَ الْقَلْبِ لاَنفَضُّواْ مِنْ حَوْلِكَ فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاسْتَغْفِرْ لَهُمْ وَشَاوِرْهُمْ فِي الأَمْرِ فَإِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللّهِ إِنَّ اللّهَ يُحِبُّ الْمُتَوَكِّلِينَ ﴿١۵٩﴾

حضرت محمد ﷺ د مسلمانانو د استاد په توګه هم پر اخلاقو ډېر تاکید کړی دی او اخلاق او ایمان یې له یو بل څخه نه بېلېدونکې پدیدې ګڼلې دي چې یو له بل پرته ارزښت نه لري.

مسلمانان د ځان جوړونې له پاره له تکبر څخه لرې والی کوي او دومره اسلامي اخلاق او تواضع لري چې په کې د مور او پلار رضایت، له ټولو مسلمانانو او ګاونډیانو سره ښه کول او ورته زیان نه رسول شامل وي. د ګاونډي حقونه یې دومره لوړ کړي دي چې یو مؤمن نه شي کولای خپله خېټه مړه کړي او د هغه ګاونډی په وږي نس ویده شي او په پای کې ښه او نېک اخلاق د ټولو انسانانو او ان حیواناتو له اسلامي اخلاقو ګڼل کېږي.

د اسلامي اخلاقو د جوړېدو له پاره باید د اسلامي اخلاقو له کوچني اړخ یعنې سلام ورکولو څخه چا ته چې پېژنو یې او کنه، او د نژاد، قومیت او اقتصادي حالت په نظر کې نه نیولو سره، پیل شي. ځکه حضرت محمد ﷺ په سلام اچولو ډېر ټینګار کړی دی *او اوسنی حالت چې خلک یوازې خپلو پېژندګلو ته سلام اچوي د اخرې زمانې د قیامت یوه علامه یې ګڼلې ده*[1].

۴. **علم:** پرته له کوم کوچني شکه کولای شو ووایو چې د اسلامي زده کړو او علمي سېستم نشتوالی د اسلامي امت د وروسته پاتې کېدو او ستونزو بو اړین لامل دی. اوسنی روزنیز سېستم په یو داسې لابراتوار بدل شوی دی چې په کې مسلمانان ټوټه ټوټه او خمیره شوي دي او افکارو ته یې داسې بڼه ورکول کېږي چې په غربي کاریکاتورونو بدل شي.

په اسلامي نړۍ کې روزنیز سېستم باید له اسلامي ښوونو (قران او سنت) سره موازي وي او مسلمانان د دې ترڅنګ چې عصري علوم زده کوي، له اسلامي علومو او د اسلام له اساساتو هم بې خبره نه وي. هغه علم چې مسلمانان یې زده کوي، باید له مادي موخو څخه پرته د مشخص هدف لرونکی وي او مسلمانان باید د اسلام تاریخ، د اسلام تمدن او د دې تمدن د پرمختګ او انحطاط لاملونه درک کړي ، خپل وخت وپېژني او همدارنګه دښمنان له پټو او ښکاره دسیسو سره یې وپېژني.

---

۱. ابو عبدالله حاکم نیشاپوري؛ المستدرک علی الصحیحین؛ ۴ ټوک، ۴۴۵ او ۴۴۶ مخونه

په اوسني نړیوال نظام کې چې اسلامي نړۍ په کې له پنځو په ډېرو ملتونو-دولتونو وېشل شوې ده او دا دولتونه او ملتونه تر ډېره د اسلام د دښمنانو تر مستقیم او غیر مستقیم اغېز لاندې دي، د داسې سیستم جوړول چې له قران او سنت سره موازي وي، ناشونی برېښي. نو له دې امله مسلمانان په انفرادي توګه، سره له دې چې د رسمي روزنې له مرکزونو څخه عصري علوم زده کوي، د اسلامي امت د بیا را ژوندي کولو له پاره باید اسلامي او نور اړین علوم هم زده کړي او د شته وسیلو لکه ټولنیزې شبکې، مسجدونه، غونډې او نورو په مرسته یې یو بل ته ورسوي، ځکه مسلمانان هم عصري علومو ته چې کنټرول یې له دښمنانو سره دی او هم اسلامي علومو ته په ځانګړې توګه د اسلام اقتصادي او سیاسي نظام ته اړتیا لري.

د زده شوو علومو رسول چې له اسلامي اساساتو سره برابر وي، صدقه جاریه ګڼل کېږي او سره له دې چې د امت د بیا را ژوندي کېدو له پاره ستره مرسته ده، اخروي ثواب هم له ځانه سره لري.

۵. **په نېکو امر او له بدو منعه کول (امر بالمعروف او نهی عن المنکر):** د اسلام دین د دعوت او تبلیغ دین دی، خو له بده مرغه په اوس وخت کې چې دې اسلامي بارزې پدیدې ته له نور هر وخت څخه ډېره اړتیا احساسېږي، د فرد پالنې د باطلې پدیدې په راتلو سره، لږ ترې استفاده کېږي او هغه ځانګړې ډلې چې په دعوت او تبلیغ بوختې دي، تر ډېره ظاهري عبادتونو ته پاملرنه کوي او د اسلامي تمدن او فرهنګ را ژوندي کولو ته لږه پاملرنه کوي.

په نېکو امر او له بدو منعه عنصر یوه الهي فرضیه ده او د اسلامي فرهنګ د ژوندي پاتې کېدو له پاره یوه محرکه قوه پېژندل کېږي. او دې غني فرهنګ ته له بې پامۍ او بې پروايۍ څخه مخنیوی کوي. د فرهنګي استعمار اوسنی حالت چې د غربي فرهنګ په څنګ کې د حقارت د احساس له امله دی، یوازې کېدای شي د حقیقتونو په روښانولو سره، د امت د انحطاط لامل او دلیلونه او د اسلامي مفاهیمو سمه معرفي او دا چې د مسلمانانو د انحطاط سبب نه، بلکې د مسلمانانو غفلت دی، د دې پدیدې په قالب کې محوه شي

یوه ټولنه تر هغې سیاسي او اقتصادي خپلواکي نه لري چې فکري خپلواکي ونه لري او له خپل فرهنګ او تمدن څخه بې خبره وي؛ نو له دې

امله دا د هر مسلمان او په ځانګړي ډول د هر مسلمان ځوان فريضه ده، د دې تر څنګ چې د اسلام د تمدن، تاريخ، فرهنګ، سياست او اقتصاد په اړه او همدارنګه د دښمنانو د دسيسو او کړنو په اړه څېړنه وکړي او د څېړنو پايلو له رسېدو وروسته هغه په هرې شونې لارې نورو مسلمانانو ته ورسوي او اسلامي ټولنې د هوښيارۍ لوري ته بوځي.

٦. **صبر:** يوه مهمه اسلامي پديده چې ډېری مهال يې په اړه ناسم پوهاوی کېږي، صبر دی. هغه درک چې ډېری مسلمانان يې له دې پديدې څخه لري، د هر ډول ظلم او بې عدالتۍ زغمل دي او دې ته انتظار دی چې الله ﷻ دا ظلم او بې عدالتي لرې کړي او يا دا چې د ژغورنې له پاره يې ورته کس را ولېږي. ډېری هغه خلک چې د امام مهدي او حضرت عيسی ؑ راتګ ته انتظار د امت د اوسني حالت حل لاره ګڼي،

له دې مفهوم څخه کار اخلي، په داسې حال کې چې صبر د سختيو پر وړاندې د مقاومت مفهوم لري. دا چې اسلام نه غواړي پيروان يې د ظلمونو او سختيو پر وړاندې د مبارزې له پاره له ناسمو لارو په داسې ځايونو کې مخکې شي چې د فزيکي مقاومت وس ونلري، نو د صبر توصيه کوي؛ خو دا صبر هېڅکله د غير عادلانه نظامونو د ظلم د زغملو او منلو مانا نه ورکوي، بلکې صبر له غوسې څخه د مخنيوي لار ده، ځکه اسلام پوهېږي چې غوسه د داسې کړنو او پرېکړو لامل ګرځي چې دښمن د غوسه شوي کس په پرتله ډېر لږ زيان ويني او له همدې امله ده چې غوسه په اسلام کې نشته. په دې اړه په يوه حديث شريف کې داسې راغلي دي: *يو چا رسول الله ﷺ ته ووېل: ماته نصيحت وکړه! انحضرت ﷺ ورته وفرمايل: غوسه او قهر مه کوه. سړي څو ځله همدا پوښتنه تکرار کړه او انحضرت ﷺ هر ځل همدا ځواب ورکړ*[1] او همدارنګه د حضرت محمد ﷺ په يو بل حديث کې راغلي دي: *پياوړی انسان هغه نه دی چې بل راڅملوي، بلکې پياوړی انسان هغه دی چې د غوسې پر مهال خپل ځان اداره کړي*[2]. اوس مهال اسلامي امت د غوسه ناکو ځوانانو له امله ډېره ضربه ويني تر دې چې د دښمنانو له پټو او ښکاره دسيسو يې وويني. دا غوسه ناک ځوانان د اسلام په نامه په داسې

---

١. څلويښت نبوي حديثونه؛ ١٦ حديث

٢. صحيح مسلم؛ ٦٣١۴ حديث او صحيح بخاري؛ ١ کتاب؛ ۴٥ حديث

کارونو لاس پورې کوي چې د اسلام روح ترې پاک او مبراء دی او په غوښتل شوي او ناغوښتل شوي توګه د دښمن د وسیلو په توګه کارېدلي دي او یا بې ګناه انسانان وژل شوي دي.

د اسلام د سپېڅلي دین په بدنامۍ او کمزورتیا تمام شوي دي په داسې حال کې چې پیغمبر ﷺ *ته له یوې پېښې وروسته خبر ورکړل شو چې د صفونو ترمنځ یې یوه نجلۍ وژلې ده. پیغمبر ﷺ سخت نا ارامه شو، اصحابو وویل: اې د الله ﷻ رسوله ولې نا ارامه شوې؟ هغه خو د کفارو او مشرکینو یوه لور وه. پیغمبر ﷺ په دې خبره غوسه شو او ویې فرمایل: دا خبره څه معنی لري؟ دوی له تاسو غوره دي، ځکه دوی تر اوسه لا په خپل پاک فطرت دي، ایا تاسو د مشرکانو بچیان نه وئ؟*

*هېڅ کله ماشومان مه وژنئ، هېڅ کله...*[1] د اسلام ستر پیغمبر ﷺ، مسلمانان د بې ګناه مشرکانو او کافرو له وژلو منع کول؛ خو اوس دا غوسه ناک او بې صبره ځوانان ماشومان، ښځې، مسلمان بوډاګان د اسلام په نامه وژني او ورته د فی سبیل الله جهاد نوم ورکوي.

صبر د دې ترڅنګ چې د اسلام د دښمنانو او بشریت پر وړاندې د مقاومت حس د پیدا کېدو سبب ګرځي، د مسلمانانو په زړونو کې د ایمان د قوت او هیلې حس پیاوړی کوي او له اوسنۍ بد وضعیت څخه د وتلو لپاره د یوې لارې او چارې د پیدا کولو په لټه کې کېږي او د ظلم د رانسکورولو له پاره په یو اسلامي اتحاد هڅه کوي.

مسلمانان باید په قوي ایمان او د ظلم پر وړاندې د مبارزې په حس سره هیله له لاسه ورنکړي او ایمان ولري چې په الهي نصرت سره د مسلمانانو برې حتمي دی. الله ﷻ فرمایي: هغوی تل (د حق د نور د ګلولو لپاره) چل کوي او زه (هم د هغو پر وړاندې) چاره او (مناسب) تدبیر کوم، نو کافرانو ته وخت ورکړه او لږ وخت هغوی په دې حال کې چې دي پرېږده.[2]

۷. **اتحاد:** په داسې حال کې چې سنیان شیعه ګان، شیعه ګان سنیان، شیعه ګان او سنیان صوفیان، سلفیان تقریباً ټولې نورې ډلې، جهادیان غیر

---

۱. شهید سید قطب؛ د اسلام نظریه او نړیواله سوله؛ د سید ناصر خسرو شاهي ژباړه؛ ۲۵۸ مخ

۲. سوره الطارق؛ له ۱۵ تر ۱۷ پورې آیتونه؛ إِنَّهُمْ يَكِيدُونَ كَيْدًا ﴿١٥﴾ وَأَكِيدُ كَيْدًا ﴿١٦﴾ فَمَهِّلِ الْكَافِرِينَ أَمْهِلْهُمْ رُوَيْدًا ﴿١٧﴾

نظامیان او غیر نظامیان جهادیان ربښتیني مسلمانان نه ګڼي او اسلامي امت له هر پلوه ځپل ځان ټوټه ټوټه کړی دی، څنګه د امت د بیا راژوندي کېدو توقع او نړیوال اسلامي خلافت شونی دی؟!

پرته له دې، هغه مسلمانان چې د امت د بیا را ژوندي کولو په فکر کې دي، په خپلو منځونو کې د تضاد او تفرقې له امله د یو بل پر کمزوري کولو لګیا دي. یوه بله ستره ستونزه هغه غرب ځپلي دي چې د حلقه به ګوش غلامانو په څېر د دین پر ټکولو د غرب عصري تمدن د ویاندانو په څېر لګیا دي او د اسلامي امت تر منځ د شبهاتو د رامنځ ته کولو هڅه کوي.

تر دې لویه ستونزه، تر پنځوسو ډېرو ملت پاله دولتونه دي چې د ملي ګټو له پاره اسلامي ګټې تر پښو لاندې کوي او د نورو اسلامي ملتونو پر وړاندې یې تر دې کچې دسیسې جوړولو ته لمنه وهلې چې د نورو اسلامي امتونو د ضعیفولو او حتا له منځه وړلو لپاره د اسلام د دښمنانو لمنې ته لاس اوږدوي. او د ملت پالنې دې ناروغۍ د اسلامي امت وجود داسې ککړ کړی دی چې نن ورځ د افغانستان مسلمانان د پاکستان او ایران د مسلمانانو د بربادۍ دعا کوي او د ایران عربو مسلمانان د ترکي مسلمانانو د بربادۍ دعا الله ﷻ ته وړاندې کوي.

د دې ټولو پرخلاف، اسلام خپل ټول پیروان وروڼه ګڼلي او دا امت یې یو امت ګڼلی دی او کله چې الله ﷻ دا امت یو واحد امت ګڼي، نو دا امت د یو واحد معبود، واحدو ګټو او واحد دښمن لرونکی دی، نو له دې امله مسلمانان باید د الله ﷻ د وحدانیت په محور متحد شي، د اسلامي امت ګډې ګټې تعریف کړي او د امت دښمن وپېژني او پر وړاندې یې په منسجمه توګه مبارزه وکړي.

تر هغې چې د اتحاد ارزښت درک نکړي او د الله ﷻ د وحدانیت پر محور او د ګډ دښمن پر وړاندې د مبارزې له پاره متفق نشي، دا امت به د هغو یمنونو شاهد وي چې عربستان او ایران په کې له مذهبي احساساتو څخه ګټه واخیسته او د خپلو ملي او غیر اسلامي ګټو له پاره یې له خاورې او وینو سره برابر کړل او یا به هم هغه افغانستانونه وي چې په نوم اسلامي هېوادونه له امریکا سره یو ځای شوي او د په اشغال کې یې مرسته وکړي.

مسلمانان د ملت پالنې په څېر له غربي عصري تمدن څخه وارد شوي احساسات بد ګڼي او کله چې د نورو اسلامي هېوادونو له منفي ټکو خبرې

کوي د هغو د خلکو او دولتونو ترمنځ توپیر وکړي او پوه شي چې د پاکستان خلک د افغانستان په ورانولو کې رول نه لري، بلکې باید د پاکستان دولت محکوم کړي او په همدې توګه د عربستان خلک د یمن د خلکو په ورانۍ خوشاله نه وو، بلکې د ال سعود کورنۍ هغه شیطانان دي چې له صهیونېستانو سره یې د دې امت د بربادۍ له پاره لاس ورکړ او د ایران دولت د ایران خلکو پورې هېڅ تړاو نه لري او د مذهبي استازو په نوم د ځو سیاسي مشرانو د ګټو په فکر دي.

د وخت پېژندل دا ښیي چې له مذهبونو څخه د مسلمانانو راوتل یوه ارمان پالونکې نظریه ده او تر یوې ځپرې لاندې د ټولو مذهبونو راټولول یوه شونې خبره نه برېښي، نو له دې امله به ښه دا وي چې مسلمانان د اسلام د سترو علماوو اجتهادونو ته چې مذهبونه د هغوی نومونو پورې تړلي ګڼل کېږي، درناوی وکړي او د دې اجتهادونو له پاره ځرنګه چې خپله دې سترو علماوو نه غوښتل تفرقه واچوي او متقابل سره د اسلام واحد چتر لاندې د دې پر ځای چې د یو بل پر وړاندې عمل وکړي، د واحد دښمن پر وړاندې د مبارزې لپاره د ورونو په توګه، یووالي کې هڅه وکړي.

۸. **مبارزه:** تېره پېړۍ ټوله اسلامي نړۍ د بریالیو او ناکامو مبارزو شاهده وه چې د ناکامو مبارزو یوازینی لامل د اسلام د سپېڅلي دین له اساساتو څخه د مسلمانانو ناخبري او د دښمن نه پېژندل وو. هر مسلمان چې د اسلام واقعي روح یې درک کړی دی، د غرب عصري تمدن له استعمار سره مرسته نه کوي او د دې استعمار پر وړاندې اګاهانه مبارزه خپله انساني او اسلامي وجیبه ګڼي.

ښه او بده جګړه به د تاریخ له پیل څخه شروع او تر پایه به ادامه ولري او نن ورځ هغه سترې حملې چې ښه یې پر بد ترسره کوي، معلوماتي حملې دي. نو له دې امله دا د هر مسلمان وجیبه ده ځو له خپل ځان او دښمن څخه خبرتیا ولري او بیا د بدو معلوماتي حملو پر وړاندې، غبرګون وښیي او د ښو په خپرولو او خبرتیاوو سره د شیطاني حملو مخه ونیسي.

له معلوماتي جګړو پرته، مسلمانان باید د واک پر جوړولو پیل وکړي چې د اسلام دښمنان او استعمارګران ترې ووېرېږي او د مسلمانانو قدرت په اتحاد، ایمان، ارزښتونو، علم، خپلواکۍ، نظم او اداره کې دی. په دې اړه الله ﷻ فرمایي: او هر څه چې په توان کې لرئ له ځواکونو او تیارو اسونو

څخه، چمتو یې کړئ تر څو په دې (تدارکاتو) سره د خدای دښمن او خپل دښمن او له هغوی پرته نور (دښمنان) چې تاسو یې نه پېژنئ او خدای یې پېژني، ووېروئ. او هر څه چې د الله ﷻ په لارې کې مصرف کړئ، بدله یې خپله تاسو ته درګرځي او پر تاسو به ظلم نه کېږي.

له دې پرته باید مسلمان راتلونکې ته پام وکړي او سره له دې چې د غرب عصري تمدن د اوسنيو طرحو او نورو دښمنانو پر وړاندې مبارزه کوي، د راتلونکو خطرناکو طرحو پر وړاندې هم چمتووالی ونیسي.

## پنځم فصل
## راتلونکې

### د تاریخ پای

هره ایډیالوژي او هر دین د حق مدعي او پر دې باوري ده چې د نـورو ایـډیالوژیو او دینونو په له منځه تګ او د اړوندې ایډیالوژۍ له نړیوال کېدو سره ایـډیالوژیکي جګـړې او تاریخي پړاوونه پای ته رسېږي نو ځکه پر نړیوالې بریا سره به تـاریخ هـم لـه منځـه لاړ شي. لکه څنګه چې د وروستۍ زمانې په نوم دینونه داسې باور لري چې تـاریخ بـه هـم پای ته ورسېږي، په تاریخي پړاوونـو کـې اغېزمنـې ایـډیالوژۍ هـم د تـاریخ پـه پـای تـه رسېدو باور لري او د دې ایډیالوژیو مؤسسینو او علماوو هم په دې اړه خپلې وړانـدوېینې او نظریات څرګند کړي دي.

د غرب مشهور فیلسوف هیګل ادعا وکړه چې تـاریخ پـه ۱۸۰۶زېږدیـز کـال پـای تـه رسېدلی دی. هیګل د جینـا پـه جګـړه کـې د پـروس د پادشـاه د مـاتې او د فرانسـې د انقـلاب د ارمـانونو د بریـا پـه لیـدو سـره، د ازادۍ (Liberty) لـه بنسـټونو سـره د دولـت نړیوال کېدل او مساوات حتمي ولیدل نو له دې امله یې د تاریخ پای اعلان کړ.

*هیګل پر دې باور و چې په یوه مطلقه لحظه کې خپل اوج ته رسېدلی، داسې لحظه چې یوه ټولنه او وروستی او عقلاني دولت بریالی شوی دی.*[1] د المان مشـهور فیلسـوف مارکس پر دې باور و چې تاریخ به د کارګرۍ انقلاب په واسطه د طبقو په لـه منځـه تلـو سره پای ته ورسېږي. تر سړې جګړې او د اتحاد جمـاهیر شـوروي تـر لـه منځـه تلـو او د امریکا او د لیبرالېزم د ایـډیالوژۍ تـر نسـبي بریـا وروسـته، مشـهور نظریـه ورکـوونکي او امریکایي لیبرال فرانسس فوکویاما خپله نظریه د تاریخ د پای په اړه اعـلان کـړه او ادعـا یې وکړه چې د بشریت په تاریخ کې به د دولت وروستی شکل د لیبرال ولسـواکي وي او

1. Francis Fukuyama; The End of History; p 2

دا به تلپاتې وي. هغه په خپل مشهور کتاب ((د تاریخ پای او وروستی سړی)) کې لیکي: *هغه څه چې موږ یې شاهدان یو، یوازې د سړې جګړې پای یا له یو ځانګړې تاریخي پړاو څخه تېرېدل نه دي، بلکې موږ د داسې تاریخي پای شاهدان یو چې د وروستي بشري دولت په توګه یې اېډیالوژیکه بشپړتیا او د غربي لیبراله نړۍ شموله ولسواکي ده*[1].

تاریخي پړاو د دې سترو عالمانو له نظرونو وروسته چې اوس ډېرو غربیانو او غرب ځپونکو له پاره دغه عالمان د یوې علمي الګو په توګه ګڼل کېږي، هغوی یې مسخر وګڼل او ویې ښوده چې یا دغه عالمان فال کتونکي دي او یا دا چې د خلکو د غولولو له پاره داسې فال کتلو ته لاس پورې کوي. لکه څنګه چې اېډیالوژۍ د تاریخ په پای ته رسېدو باور لري، همدغسې دینونه هم د تاریخ پر پای باوري دي چې په دینونو کې، د تاریخ دغه پای د آخرالزمان په نامه یادېږي او د نړۍ د پای ته رسېدو (قیامت) له پاره یوه سریزه ده.

آخرالزمان (وروستۍ زمانه) که څه هم د تاریخ د پای له تعریف سره چې غربي علماوو او په ځانګړې توګه د غرب عصري تمدن وړاندې کړې ورته والی لري، خو په پوره توګه ورسره یو شان تعریف نه لري، ځکه چې دینونه په دې باوري دي چې په آخرالزمان کې، د الله ﷻ له لوري د موعود منجي په راتلو سره به همدا منجي دین نړیوال کوي او نړیوال دیني حکومت به جوړوي.

خو د نړۍ ډېرې دینونه د آخرالزمان د منجي له نړیوال حکومت وروسته حالت نه اټکلوي او د منجي په واسطه رامنځ ته شوي نړیوال حکومت څخه تر قیامت پورې د تاریخي واټن څخه وړاندوېینه نه کوي. درې ابراهیمي دینونه د آخرالزمان په اړه سره ورته نظریات لري او درې واړه یې د منجي په راتګ او له شیطاني او دجالي ځواکونو سره پر مبارزې باور لري.

درې واړه ابراهیمي دینونه په حق دي خو مسیحیت او یهودیت د الله ﷻ په ایتونو کې د لاسوهنې له امله د اسلام په راتګ سره منسوخ شول او دا لاسوهنې د دې لامل شوې دي څو د دې دوو دینونو عالمان، د آخرالزمان روایتونه د دیني مشرانو او د کلیسا سیاسي ګټې لپاره بدل کړي او له همدې امله د دې دین ډېرې وړاندوېینې د باور وړ نه دي.

1. Francis Fukuyama; The End of History and the last Man; p 51

الله ﷻ په تورات کې بني اسراییلو ته د داسې مسیحا د راتګ وعده ورکړې چې له بیت المقدس څخه به پر ټولې نړۍ حکومت وکړي. په تورات کې داسې راغلي دي: *داسې ورځ راځي چې د داود له نسل څخه به یوه عادله څانګه ټاکو. هغه به حکمت او عدالت سره پاچاهي کوي، په ځمکه کې به انصاف او عدالت راولي. د هغه د حکومت پر مهال به یهودا ازاد شي او اسراییل به ارام او نېبه ژوند ولري او هغه (خدای زموږ عدالت دی) نومول کېږي. الله ﷻ فرمایي: په هغه وخت کې کله چې خلک قسم وخوري، نور داسې نه وايي: قسم په هغه ژوندي خدای چې اسراییل یې له مصر څخه را وویسته، بلکې وايي: قسم په هغه ژوندي خدای چې د اسراییلو تبعید شوی او تیت شوی قوم یې له شمال او نورو هېوادونو څخه بېرته خپلو وطن ته راوګرځوه*[1]. الله ﷻ له وعدې سره سم د راتلونکو او د نړیوال حکومت د جوړولو له پاره حضرت عیسی ؑ را ولېږه، خو اسراییلو هغه دروغ وګاڼه، حرام زاده یې ورته ووایه او په صلیب یې د هغه د ځړولو هڅه وکړه، خو هغه څه چې پرې نه پوهېدل او تر ٦٠٠ کلونو پورې هېڅوک پرې نه پوهېده، الله ﷻ په قران کې واضح کړ چې فرمایي: *هم له دې امله چې ویې ویل، موږ د خدای رسول مسیح عیسی د مریم زوی وژلی دی. حال دا چې هغه یې نه وژلی او نه یې په دار ځړولی دی؛ بلکې موضوع د هغو له پاره مشتبه وګرځول شوه او کومو خلکو چې د هغه په اړه مختلفې عقیدې ونبودې، د شک له مخې یې یوه خبره وکړه او پر هغې عالم نه وو پرته له دې چې د خپل ګمان پیروي یې کوله او په یقیني توګه یې مسیح نه دی وژلی.*[2]. بني اسراییلو، کله چې په خپل ګمان سره یې حضرت عیسی ؑ په صلیب کړ او ویې واژه، په دې باوري شول چې هغه موعود مسیح نه و او له همغه وخته تر اوسه د موعود مسیح په تمه دي او په دې باوري دي چې د اوسنیو اسراییلو منځ ته راتلل د موعود مسیح له پاره کار کول دي چې په لنډ وخت کې به راڅرګند شي.

د اسلام سپېڅلي دین د رښتیني دین په توګه، د آخرالزمان په هکله، بشپړ او حقیقي نظرونه لري چې د اوسنۍ نړۍ د سیاست، اقتصاد او ټولنیزو چارو سم درک د اسلام د آخرالزمان د علم له مطالعې پرته ناشونی دی. هغه تاریخي پای چې د غرب عصري تمدن یې په هکله خبرې کوي، یوازې د اسلام او اسلامي اېډیالوژۍ په قالب

---

۱. د ارمیای نبي کتاب؛ ۲۳ فصل؛ له ۵ څخه تر ۸ ایت پورې

۲. النساء سوره: ۱۵۷ آیه: وَقَوْلِهِمْ إِنَّا قَتَلْنَا الْمَسِيحَ عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ رَسُولَ اللّهِ وَمَا قَتَلُوهُ وَمَا صَلَبُوهُ وَلَكِن شُبِّهَ لَهُمْ وَإِنَّ الَّذِينَ اخْتَلَفُواْ فِيهِ لَفِي شَكٍّ مِّنْهُ مَا لَهُم بِهِ مِنْ عِلْمٍ إِلاَّ اتِّبَاعَ الظَّنِّ وَمَا قَتَلُوهُ يَقِينًا ﴿۱۵۷﴾

*کې د تحقق وړ دي ، ځکه اسلام ټولنيز مکتب او اصول لري او د نړيوال حکومت په تاسيس پسې دی.*

*د اسلام دين په حقوقو، سياست، اقتصاد، اخلاقو او عقايدو او په پای کې د انسانانو د ټولنيز او فردي ژوند د ټولو برخو له پاره ژور قوانين او ځانګړي ارزښتونه لري. اسلام هغه ټولنې چې د خپلواکو دولتونو او ملتونو په توګه يوازې د خپلو ګټو له پاره فکر کوي، محکومې کړې دي او په دې لاره کې يې د هر ډول اختلاف، دوه والي او مشوشو فکرونو له لامل سره دايمي مبارزه کړې او د نړۍ ټول انسانان دې ته را بولي چې تر يو بيرغ لاندې شي او يوه ټولنه جوړه کړي*[1].

په اوسنۍ نړۍ کې شته ايډيالوژۍ د عدالت په محور نه راڅرخي او له همدې امله، بشريت په يوې سترې بې عدالتۍ کې ژوند کوي، څرنګه چې نن ورځ نړيوال د عدالت تږي دي او دا تشه يوازې په يوه اسلامي نړيوال دولت کې ډکېدلای شي، ځکه چې اسلام د عدالت دين دی او اسلامي اصول ډېر ټينګار پر عدالت کوي، څرنګه چې الله ﷻ فرمايي: *اې د ايمان لرونکو! تل (په ټولو چارو کې) د الله ﷻ له پاره قيام کوونکي او پر رښتينولۍ ولاړ او د عدل شاهدان اوسئ. او د کومې ډلې سره دې دښمني تاسې دې ته ونه هڅوي چې عدالت و نه کړئ. عدالت وکړئ، چې پرهېزګارۍ ته نږدې دی. او له الله ﷻ څخه ووېرېږئ؛ ځکه هر څه چې تاسې کوئ، الله ﷻ پرې پوره خبر دی.*[2] *پرته له شکه الله ﷻ عدل، ښېګڼې او خپلوانو ته په بخشش امر کوي. او له فحشا او بدۍ او زور، ظلم څخه مو منعه کوي.*[3]

په اسلام کې د تاريخ پای به د امام مهدي په واسطه او د الله ﷻ له وعدې سره سم د حضرت عيسی ﵇ په واسطه راشي. لکه څنګه مو چې په لومړي څپرکي کې وويل، اسلام نوی دين نه دی، بلکې د پخوانيو اسماني دينونو پوره کوونکی دی او دا چې الله ﷻ د نړيوال حکومت وعده په پخوانيو دينونو کې حضرت عيسی ﵇ ته ورکړې وه، دا وعده به پوره کوي، ځکه چې اسلام او ټول اسماني دينونه ، قومي او دودماني دينونه نه دي بلکې د الله ﷻ په حقه دين دی چې د پخوانيو دينونو په منسوخېدو سره، د حضرت عيسی ﵇ په واسطه دا نړيوال حکومت، په هغه توګه نه چې يهوديان يې ادعا

---

۱. محمد مجتهد شبستري؛ د ټولې نړۍ له پاره يو حکومت/په اسلام کې د نړيوال حکومت فکري پايې، ۲۳ مخ

۲. المائده سوره؛ ۸ ايت؛ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ كُونُواْ قَوَّامِينَ لِلّهِ شُهَدَاء بِالْقِسْطِ وَلاَ يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَآنُ قَوْمٍ عَلَى أَلاَّ تَعْدِلُواْ اعْدِلُواْ هُوَ أَقْرَبُ لِلتَّقْوَى وَاتَّقُواْ اللّهَ إِنَّ اللّهَ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴿۸﴾

۳. النحل سوره؛ ۹۰ ايه؛ إِنَّ اللّهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالإِحْسَانِ وَإِيتَاء ذِي الْقُرْبَى وَيَنْهَى عَنِ الْفَحْشَاء وَالْمُنكَرِ وَالْبَغْيِ يَعِظُكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ ﴿۹۰﴾

کوي چې د یهودیانو په استازیتوب به وي، بلکې د الله ﷻ د یوازني حق دین یعنې د اسلام په استازیتوب به وي. په دې اړه الله ﷻ فرمایي: او موږ له تورات څخه وروسته په زبور کې ولیکل چې ځمکه به زموږ غوره بندګان په میراث وړي.[1]

## اسلام: اول الزمان او اخرالزمان

الله ﷻ د انسان، نړۍ، شیطان او ټولې هستۍ پیدا کوونکی دی او الله ﷻ تاریخي پړاو داسې جوړ کړی چې تاریخ تکرار نشي، د تاریخ د پېښو پړاوونه تکرارېږي او د تاریخ لومړی له وروستي سره اړیکه لري، ځکه چې الله ﷻ فرمایي: *هغه (الله ﷻ) اول او اخر او ظاهر او باطن دی او هغه په هر څه پوهېږي.*[2] تاریخ د جګړې له ښو او بدو بهیرونو جوړ دی او د بدو او ښو دا جګړه هغه مهال پیل شوه چې ابلیس د الله ﷻ له درباره وشړل شو او د هغه له غوښتنې سره سم، الله ﷻ د خپلو بندګانو د بې لارې کولو چانس هغه ته ورکړ.

الله ﷻ انسان له خاورې پیداکړ، بیا یې خپل روح پکې واچاوه او د خپل پاک روح تر اچولو وروسته یې ملایکو ته امر ورکړ څو هغه ته سجده وکړي. الله ﷻ فرمایي: *نو کله مې چې هغه بشپړ کړ او له خپل روح څخه مې په کې پو کړ؛ د هغه پر وړاندې په سجده پرېوځئ*[3] هغه سجده چې الله ﷻ ملایکو او ابلیس ته یې امر پرې وکړ، د ادم خاورین وجود ته سجده نه وه، بلکې په دې خاورین وجود کې الهي اچول شوي روح ته سجده وه، خو ابلیس د الله ﷻ له امر څخه سرغړونه وکړه او ویې ویل: زه هغه نه یم چې هغه بشر ته چې هغه دې له وچې ختې، له تورې او بدبویې ختې څخه پیا کړی، سجده وکړم.[4]

د ابلیس د سرغړونې لامل، تکبر او طبیعي غوره ګڼل و چې متکبر موجودات د خپل اصل او نسب له مخې پر نورو ځان غوره ګڼي او دا چې الله ﷻ متکبر موجودات نه خوښوي، نو ابلیس یې ورټه او لعنتي یې کړ. د تاریخ په پیل کې ابلیس تکبر وکړ او ځان یې غوره وګاڼه او اوس د تاریخ په وروستیو پړاوونو کې د انسانانو ځینې ډلې له ابلیس او د هغه له اولادې سره په همکارۍ ځان له نورو څخه غوره ګڼي او د خپل اصل

١. الانبیاء سوره؛ ١٠٥ ایت: وَلَقَدْ كَتَبْنَا فِي الزَّبُورِ مِن بَعْدِ الذِّكْرِ أَنَّ الْأَرْضَ يَرِثُهَا عِبَادِيَ الصَّالِحُونَ ﴿١٠٥﴾

٢. الحدید سوره؛ ٣ ایت؛ هُوَ الْأَوَّلُ وَالْآخِرُ وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿٣﴾

٣. الحجر سوره؛ ٢٩ ایت؛ فَإِذَا سَوَّيْتُهُ وَنَفَخْتُ فِيهِ مِن رُّوحِي فَقَعُواْ لَهُ سَاجِدِينَ ﴿٢٩﴾

٤. الحجر سوره؛ ٣٣ ایت؛ قَالَ لَمْ أَكُن لِّأَسْجُدَ لِبَشَرٍ خَلَقْتَهُ مِن صَلْصَالٍ مِّنْ حَمَإٍ مَّسْنُونٍ ﴿٣٣﴾

او نسب له مخې غوره والی کوي او ځان غوره شوي خلک ګڼي، په داسې حال کې چې الله ﷻ د انسان په کالبد کې خپل روح پو کړی او هر انسان دا الهي روح ګرځوي چې د الله ﷻ پر وړاندې د انسانانو غوره والی په اصل او نسب کې نه دی، بلکې د هغوی د نېکو اعمالو له مخې دی. د غرب عصري تمدن چې وروستی هدف يې نړیوال حکومت ته د دغو کسانو، (د دوی په ګمان تر ټولو غوره کسان) رسول دي، يو متکبر تمدن دی، د ابلیس پر پلونو يې قدم ايښی او پر همدې لاره روان دي. دا متکبر تمدن په دې هڅه کې دی څو ټوله نړۍ له ځان سره هم ګامه کړي او د شیطان پیروان يې کړي.

په دې متکبر تمدن کې د متمدن والي معیار ظاهر پالنه ده او په دې تمدن کې د يو انسان متمدن توب درېشي او نېکټايي ښيي. دا تمدن داسې متکبر دی چې که حضرت عیسی ﷺ هم بیا راشي، درېشي او نېکټايي يې په ځان نه وي نو هغه به هم يو غیر متمدن انسان وګڼي.

د تاریخ په پیل کې کله چې الله ﷻ ادم ﷺ پیدا کړ او هغه ته يې په جنت کې ځای ورکړ، ورته يې وويل کولی شي په جنت کې له ټولو نعمتونو څخه ګټه واخلې مګر يوه ونه  او ومو ویل ای آدمه ته او مېرمن دې په دې باغ کې واوسېږئ او د هغه له هر ځایه چې غواړئ، ډېر (بې شمېره) وخورئ، خو دې ونې ته مه نږدې کېږئ چې له ظالمانو به وشمېرل شئ.[1]. بیا شیطان د ادم ﷺ خواته راغی او د هغه په وسوسه کولو يې پیل وکړ شیطان ورته وويل: اې ادمه! ايا تا هغې ونې ته رهنمايي کړم چې په هغې سره دایمي ژوند او نه ختمېدونکی سلطنت په لاس درځي؟- هغه وخت له هغې (ممنوع ونې) څخه يې وخوړل او سترونه يې يو بل ته ښکاره شول او پر ځانونو يې د جنت د پاڼو په سرينښولو پیل وکړ او (په دې توګه) ادم خپل د رب نافرماني وکړه او له سمې لارې واوښت.[2]. په دې مبارکو ايتونو کې د پام وړ ټکي دا دي چې ادم ﷺ د تلپاتې ژوند او هغه دولت چې هېڅکله زوال نه لري يعني دايمي پاچاهۍ د هوس له پاره له خپل پروردګار څخه نافرماني وکړه او ونې ته نږدې شو.

کله چې ادم ﷺ ونې ته نږدې شو معنوي معصومیت يې له لاسه ورکړ او د معنوي معصومیت په له لاسه ورکولو سره په خپل لوڅوالي پوه شو او د ځان د پټولو له پاره يې د ونو له پاڼو کار واخیست.

---

۱. البقره سوره، ۳۵ ایت؛ وَقُلْنَا يَا آدَمُ اسْكُنْ أَنتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ وَكُلاَ مِنْهَا رَغَدًا حَيْثُ شِئْتُمَا وَلاَ تَقْرَبَا هَذِهِ الشَّجَرَةَ فَتَكُونَا مِنَ الْظَّالِمِينَ ﴿۳۵﴾

۲. طه سوره؛ ۱۲۰-۱۲۱ آيتونه؛ فَوَسْوَسَ إِلَيْهِ الشَّيْطَانُ قَالَ يَا آدَمُ هَلْ أَدُلُّكَ عَلَى شَجَرَةِ الْخُلْدِ وَمُلْكٍ لَّا يَبْلَى ﴿۱۲۰﴾ فَأَكَلَا مِنْهَا فَبَدَتْ لَهُمَا سَوْآتُهُمَا وَطَفِقَا يَخْصِفَانِ عَلَيْهِمَا مِن وَرَقِ الْجَنَّةِ وَعَصَى آدَمُ رَبَّهُ فَغَوَى ﴿۱۲۱﴾

د تلپاتې حاکمیت او دولت هوس د معنوي معصومیت د له منځه تلو لامل شـو او دا هوس د ظلم لامل گرځي، څرنگه چې زموږ رب ادم ﷺ ته فرمایي چې ونې ته مه نږدې کېږه کنه بیا به د ظالمانو له ډلې څخه یې. اوس په آخرالزمان کې صهیونېستان یـو وار بیا د ابلیس پیروان شوي دي او په خپل زړه کې د تلپاتې دولت هوس گرځـوي چـې لـه بیت المقدس څخه به اداره کېږي او له همدې امله خپلو سترو موخو ته د رسېدو له پاره له هېڅ ډول ظلم څخه ډډه نه کوي.

هغه مهمه او حیاتي موضوع چې باید هر مسلمان ورته پام وکړي، دا ده چې اللـه ﷻ د ادم ﷺ تر پیدا کېدو وړاندې ملایکو ته وویل چې پـه ځمکـه کـې خپـل خلیفـه پیـدا کوي؛ خو ملایکو د هغه علم له مخې چـې اللـه ﷻ ورکـړی و د اللـه ﷻ پـر وړانـدې یـې وویل چې ایا په ځمکه کې داسې خلیفه پیدا کوې چې فساد به کوي او وینه به تویوي؟ الله ﷻ وفرمایل: هغه څه چې زه پرې پوهېږم تاسې پرې نه پوهېږئ. نو د ادم او د هغـه د اولاد دنده پر ځمکه خلافت دی او دا چې خلافت څـه دی اللـه ﷻ خپـل خلیفـه داود ﷺ ته داسې فرمایي: ای دواوده! تـه مـو پـه ځمکـه کـې خپـل ځـای ناسـتی (او خپـل استازی) وگرځولې، نو د خلکو تر منځ په حقه داوري وکړه او د نفسي غوښتنو پیروي مـه کوه چې هغه به تا د الله ﷻ له لارې اړوي. پرته له شکه هغه کسـان چـې د اللـه ﷻ لـه لارې بې لارې کېږي دا چې د حساب ورځ یې هېره کړې ده، ورته سخت عذاب دی.[1]

نو خلیفه هغه څوک دی چې په حق سره حکـم کـوي او خلافـت هغـه حکومـت دی چې په حق ولاړ وي او دا چې انسان د ځمکې پرمخ د اللـه ﷻ خلیفـه دی نـو بایـد دې خلافت ته کار وکړي. د تاریخ په پیل کې الله ﷻ د خلافت دنده ادم ﷺ ته وسـپارله او اوس د تاریخ په پای کې انسي او جني شیطانانو د توطیو پـه واسـطه خلافـت لـه منځـه یووړ او تقریباً د نړۍ اوسني ټول دولتونه جمهوري شوي دي چې شـعار یـې د خلکـو لـه خوا پر خلکو باندې د خلکو حکومت دی او په حقیقت کې دې دولتونـو د اللـه ﷻ حـق خلکو ته وسپاره.

اوس د تاریخ په وروستیو پړاوونو کې هغه جگړه چې د ښو او بدو تـر مـنځ پیـل شـوې وه، توده شوې ده او ابلیس او پیروان یې په هر ډول وسـلې سـره چـې پـه لاس کـې یـې لري، د حق په لوري گوزار کوي او د نړیوالې لویې شیطاني طرحـې لـه پـاره کـار کـوي؛

---

۱. ص سوره؛ ٢٦ ایت؛ يَا دَاوُودُ إِنَّا جَعَلْنَاكَ خَلِيفَةً فِي الْأَرْضِ فَاحْكُم بَيْنَ النَّاسِ بِالْحَقِّ وَلَا تَتَّبِعِ الْهَوَى فَيُضِلَّكَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ إِنَّ الَّذِينَ يَضِلُّونَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ بِمَا نَسُوا يَوْمَ الْحِسَابِ ﴿٢٦﴾

خو د الله ﷻ له وعدې سره سم به وروستۍ بریا د حق وي او تاریخ به پر باطل د حق په بریالیتوب پای ته رسېږي.

##ستره نړیواله طرحه

هر یهودي ماشوم پوهېږي او په دې باوري دی چې د هغې وعدې له مخې چې بني اسراییلو ته ورکړل شوې وه، تاریخ به د داسې سړي په راتګ چې پیغمبر او مسیحا به وي او پر ټوله نړۍ به له بیت المقدسه او د داود ﷺ له تخته حکومت کوي، پای ته رسېږي. یهودیان په دې عقیده دي چې تاریخ له یهودي نړیوال نظام سره چې مرکز به یې بیت المقدس وي، څرنګه چې د سلیمان ﷺ په وخت کې و، پای ته رسېږي او دا نړیوال یهودي حکومت به یهودیت په حقه ثابت کړي.[1]

مسیحیان او مسلمانان هم په دې باور دي چې په وروستۍ زمانه کې به مسیح ﷺ راځي او نړیوال حکومت به جوړوي، خو مسلمانان په دې عقیده دي چې عیسی ابن مریم نه دی مړ شوی، بلکې هغه د الله ﷻ په واسطه اسمان ته ورل شوی او بیا به راځي؛ خو د دې پرخلاف یهودیان مسیح عیسی تکذیبوي، نو له دې امله د داسې کس په تمه دي چې ربښتونی مسیح نه وي، بلکې درواغجن مسیح به وي چې مسلمانان یې د مسیح الدجال په نوم پېژني او یهودیانو د عیسی په تکذیبولو سره د مسیح الدجال د راتګ له پاره زمینه برابره کړې ده څو هغوی د خپلې دوکې ښکار وګرځوي او خپل ستر پیروان یې کړي.

وروسته چې د خزرانو امپراتوري ړنګه شوه او د خزر قوم ډېری اروپا ته کډوال شول او د لومړي ځل له پاره وتوانېدل چې په سامي نژاد کې ځای ونیسي او د اغېزې اچولو په ځواک سره چې له ډېر مال څخه چې هغه هم له سود خوړلو او په مسیحي ټولنو او کلیسا کې په جنسي سوداګرۍ یې ترلاسه کړی و صلیبي جنګ یې تحریک کړ چې د دې لامل شو چې بیت المقدس فتح کړي او مسلمانان له بیت المقدس څخه وشړي او د صلیبي په نامه د معبدي اتلانو په رامنځ ته کولو سره یې فکر وکړ چې د خپل لوی ارمان لپاره یې لومړی قدم ایښی، خو د مسلمانانو مقاومت او د صلاح الدین ایوبي په رهبرۍ د مسلمانانو پاک جهاد، د هغوی دغه ارمان یې له شرم سره بېرته اروپا ته ولېږه.

د صلیبیانو تر ماتې وروسته شیطاني قواوې په دې پوه شوې چې له مسلمانانو سره په مخامخ فزیکي مقابله کې یې ستر ارمانونه پایله نه لري، نو له دې امله یې د کوچنیو

1. Imran N. Hosein; The Gold Dinar and Silver Dirham: Islam and the Future of Money; p 27

ډلو او پټو ډلو لکه فریمسنري، روڼ اندو او نورو په نوم ډلو په رامنځ ته کـولـو لاس پـورې کړ چې لومړی یې د اروپا کنټرول لاسته راوړ او د غربي مدرن تمدن پـه رامـنځ تـه کولـو یې، تر خپل کنټرول لاندې دغه تمدن یې د خپل لـوی هـدف پـه لـور رهـبري کـړ او پـه توطیې جوړولو وتوانېدل چې اسلامي خلافت له منځه یوسي او ورپسې فلسطین او بیت المقدس بیا د هغو یهودیانو لاس ته ورکړي چې د دجال د فتنې تر ټولـو لـوی قربانیـان شوي وو او د دجال پیروان ګرځېدلي وو، او د اسرائیلو دجالي دولـت پـه بیـت المقـدس کې جوړ کړي.

د غرب د عصري تمدن په رامنځ ته کېدو سره برېټانیا د دې تمدن د لـومړي نړیـوال ابرقدرت په توګه د دولت بنسټ چې پایله یې د دجال د امپراتـورۍ جـوړول او د دجـال امپراتورول دي، کېښود او بیا امریکـا د دې تمـدن د سـتر قـدرت پـه توګـه چـې البتـه د اروپایانو په واسطه د امریکایانو د اصیلو خلکو تر نسل وژنې وروسـته لـه دې تمـدن سـره وتړل شوه، رسماً یې د اسراییلو د حکومت لـه جوړولـو سـره مرسـته وکـړه او هغـه یـې پـه رسمیت وپېژانده.

صهیونېستانو په اروپا او په ځانګړې توګه برېټانیا کې د پټو ډلو په اغېزمنتیـا سـره لـه دې نړیوال قدرت څخه کار واخیست او په بیت المقدس کـې یـې د اسـراییلو د دجـالي دولت بنسټ کېښود او بیا په رسمي توګه د سیاسـي صـحنې مخـې تـه لـه راتلـو سـره د صهیونېزم د ګوند په چوکاټ کې د اسراییلو د تشکیل او د دې هېواد د پیاوړي کولـو لـه پاره یې ګټه ترې واخیسته او له امریکا څخه اسراییلو ته د قدرت د انتقـال لـه پـاره بـه د دې تمدن د درېیم او وروستي نړیوال قدرت پـه توګـه، امریکـا بـه هـم لـه زوال سـره مـخ کوي.

امریکا د خپل پخواني سیال په څېر بیـت المقـدس او د اسـراییلو لـه یهـودي دولـت سره خپله عجیبه دلچسپي ښـوده او د اسـراییلو لـه تولـد څخـه تـر اوسـه یـې ۱۲۰ زره میلیونه ډالرو په مالي مرستو، له ۳۹ څخه د ډېرو ویټو (د رد حـق) لـه پـاره د اسـراییلو د ساتنې له پاره له نړیوالو قوانینو څخه په ملګرو ملتونـو کـې د دې صهیونېسـتي دولـت د ظلمونو پر وړاندې او د نظامي قوو پـه ځـانګړې توګـه د اسـلامي هېوادونـو پـه واسـطه د اسراییلو د دښمنانو له منځه وړلو لـه پـاره یـې اسـراییل دې تـه تیـار کـړل څـو د غـرب د عصري تمـدن وروسـتی او درېـیم پـړاو لکـه څنګـه چـې امریکـا د برېټـانیې ځـای ونیـو، اسراییل هم د امریکا ځایناستی شي، عملي کړي او یو څـوک پـه بیـت المقـدس کـې د مسیحا په توګه د نړیوال حکومت اعلان وکړي او ځان د یهودیانو مسیحا وپېژني.

صهیونېستانو په بیت المقدس کې د اسرییلو له تشکیل وروسته د امریکا پـه مشـرۍ د غربي عصري تمدن په ملاتړ د دې نوي تشکیل شوي یهودي دولت د پیاوړي کولو پـه فکر کې شول. امریکا، له نظامي او مالي مرستو پرته له اسراییلو سره استخباراتي مرسته پیل کړه او په هره مسئله چې اسراییل پکې د نړیوالې ټولنې د نقـد او یـا گـواښ لانـدې راغلی دی، امریکا په یو نه یو ډول د اسراییلو ملاتړ کړی دی.

کله چې امریکـا پـه ۱۹۷۹زېږدیـز کـال د *KH-11*[1] پـه نـوم د HD کیفیـت لرونکـي پرمختللي سټلایټ چې له سلگونه کیلومترو څخه انځور اخیستی شـي، د ځمکـې مـدار تـه ولېـږه. پـه داسـې حـال کـې چـې سـتر نړیـوال متحـد (انگلېسـتان) ورتـه د خپلـو استخباراتي موخو له پاره د انځور اخیستو په توگه ترې کار نشو اخیستی.

اسراییلو په مستقیمه توگـه دې سـټلایت تـه لاسرسـی لاره او د همـدې اسـتخباراتي معلوماتو له مخې یـې د عـراق پـه اوسـیرک کـې د دغـه هېـواد د نظـامي څېړنـو مرکـز د نظامي الوتکو په مرسته چې له اسراییلو سره د امریکا له خوا کمک شوې وې، بمبار وکړ او سره له دې چې اسراییلو په دې حمله کې ټول نړیوال قوانین تر پښـو لانـدې کـړل او پـه ۱۹۷۵زېږدیـز کـال پـه ټولـه نـړۍ کـې د اسـراییلو د دې قـانون مـاتونې پـه وړانـدې لاریونونه وشول. امریکا چې ځان د نړیوالو قوانینو ساتونکی گڼي پـه خپلـو غوږونـو کـې پنبه کېښوده او هېڅ ډول غبرگون یې ونه ښوده.

د ټکنالوژیو په زمانه کې اتومي وسله د نړیوال قـدرت د عمـده عنصـر پـه توگـه گڼـل کېږي، نو له دې امله اسرائیل تر جوړېدو څو کاله وروسـته د اتـومي وسـلو د جوړولـو پـه فکر کې شول او په داسې حال کې چـې امریکـا د خپلـو U-2 اسـتخباراتي او اکتشـافي الوتکو په واسطه چې د اتحاد جماهیر شوروي د نظـامي تحرکـاتو د څـارنې لـه پـاره یـې جوړې کړې دي.

د اسراییلو اتومي څېړنو مرکز یې په پټه تر څارنې لاندې ونیو او د اسـراییلو لـه لـوري د اتومي وسلو له جوړېدو خبر وو، خو هېڅ ډول غبرگون یې ونه ښـود، سـره لـه دې چـې اسلامي هېوادونه د اتومي وسلو د لرلو په تور تـر نظـامي یرغـل لانـدې راولـي، اسـراییلو هغه اتوم چې ان د اتومي وسلو د پراختیا د منعې تړون یې لاسلیک کړی نه دی؛ *سره له دې یـې هـم پـه ۲۰۱۶ زېږدیـز کـال د امریکـا د دفـاع وزیـر کـولن پـاول د خپـرو شـوو برېښنالیکونو له مخې له ۲۰۰ زیاتې اتومي وسلې لري*[2].

---

1. Seymour M. Hersh; The Samson Option; 1. A Secret Agreement

2. Times of Israel (In leaked emails); Colin Powell says: Israel has 200 nukes (Dated: Sep. 15, 2016)

هېڅ نقد يې پرې ونه کړ او ان رسنيو هم د هغې په اړه په اسراييلو نيوکه ونه کړه، بلکې د امريکا او غرب د عصري تمدن مالي، نظامي او ان اتومي مرستې ورسره روانې دي.

وروسته له دې چې صهيونېستانو په فلسطين او بيت المقدس کې د پښې ځای پيدا کړ او د اسراييلو صهيونېستي يهودي دولت يې جوړ کړ او په يو اتومي قدرت يې بدل کړ، دا صهيونېستي دولت د اسراييلي سترو پروژو د عملي کېدو له پاره د پلانونو او طرحو د ارمان په فکر کې شو.

اسراييل د نړيوال نظم چارو جوړوونکي شول او د امريکا په راس کې د غرب عصري تمدن د اسراييلو د سترې طرحې د عملي کوونکو مامورينو په توګه په نړۍ کې د اسراييلو د ستر ارمان له پاره په فعاليت پيل وکړ.

په ۱۹۸۲زېږديز کال اودن ينن (Oden Yinon) خبريال او د اسراييلو په بهرني سياست کې يو نږدې کس چې د اسراييلو له بهرنيو چارو وزارت سره نږدې اړيکې لري، په منځني ختيځ کې د صهيونېستانو د ستراتيژۍ تر عنوان لاندې د صهيونېست نړيوال سازمان (World Zionist Organization) په مجله کې يوه مقاله خپره کړه چې وروسته ترې د اسراييلو د بهرنۍ پاليسۍ په توګه کار واخيستل شو او د ينن د پلان *(Yinon Plan)*[١] په نامه هم پېژندل کېږي.

دا پلان د اسراييلو د پايښت له پاره دوه طرحې او عمده موخې لرلې. لومړۍ دا وړاندې کوي چې اسراييل بايد د سيمې په يوه پياوړې امپرياليستي قدرت بدل شي او دويم دا چې ټوله سيمه په کوچنيو دولتونو بدله کړي او ټول عربي هېوادونه تجزيه شي. د دې کار له پاره هر عربي دولت او په ځانګړې توګه هغه دولتونه چې د ملي منسجمو او واضحو موخو لرونکي دي، تر هدف لاندې کړي.

دې پلان د مسلمانانو د کمزورۍ ټول ټکي ياد کړي دي څو په راتلونکي کې صهيونېستان وتوانېږي چې په اسلامي نړۍ کې له دې کمزوريو د تشنجاتو او ګډوډيو د رامنځ ته کولو او د اسراييلو د پياوړي کولو له پاره کار واخلي. د کمزورۍ هغه ټکي چې دا پلان يې د اسراييلي ستراتيژيستانو له پاره رابرسېره کوي مذهبي، قومي، نژادي او ملي اختلافونه دي چې د دې په مرسته اسراييل کولای شي عربي دولتونه کمزوري کړي او په داخلي جګړو او ګډوډيو يې اخته کړي.

---

١. د لا ډېرې مطالعې له پاره د Israel Shahak په واسطه The Zionist Plan for the Middle East کتاب ولولئ.

د دې پلان له مخې باید عـراق پـه یـو شـیعه، سـني او کُردي دولـت تجزیـه شـي. د مراکش او اجریا تـر مـنځ پـه هسـپانوي صـحراوو اختلافونـه بایـد نـور هـم زور واخلـي او همدارنګه په دې هېوادونو کې داخلي اختلافات نور هم پسې زیات شي. په سوډان کې مسلمانان اقلیت وو او پر اکثریت افریقایانو، بت پالونکو او مسیحیانو یـې حکومـت کـاوه نو تر منځ یې د اختلاف راوړل ساده وو.

همدارنګه سوریه او لبنان له علوي شیعه ګانو او سنیانو جوړ وو چـې پـه سـوریه کـې ۱۲ سلنه علوي شیعه ګانو په اکثریتو سنیانو واکمني کوله او لبنان هم ورته حالـت لـري او د دې دولتونو د متزلزل کېدو حالت ښیي. دا طرحه د مصر ستره برخه جوړوي، ځکـه که د دې پلان له مخې مصر سقوط وکړي او تجزیـه شـي، نـو لیبیـا، سـوډان او ان لـرې پراته اسلامي هېوادونه به هم په دې ډول حالت کې رانښکېل شي.

په همدې توګه به په ټوله اسلامي نـړۍ کـې تفرقـې او کـورنۍ جګـړې راولـي. د دې پلان یوه برخه داسې وایي: *په پنځو ولایتونو باندې د لبنان پوره تجزیـه د مصـر، سـوریې او عربو د جزیرې په ګډون د ټولې عربي نـړۍ د تجزیـې لـه پـاره سـریزه ګڼـل کېـږي او اوس په هماغه لور په حرکت کې دي. وروسته عراق او سوریه نظر ځانګړو برخو ته د قوم او مذهب له مخې، د لبنان په څېر په ختیځه برخه کې د اسراییلو له لومړنیو موخو څخه دي. سوریه هم د قومي او مذهبي جوړښت لـه مخـې د اوسـنی لبنـان پـه څېـر پـه څـو دولتونو تجزیه کېږي چې د هغې د ساحل په اوږدو کې یو علوي شیعه دولت، پـه حلـب کـې یو سني دولت، په دمشـق کـې یـو بـل سـني دولـت چـې د خپلـو شـمالي ګاونـډیو دښمن وي او د دروزیانو (هغه مذهب چې لـه اسـماعیلیه وو بېـل شـوی دی) یـو دولـت زموږ د جولان (یعنـې اسراییل د جولان تپې خپلـې ګڼـي) پـه تپـه او حـوران سـیمه کـې رامنځ ته شي. دا کار په اوږده موده کې د اسراییلو سوله او ټیکـاو برابـروي چـې اوس دا ډول حالت زموږ په لاسرسي کې دی*[1]. د ینن د طرحې پرخلاف د ایران-عـراق اتـه کلنـه جګړه چې په ۱۹۸۸زیږدیز کال پای ته ورسېده او میلیونونه تلفات یې لرل، ونـه توانېـده چې عراق ټوټه ټوټه کړي او عراق تر دې وروسته یو وار بیـا د متحـده هېـواد پـه توګـه پـه بیارغونې پیل وکړ او یو سیمه ییز قدرت شو.

همدارنګه د ینن محاسباتو د مصر په اړه صهیونېستانو ته غوښتونکې پایله نه لرلـه او مصر هم د مصر د پخواني رییس حسن مبارک تر واقعي مشرۍ لاندې په یو متحد ملت او سیمه ییز قدرت د نړۍ له قدرتونو سره د نېکو دېپلوماتیکو اړیکو په لرلو سره مصر یـې

1. Translated and Edited by: Israel Shahak; The Zionist Plan for the Middle East; p 11

له تجزیې وژغوره او د سینا د دښتې د نیولو له پاره یې د اسراییلو شومه طرحه ناکامه کړه. همدارنګه لبنان هم چې د اسراییلو د داخلي جګړو او اضغال نهژغورل شوی ومخ په متحد کېدو وو.

د ینن طرحې د قسمي بریا تر نشتوالي وروسته د اسراییلو د سیاسي مطالعاتو او ستراتیژیک پرمختګ د مطالعاتو انستیټیوټ د ینن تر طرحې وروسته په یوې ښکاره قطعي سره یوه نوې تګلاره: د قلمرو ساتنې له پاره یې د (A Clean Break: A New Stratey for Securing the Realm)[1] تر نامه لاندې د یوې نوې تګلارې طرحه جوړه کړه د پخوانیو ناکامو تګلارو په پرې کېدو یې ټینګار کاوه او د نوې تګلارې تر نامه یې د اسراییلو اوږدمهالو او لنډمهالو پنځو مهمو او ګټورو ټکو ته پکې اشاره کړې ده.

۱. له اسراییلو څخه د امریکا د کانګرېس ډېر ملاتړ او د اسراییلو هغه تګلارې چې په عمده ډول پکې د امریکا د کانګرس د مهمو غړو د ملاتړ لاسته راوړل، له امریکا سره د مېزاییلي دفاعي تګلارې همکارۍ، د امریکا د کانګرس له غړو څخه ملاتړ چې د اسراییلو په اړه لږ معلومات لري، له تل ابیب څخه بیت المقدس ته د امریکا د سفارت د انتقال له پاره له لاسته راوړي ملاتړ څخه ګټه اخیستل او د امریکا خلکو ته د اسراییلو د وضعبت وړاندې کولو لپاره د سرې جګړې د لفاظیو بیا ژوندي کول پکې شامل دي.

۲. د سولې له پاره د سولې د حل لارې له منځه وړل *(د سولې له پاره سوله چې د دوو هېوادونو د سولې د حل لارې په نامه هم پېژندل کېږي. اوس هم د فلسطین او اسراییلو د جنجال د حل لارې له پاره په نړیواله ټولنه کې د امریکا، اروپایي اتحادیې او فلسطینانو تر منځ منل شوې ده چې په دې ترون کې اسراییل باید د ملګرو ملتونو د امنیت د شورا ۲۴۲ او ۳۳۸ پرېکړه لیکونو ته درناوی وکړي او هغه سیمې چې د ۱۹٦۷ زېږدیز کال د جون د میاشتې په جګړه کې یې د نظامي قواوو په واسطه نیولې وي او په کې باختري کرانه، د غزې تړانګه او ختیځ بیت المقدس شامل دي، بیرته فلسطین ته ورکړي[2])*.

---

۱. د لا زیاتې مطالعې له پاره لاندې کتابونو ته سر ور ښکاره کړئ:

Institute for Research: Middle Eastern Policy, Inc.; Middle East Foreign Policy; Policy Brief; March 27 2003 او همدارنګه Grand F. Smith; Big Israel: How Israel's Lobby Moves America

2. Colin Flint' The Geography of War and Peace: From Death Camps to Diplomats; p 298

د سولې لپاره سوله، تګلارې پر ځای د یوې جامع سولې لپاره د حرکتونو پاکول، د فلسطیني مبارزینو د نظامي ځار له پاره مشروعیت، فلسطین ته د امریکا د مرستو منع کول، هغو دوه زره کلنو تاریخي ادعاوو ته مشروعیت ورکول چې د بیت المقدس ځمکه په یهودیانو پورې اړه لري او د سولې پر وړاندې د اسراییلو په رسمیت پېژندل، په کې شامل دي.

۳. د سیمه ییزو سیالانو محاصره، بې ثباته کول او له منځه وړل چې پکې عربي هېوادونه بې مشروعیته او زورواکي دولت معرفي کړي، په سوریه کې د عرب دښمنه قومونو د استولو له پاره له ترکیې او اردن سره کار، د رسنیو په مرسته د سوریې د دولت د مشروعیت تر پوښتنې لاندې راوستل، د سوریې محاصره، په سوریې حمله، د جولان په لوړو کې د سولې لپاره ځمکې نظریې ردول، له صهیونېستانو سره د عراقي دوسته رژیم په واسطه په عراق کې د شاه هاشمي نصبول او د دې رژیم له خوا د سوریې محاصره، په لبنان کې د سوریې، ایران او عراق ګډول او د عراق پر ځای د لبنان شیعه ګان پر اردن پورې تړل.

۴. اقتصادي اصلاحات چې د اسراییلو د اقتصاد عمومي اصلاحات، د مالیو راکمېدل، د امریکا د مرستو او د دفاع له پاره د امریکا نظامي قواوو ته د اړتیا له منځه وړل او په خپل داخلي اقتصاد متکي کېدل په کې شامل دي.

۵. د صهیونېزم بیا را ژوندي کول چې په کې د ملي احساساتو زیاتېدل او د بقا لپاره د ملي تګلارې جوړول شامل دي.

یهودیانو په تورات کې داسې لاسوهنه وکړه چې بین النهرین هېواد چې د فرات او نیل د سیندونو تر منځ پروت دی د اسراییلو خدایي حق ګڼي او د صهیونېستانو هیله هم د نیل له سیند څخه تر فرات سیند پورې د اسراییلو د قلمرو پراخوالی دی چې صهیونېستان ورته د سترو اسراییلو پروژه (The Greater Israel Project) وایي او د ینن د پلان په ګډون صهیونېستي تګلارې او یوه ښکاره قطع، همدا هدف څاري.

په داسې حال کې چې یهودیان خپل ځانونه د ارتودکس یهودیان بولي، په دې باور دي چې یهودیان د دولت د تشکیل حق نه لري. صهیونېستان له لاس وهل شوي تورات څخه په ګتې اخیستو سره وایي: په هغې ورځ، خدای ﷻ له ابرام (ابراهیم) سره تړون وکړ او ویې ویل: *دا ځمکه مې د مصر له سیند (نیل سیند) څخه تر لوی سیند*

*(فرات سیند) پورې ستا نسل ته وبښله*[1]. لـه هـر ډول ظلـم، چـل او دوکـې څخـه پـه کـار اخیستو د یهودي دولت د رامنځ ته کولو په هڅه کې دي او د غرب عصري تمدن چې د لومړي ځل له پاره یې یهودي – مسیحي اتحاد جوړ کړی دی. اسراییلو سـره د دې سـتر ارمان د پوره کېدو له پاره مرسته کوي.

صهیونېسـتانو د تـورات لـه ایـاتونو څخـه پـه کـار اخیسـتو، یهودیـان او صهیونېسـت مسیحیان دې ته متقاعد کـړل چـې د دې یهـودي حکومـت رامـنځ تـه کېـدل د موعـود مسیح د راتلو له پاره سریزه ده چې له بیت المقدس څخه به په ټوله نړۍ د داود ﵇ او سلیمان ﵇ په څېر حکومت وکړي، په داسې حال کې چې مسـلمانان پـوهېږي، هغـه مسیح چې یهودیان او صهیونېست مسیحیان ورتـه کـار کـوي، دروغـي مسـیح (دجـال) دی.

د صهونېست ټولو مشرانو د اسراییلو پر پـروژې بـاور لاره، پـه دې اړه تئـودور هـرزل د صهیونېستانو پلار د خپلو خاطرو په کتاب کې داسـې لیکـي: *د یهـودي دولـت قلمـرو د مصر له سیند څخه تر فرات پورې ادامه لري*[2] او یهودي خاخام د فیشمن په نـوم چـې د ملګرو ملتونو فلسطین ته د رسیدګۍ په ځانګړې کمېټه کـې د فلسـطین لپـاره د آژانـس غړی و د ۱۹۴۷زېږدیز کال د جولای په ۹مه یې داسې وویل: *د موعود هېواد د مصر لـه سیند څخه تر فرات پورې ادامه ولري او د سوریې او لبنان ځینـې هم په کې دي*[3].




په نقشه کې هغه سیمې په ګوته شوې چې اسراییل یې د نیولو پلان لري

---

۱. د پیدایښت کتاب؛ پنځه لسم باب؛ له ابرام سره د خدای عهد؛ ۱۸ ایه

2. Theodore Harzi; Complete Diaries; Vol. II; p 711

3. International Organization for the Elimination of all forms of Racial Discrimination; Zionism & Racism; p 149

د اسراییلو د ستري پروژې د عملي کولو له پاره یهودیانو د ۲۰۰۱ زېږدیز کال د سپټمبر په یوولسمه یوه دروغجنه ستره حمله په امریکا کې ترسره کړه او د هغې مسوولیت او پړه یې د القاعدې په پخواني مشر اسامه بن لادن او په پای کې پر ټولو مسلمانانو واچوله. د سپټمبر د یوولسمې حمله د یوویشتمې پېړۍ تر ټولو دوکه کوونکې او ناسمه حمله وه، ځکه لا تر اوسه د امریکا دولت له دې حملې څخه په افغانستان او منځني ختیځ کې له اسلام سره په جګړه کې کار اخلي، په دې اړه دا پوښتنې چې: څنګه ۱۹ تنو مسلمانو عربو څلور ځله په یوه ورځ د نړۍ تر ټولو ستر امنیتي پرمختللی سېستم خراب کړ؟ څنګه یې د اسمانڅکو د ازاد سقوط په راغورځېدو سره د فزیک قوانین مات کړل؟ څنګه یې د هغه ودانۍ د اوسپنیزو چوکاټونو د غلیانو په ۱۵۱۰ درجې سانتي ګرېډ سره یې د الوتکو د ۸۰۰ سانتي ګرېډو درجو نفتو پر وړاندې د کیمیا قوانین مات کړل؟

څنګه یې له دوو ودانیو سره د الوتکو د لګېدو له امله درې ودانۍ ړنګې کړې؟ څنګه یې د ودانیو په ځای پر ځای سقوط سره پرته له دې چې تر هغې لاندې بمونه ځای پر ځای کړي د تخریب د سېستماتیکې انجنیرۍ قانون غلط ثابت کړ؟ او په پای کې، څنګه هغه حرارت چې یوه اسمانڅکې ودانۍ ورانوی شي، د حمله کوونکي پېژند پاڼه نشي سوځولی؟ د امریکا د سپټمبر د یوولسمې پېښه د اسراییلو د پروژې او همدارنګه د اسراییلو د اوږد مهالو او لنډ مهالو تګلارو د عملي کولو له پاره د یوې سریزې په توګه وکارېده او امریکا د اسراییلو د سیالانو د له منځه وړلو له پاره د نړۍ د پیاوړي قدرت په توګه رامخکې شو او د اسراییلو له تګلارو سره سم یې د منځني ختیځ په بې ثباته کولو لاس پورې کړ او ویلای شو چې امریکا په رسمي توګه تر اوسه د اسراییلو جګړې مخته وړي.

په دې اړه د څوارلس ستوریز امریکایي جنرال، ونسلي کلارک د ډېمکراسي نو (Democracy Now) له ټلویزیون سره په اعتراف کې وویل: *کله چې پنټاګون ته لاړم او له خپلو همکارنو خبر شوم چې امریکا د اوو مسلمانو هېوادنو د له منځه وړلو پلان لري او کله چې مې دلیل وپوښت، همکارانو مې وویل: کله چې سوټک درسره وي نو هره ستونزه به درته مېخ ښکاري او د امریکا سوټک هم د هغه پوځ دی، نو له دې امله د امریکا پلان هم د دې اوو هېوادونو له منځه وړل دي چې عراق، سوریه، لبنان، لیبیا، سومالیا او ایران هېوادونه دي*[1].

1. Milena Rampoldi; The Tragedy of Palestine and its Children; p 133

امریکا د ناټو په مشرۍ د سپټمبر له یوولسې حملې څخه چې پـه مسـلمانانو پـورې یې هېڅ تړاو نه لاره، له اسلامي نړۍ سره یې د جګړې د سریزې په توګه کـار واخیسـت. لومړی افغانستان او بیا له تروریزم سره د جګړې او د د ډله ییزو وژونکـو د وسـلو لرلـو پـه پلمه یې عراق هم اشغال کړ.

دا چې ولې امریکا دومره سمندرونه لري په منځني ختیځ کې په جګـړه بوخـت دی، په دې اړه ډېرې اقتصادي او سیاسي نظریې او تیورۍ شته چې له هغو څخه ترټولو مهم یې له تروریزم سره جګړه، د نفتي ذخیرو لاسته راوړل، د پطرو ډالـرو د انحصـار سـاتل، د ولسواکۍ او جیوپولیټیکي ګټو لېږدول او خپرول او د سـیمه ییـزو قـدرتونو کنټـرول دي، خو منځنی ختیځ له امریکا څخه ډېر لرې دی او هېڅ کلـه بـه امریکـا تـه جـدي ګـواښ پېښ نه کړي، نو له دې امله هغه نظریه چې امریکـا د خپـل امنیـت سـاتنې لـه پـاره پـه منځني ختیځ کې ښکېل دی ماشومانه ښکاري.

امریکا د نړۍ د سترو نفتي ذخیرو لرونکی دی او د ډېـری وارداتـي نفـت لـه جنـوبي امریکا او افریقا څخه تمویلېږي، نو له دې امله د منځني ختیځ نفتي ذخیرې پـه داسـې حال کې چې په منځني ختیځ کې د امریکا د لاسوهنې له پاره یوه کوچنۍ محرکه قـوه کېدای شي، د مالي او نظامي درنو لګښتونو، او د نظامیانو د وینو اصلي عامـل نـه شـي کېدی، په داسې حـال کـې چـې کېـدای شـي یـو عامـل د پطروډالـرو انحصـار وي. پـه منځني ختیځ کې د امریکا د جګړې عمـده عامـل نـه دی، ځکـه سـوریې د پطروډالـر د انحصار له پاره هېڅ ګواښ نه و جوړ کړی. یو دلیـل چـې ډېـری کارپوهـان پـرې ټینګـار کوي، په منځني ختیځ کې د امریکا په واسطه د ولسواکۍ لېـږدول او خپـرول دي، خـو امریکا له اوږده مهال راهیسې پـه نـړۍ کـې د غیـر ولسـواکو هېوادونـو متحـد کېـدو تـه وفادار دی، نو دا به احمقانه وي، که څوک فکر کوي چې امریکا د ولسواکۍ د خپـراوي له پاره په منځني ختیځ کې په جنګ بوخت شوی دی او بلاخره ځینې کسان د چـین او روسیې په شـان د ښـکاره کېـدو پـه حـال کـې ځواکونـو سـره جیوپـولیتیکي سـیالي پـه منځني ختیځ کې د امریکا د مداخلې عامل ګڼي، خو د چین او روسیې د کلابنـد کولـو له پاره امریکا ته د کنټرول له پاره ښې سیمې د فلیپین، وېټنام، مرکـزي اسـیا او بالکـان په څېر هېوادونه دي.

پورته یادې شوې تیورۍ، د امریکایانو، د امریکا د سیاست پوهانو او نړیوالـو د دوکـه کولو له پاره ښه وسیله کېدای شي. په داسې حال کې چې په منځني ختیځ کې جګـړه د اسـراییلو یـوازینۍ سـتراتیژیکه موخـه عملـي کـوي څـو د منځنـي ختـیځ د اسـلامي هېوادونو له کمزوري کېدو سره اسراییل په دې وتوانېږي چې خپلـه سـتره پـروژه پلـې او

عملي کړي او د پکس يهود (Pax-Judaica) په نامه د يهود-صهيونېستي امپراتوري جوړه کړي.

## ستره جګړه، ملحمه يا آرماګېډون (ARMAGEDDON)

د دې له پاره چې اسراييل وتوانېږي يوه امپراتوري چې د يهوديانو دوه زره کلن خوب دی، د بين النهرين په ستره سيمه کې چې د سوريې لويه برخه، تقريباً نيم عراق، ټول اردن، لبنان، کويټ، فلسطين او د مصر او عربستان ځينې برخې پکې شاملې دي د خپل موعود مسيح له پاره جوړې کړي يا بايد اسراييل په ناڅاپي توګه لوی شي او يا هم نړۍ کوچنۍ شي! دا چې د اسراييلو په ناڅاپي توګه لوېدل يوې معجزې ته اړتيا لري او د لويو او د صعود په حال کې د سترو قدرتونو په موجوديت کې ناشونې ده، نو له دې امله اسراييل د نړۍ د راکوچني کولو او د سترو او سيمه ييزو قدرتونو د له منځه تلو په فکر کې دي. د نړۍ راکوچني کول او د سترو قدرتونو له منځه وړل يوازې د اتومې جګړې په واسطه شوني دي چې اسراييل په کې د جګړې هېڅ لوری نه وي او نور قدرتونه د اتومي وسلو په واسطه يو بل له منځه يوسي او اسراييل وکولای شي د نړۍ د هجمون (Hegemon) هېواد په توګه د امريکا ځای ناستی شي چې دې پړاوونو ته د لېږد له پاره اوسنی وخت ډېر نږدې شوی دی.

سترې راتلونکې جګړې ته يهوديان او مسيحيان آرمګېډون او مسلمانان ورته ملاحم وايي، خو د نورو دينونو پر خلاف صهيونېستان د دې جګړې د پيل کېدو هڅه کوي په داسې حال کې چې نور دينونه د دې جګړې پيل نه غواړي. درې واړه ابراهيمي دينونه په دې باور دي چې په شام کې د آخرالزمان جګړې په شام کې چې لبنان، فلسطين او د سوريې ستره برخه يې سوريه ده راځي، خو اسلام د دې پېښو دقيقه لړۍ داسې بيان کړې ده چې د وروستۍ زمانې د علم له مطالعې پرته، د اوسنيو اقتصادي او سياسي پېښو درک ناشونی ښکاري او هر مسلمان بايد د وروستۍ زمانې د جګړو او فتنو په اړه د اسلام وړاندوېينو ته رجوع وکړي څو په دې فتنو کې ښکېل نه شي او په دې ګډوډ وخت کې د ځان له پاره سمه لاره وټاکي.

حضرت محمد ﷺ په يوه حديث شريف کې فرمايي: هغه وخت نږدې دی چې د عراق د خلکو له پاره به يو قفيز (خوراک) او يو درهم هم رانشي، وپوښتل شول له کوم ځايه؟ انحضرت ﷺ وفرمايل: د عجمو (غير عربو) له خوا، هغوی د دې جيرې مخه نيسي. بيا يې وفرمايل: هغه وخت نږدې دی چې د شام د خلکو له پاره به يو دينار او يو

مُد (ډوډۍ) رانشي. ومو ویل: له کومه ځایه؟ ویې فرمایل: د *رومیانو له لوري. بیا یوه شېبه غلی و او بیا یې وفرمایل: په پای کې به زما امت هغه خلیفه وي چې مالونه موټی موټی وېشي او نه به یې شمېري (په سخاوت سره یې بښني)*. په کوېټ باندې د عراق تر حملې څلور ورځې وروسته د ۱۹۹۰ زېږدیز کال د اګست میاشتې په دویمه د ملګرو ملتونو د امنیت شورا ٦٦١ پرېکړه، پر عراق یې د سوداګرۍ جامع بندیز ولګاوه. دې بندیز د ملګرو ملتونو د سازمان د غړو په واسطه د عراق هر ډول تولیدات، واردات او همدارنګه پر عراق د هر ډول مالونو خرڅلاو منع کړی و[1].

همدارنګه سوریه په ۱۹۷۹زېږدیز کال کې وروسته له دې چې امریکا سوریې ته د تروریزم د یوه ملاتړي هېواد خطاب وکړ، تر اقتصادي بندیزونو لاندې راغله. سره له دې چې دې بندیزونو د ۱۹۷۹زېږدیز کل څخه وروسته زور واخیست چې په دې بندیز په ۲۰۱۱ زېږدیز کال ډېر نور محدودیتونه هم د اروپایي اتحادیې او امریکا له لوري ولګول شول.

په پورته حدیث شریف کې حضرت محمد ﷺ د غیر عربو، یعنې ټولې نړۍ له لوري د عراق تحریمول اټکل کړي دي او د حیرانتیا وړ خبره دا ده چې پر عراق بندیز د ملګرو ملتونو د غړو په واسطه چې تقریباً ټوله نړۍ په کې ده وضع شول، او له دې هم د حیرانۍ وړ دا ده چې په سوریې بندیزونه د اروپایي اتحاد او امریکایانو (رومیانو) له لوري وضعه شول.

حضرت محمد ﷺ له دې بندیزونو وروسته شرایط یې د سخاوتمند خلیفه (حضرت امام مهدي) په راتګ سره، وړاندوینه کړې وړاندې کړي چې د دربیمې نړیوالې جګړې وروسته او هغه مهال چې ټول امت به په فتنې او ظلم کې وي، راڅرګندېږي. انحضرت ﷺ وفرمایل: قیامت به تر هغې رانه شي چې د فرات د سیند، د سرو زرو غر راڅرګند نه شي او خلک د هغې له پاره سره وجنګېږي او له هرو سلو تنو څخه ۹۹ به وژل کېږي او هر څوک به وایي: *کېدای شي زه پاتې شم*[2] او په یو بل روایت کې راغلي دي: *مسلمانان باید څه ترې وانخلي*[3]. د فرات سیند چې له ترکیې څخه یې سرچینه اخیستې ده، له سوریې او عراق څخه تېرېږي د سوریې او عراق د فرات د سیند په اوږدو کې د نفتو ډېرې ذخیرې پرتې دي. نفت د تېرې او اوسنۍ پېړۍ د ارزښت لرونکو

1. Spencer C. Tucker; The Encyclopedia of Middle East Wars. The United States in the Persian Gulf, Afghanistan and Iraq Conflicts; p 598

۲. صحیح مسلم؛ حدیث ۷۴۵۴

۳. صحیح بخاري؛ حدیث ۷۱۱۹

سوداګریزو مالونو ځخه دی چې د صنعتي هېوادونو اقتصادي پراختیا او د صنعت کچه ټاکي او اقتصاد پوهان ورته توره طلا هم وايي.

له سعودي عربستان سره د امریکا تر تړون (پطروډالرو) ځخه وروسته نفت د امریکا د پیسو د ملاتړ په توګه کار وکړ او د اسعاري ملاتړ په توګه یې د سرو زرو ځای ونیو. نو کولای شو ووایو چې په تورې طلا باندې ستره جګړه چې د فرات د سیند په اوږدو کې ده راځرګنده او پیلېږي.

حضرت محمد ﷺ هغه جګړه چې د فرات د سیند په سرو زرو کېږي دومره سخته ګڼلې چې په کې به له هرو سلو تنو جنګیالیو ۹۹ تنه وژل کېږي. بشري تاریخ د سختو جګړو شاهد دی خو تاریخ د داسې جګړو شاهد نه دی چې له هرو سلو تنو یو تن ژوندی پاتې شي او پاتې ۹۹ تنه ترې ووژل شي، نو په شام کې ښکېلو قدرتونو ته په کتو او د الله ﷻ د رسول ﷺ د وینا له مخې به دا جګړه یوه رسم شوې جګړه نه وي، بلکې داسې جګړه به وي چې په جګړه کې به د ډلهییزو وژنو له وسلو کار اخیستل کېږي او زموږ د وخت د ډلهییزو وژنو تر ټولو خطرناکه وسله، اتومي وسله ده او نړۍ په یوه داسې پړاو کې ده چې هره لحظه په کې په شام کې د سترو قدرتونو چې ناټو، روسیه، ایران، سعودي عربستان او ان چین دي د جګړې وېره شته ده.

حضرت محمد ﷺ د جګړې شدت داسې بیان کړی چې الوتونکي به په اسمان کې راپرېوځي چې کېدای شي د راډیو اکټیف (Radio Active) وړانګو په واسطه دا کار وشي او همدارنګه رسول الله ﷺ پخوانیو وسلو او سواریو ته د خلکو راګرځېدل اټکل کړي دي چې د ټکنالوژۍ له منځه تګ په کې شامل دی او دا کار یوازې د اتومي جګړې په واسطه شونی دی. په دې اړه حضرت محمد ﷺ فرمایي: *قیامت به تر هغې رانه شي چې میراث ونه وېشل شي او خلک د غنیمت په وېش خوشاله نه شي او حضرت محمد ﷺ شام ته د لاس په اشارې وویل: د مسلمانانو پر وړاندې یو لښکر تیارېږي او مسلمانان به هم د هغوی پر وړاندې ځانونه تیار کړي. راوي وايي: ما وویل: ستاسو موخه رومیان دي؟ ویې فرمایل: هو... خدای ﷻ کافرانو ته ماتې ورپه برخه کوي او لویه وژنه رامنځ ته کېږي چې بېلګه یې نه ده لیدل شوې، تر دې چې الوتونکي به په هوا کې مړې شي. هغوی به په همدې وضعیت کې ژوند کوي چې له یوې سترې جګړې به خبرېږي او یو فریاد کوونکی به ورته اواز کوي: دجال د هغوی په کور او اهل باندې حمله کړې او د هغوی د ازادۍ اراده لري. په دې وخت کې به هغوی هغه مالونه او غنیمتونه چې ورسره دي، اچوي او د دجال په لوري به ورځغلي او لس سپاره به د*

*پېش قراول په توګه لېږي. حضرت محمد ﷺ وفرمايل: زه د هغوی او د پلرونو په نومونو يې او د اسونو په رنګونو يې پوهېږم*[1].

الله ﷻ قران ته هغه کتاب ويلی دی چې هر څه پکې روښانه دي، لوی څښتن ﷻ په دې اړه فرمايي: *او موږ دغه کتاب چې د هر څه روښانوونکی دی او د مسلمانانو لپاره لارښوونکی او رحمت او زيری ورکوونکی دی، پر تا نازل کړ.*[2] نو اتومي جګړې چې د بشريت په تاريخ کې تر ټولو مهمې پيښې وې، قران کريم څرګندې کړې دي. الله ﷻ فرمايي: *په څرګنده توګه موږ هغه څه چې له (ونې، نبات، حيوان، سيند او نورو اثارو څخه) د ځمکې پر مخ دي، د ځمکې ښکلا مو ګرځولې څو هغوی و ازمايو چې د عمل له پلوه يې کوم يو ښه دی او له شک پرته موږ له هغو څه چې پر ځمکه دي، بې بوټې خاوره به ترې جوړه کړو.*[3]

کارل سګان (Carl Sagan) د اتومي جګړو د اغېزو په مطالعو کې د نوبل جايزې د ګټونکي جوشنا ليډربرګ (Joshna Lederberg) همکار و او همدارنګه کارل د ناسا (NASA) له سازمان څخه د ساينسي استثنايي لاسته راوړنې جايزه هم تر لاسته کړې ده، نوموړی پرته له دې چې اتومي جګړه لرې نه بولي وايي: *له احمقانو او لېونيانو پرته، ټول پوهېږي چې اتومي جګړه به يوه نادره انساني فاجعه وي. يو معمولي اتمي بم له دوه مېګا ټنو مثمريت سره، له دوه ميليونه ټنه ټرای‌نايټروتلويين (TNT) سره معادل دی، چې د دويمې نړيوالې جګړې پر مهال له ټولو کارول شوو چاودېدونکو توکو سره برابر دی.*

*اتومي جګړه د اوزون د طبقې له قسمي منځه تلو لامل کېږي او د ټولې خاورينې کُرې بيولوژي به له جدي پايلو سره مخ کړي او ځمکې ته د لمر د وړانګو رسېدل به راکم شي چې د نباتاتو له پاره به ژوند ستونزمن کړي*[4]. نو کولای شو ووايو چې د اتومي جګړې يوه اغېزه به پر بې بوټو دښتې د ځمکې بدلېدل وي چې الله ﷻ په دې اړه فرمايي: *نو، هغې ورځې ته په تمه اوسه چې په اسمان کې يو څرګند لوګی ښکاره شي.*[5] د کارل او نورو پوهانو د څېړنو له مخې، د اتومي جګړې يوه پايله دا ده چې په

---

۱. صحيح مسلم؛ حديث ۷۴۶۳

۲. النحل سوره؛ ۸۹ ايت؛ وَنَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ تِبْيَانًا لِّكُلِّ شَيْءٍ وَهُدًى وَرَحْمَةً وَبُشْرَى لِلْمُسْلِمِينَ ﴿۸۹﴾

۳. الکهف سوره؛ ۷ او ۸ ايتونه؛ إِنَّا جَعَلْنَا مَا عَلَى الْأَرْضِ زِينَةً لَّهَا لِنَبْلُوَهُمْ أَيُّهُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا ﴿۷﴾ وَإِنَّا لَجَاعِلُونَ مَا عَلَيْهَا صَعِيدًا جُرُزًا ﴿۸﴾

4. Carl Sagan; The Nuclear Winter: The World after Nuclear War; p 1-5

۵. الدخان سوره؛ ۱۰ ايت؛ فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَاءُ بِدُخَانٍ مُّبِينٍ ﴿۱۰﴾

اسمان کې له وریځو څخه لوړ ۱۵۰ میلیون ټنه دود مستقر دی او د دود په واسطه دا تیاره حتا کېدی شي د ځمکې د یخ بندان کېدو لامل هم شي، همدرانگه دود د قیامت له سترو نښو څخه هم دی. الله ﷻ فرمايي: او هېڅ داسې سیمه نه شته پرته له دې چې مور د قیامت له ښکارېدو وړاندې، د هغه ښار خلک یا هلاکوو او یا هم په سخت عذاب یې خته کوو. دا حکم په کتاب (حق عزلي علم) کې مسطور دي.[1] درېیمه نړیواله یا اتومي جگړه د زیاتو ښارونو د له منځه تلو لامل گرځي او هغه ښارونه چې د اتومي بمونو له چاودېدو څخه امن پاتې کېږي، سخت عذاب به یې ونیسي، ځکه ښارونه به هغه سیمې وي چې د خپلو اوسېدونکو لومړنی اړتیاوې تمویلوی نشي او دا اولیه اړتیاوې لکه خواړه، اوبه او نور ښارونو ته لېږدول کېږي او د نړیوالې جگړې د واقع کېدو پر مهال به اړیکې پرې کېږي.

کاغذي رواج شوې پیسې خپل اعتبار له لاسه ورکوي او سوداگریزې اړیکې هم پرې کېږي چې په ښارونو کې د غذایي موادو د کمولي لامل گرځي او اوسېدونکي یې د قحطۍ له دردناک عذابسره مخ کېږي. همدارنگه د ځمکې په فضا کې د الکترو مقناطیسي اهتزاز په رامنځ ته کېدو سره، الکترونیکي الې له منځه ځي او د اوبو د پاکوالي او د فاضله اوبو د خدمتونو په څېر ښاري خدمتونه له منځه ځي چې په ښارونو کې به ژوند ډېر ستونزمنوي او د خلکو تر منځ د اغتشاشاتو د رامنځ ته کېدو او ناروغیو د زیاتوالي او نورو عذابونو لامل گرځي.

د سترې جگړې له پاره نړیواله صحنه چې اسراییلو یې کلونه کلونه هیله په سر کې لرله، تیاره ده، ځکه له یوې خوا غرب او د غرب عصري تمدن په زوال کې دی او له بلې خوا د ظهور په حال کې قدرتونه، نړۍ د څو قطبي لور ته بیایي او د امریکا په مشرۍ کبرجن غرب نشي کولای په واک کې شریک سیالان وزغمي.

## د غرب زوال

د عامه خدمتونو ستر کارونه، لوړې او اسمانڅکې ودانۍ، ستر او ښایسته ښارونه، ځواک او نظامي پرمختللې وسلې، بروکراتیک قوي سازمانونه او نورې ځانگړنې د غرب د عصري تمدن د نه زوال وړ ښیي، خو دا ځانگړنې د روم په پخواني تاریخي او پیاوړي

[1]. الاسراء سوره: ۵۸ ایت؛ وَإِن مِّن قَرْيَةٍ إِلاَّ نَحْنُ مُهْلِكُوهَا قَبْلَ يَوْمِ الْقِيَامَةِ أَوْ مُعَذِّبُوهَا عَذَابًا شَدِيدًا كَانَ ذَلِك فِي الْكِتَابِ مَسْطُورًا ﴿۵۸﴾

تمدن کې هم موجودې وې، خو د هغو غلطیو لـه املـه چـې د امپراتـورۍ پـر مهـال یـې ترسره کړې.

د قیصرانو ستره امپراتوري داسې ړنګه شوه چې کنډوالې یې په اروپا کې پېړۍ پېـړۍ تیاره جوړه کړې وه او د پخواني سیال (روم امپراتورۍ) په څېر به د امریکا امپراتوري هم د هغې په پل قدم ږدي. کله چې د دوی یوه چارواکي سنیکا (Seneca) خبـرداری ورکـړ چې روم د زوال خواتـه روان دی، خلکـو (د روم د زوال؟) پـه حیرانتیـا سـره پـه هغـه یـې پورې خندل او اوس هم چې علمـاء د امریکـا د امپراتـورۍ پـه زوال غږیـږي نـو ورپـورې خاندي.

دا یو انکار نه منونکی حقیقت دی ځکه چې د غرب متکبرانـه سیاسـتونه، اقتصـادي کړکېچونـه او د ټولنـو د بنسـټ ماتـه د غـرب د عصـري تمـدن کښـتۍ د داسـې سـرابي ساحل پر لور بیایي او په پای کې په داسې جهیل کې ډوبېږي چې پـه خپلـه یـې جـوړ کړی دی. په دې اړه د رومیانو د تاریخ څېړندوی لیکي: *د دې له پـاره چـې پـه روم کـې ویجـاړوونکي ځواکونه اغېزمن وې، یوه پېړۍ او یا ډېرې ته اړتیا وه خـو د دې ویجـاړوونکو ځواکونو د عصري چټکتیـا کچـه ډېـره ګړنـدۍ ده. د روم د امپراتـورۍ د وروسـتیو ورځـو تاریخي حکایات، د نن ورځې قیصرانو له پاره له ځانه سره یو خبرداری لري*[1].

په غرب کې فرد پالنه، نشه یي توکي، شراب، زنا او ناروا اړیکې، همجنس پالنه او نور انحطاطونه د دې لامل شول څو خلک پکې ناخوښـه شـي، پـه ډول ډول روانـي نـاروغیو اخته شي او ټولنیز بنسټونه له منځه لاړ شي. د ټولنې یو بنسټیز او مهم اسـاس کـورنۍ ده چې په ملي هویت کې تر ټولو مهم عنصر ګڼل کېږي د فـردي شخصـیت، ارزښـتونو، اخلاقو او ډله ییز ارزښت ته د وفادارۍ بنسټ ږدي.

په غرب کې د کورنۍ بنسټ د زوال په حال کې دی چې د کـورنۍ زوال بـه د روم د امپراتورۍ په څېر، د غرب د عصري تمدن او فرهنګ زوال هم ولري، ځکـه چـې کـورنۍ لومړنۍ کوچنۍ ټولنه او ښوونځی دی چې ښه او بد چلندونه او ارزښتونه پکې جوړېږي. کورنۍ ټولنه جوړوي.

کله چې په کورنۍ کې ماشومان لویېږي، لومړی کـورنۍ تـه او بیـا ټـولنې او پـه پـای کې فرهنګ او ملت ته وفاد لرل زده کوي، خو هغه څوک چې کورني ارزښتونه ونه لـري. د خپلې کورنۍ، ټولنې، فرهنګ او تمدن پر وړاندې هېڅ ډول مسولیت نه احساسـوي او د بې مسوولیتۍ حس یې د دې لامل ګرځي څو فرد د خپلو شخصي ګټو د لاسته راوړلو

1. H. J. Haskell; The New Deal in Old Rome; p 232

له پاره په داسې کارونو لاس پورې کړي چې د ټولنې او یا هم د ډله ییزو اړیکو په زیان وي.

تاریخ پوهان د روم د امپراتورۍ د لوړېدو یو ستر لامل پیاوړې کورنۍ اړیکې ګڼي او د د راپرځېدو یو ستر لامل یې د کورنۍ د بنسټ له منځه تلل ګڼي، په دې اړه فیلیپ مایرز داسې لیکي: *هغه لومړنی واحد چې د رومي ټولنې د راتګ لامل وګرځېد، کورنۍ وه او د کورنۍ د جوړېدو تر ټولو مهم عنصر د پلار واک دی. دا به ستونزمه وي چې د روم په برخلیک او تاریخ کې د دې ټولنې (کورنۍ) اغېز و نه شمېرو. د همدې عفتونو زانګو وه چې د روم له ستروالي او قدرت سره یې مرسته وکړه او د روم امپراتورۍ ته یې نړیوال واک ور وبانبه*[1].

کارکوپینو د دې امپراتورۍ د زوال د لامل په اړه لیکي: *په روم کې د دویمې میلادي پېړۍ پر مهال د شخصیت پله سسته وه. د پلرونو یختنیوونکې څېره په کورنیو کې مړاوې شوه او پر وړاندې یې د هر کور د بچیانو څېره بدله شوه او د ټولنې نازدانه او بې تربیه بچیان چې په عیاشۍ معتاد وو او ادب یې له لاسه ورکړی و، هرې خواته خواره شول. هغه همدارنګه، طلاق چې د اوسني غرب تر ټولو ستره ستونزه ګڼل کېږي د روم د امپراتورۍ د زوال یو لامل ګڼي او زیاتوي: له دې وروسته روم د طلاق د پراخې ناروغۍ شاهد شو او رومیانو د بل واده له پاره طلاق اخیسته او د طلاق له پاره یې واده کاوه*[2]. هغه بل لامل چې د غرب د زوال سبب شوی او همدارنګه په وروستیو کې د روم په امپراتورۍ کې لیدل کېده، مادي علم او په اصطلاح رسمي علم دی.

په غرب کې علم په بشپړه توګه مادي شوی دی او خلک علم یوازې د مالي ګټو د لاسته راوړو له پاره زده کړې کوي، په حقیقت کې خلک، علم د دې له پاره زده کوي چې پیسې لاسته راوړي او هغه بیا د خپلو بچیانو په زده کړه لګوي چې په دې منځ کې انساني ارزښتونه، انساني معنویت او د ژوند موخه چې له هغې پرته هر انسان نیمګړی وي، هېر شوي دي.

هغه کسان چې علم د پیسو په واسطه او د پیسو د لاسته راوړلو له پاره زده کوي، له خپل علم څخه د کار اخیستو پرمهال د ټولنې ګټې په پام کې نه نیسي او ګټه پالونکی وي چې ټولیزې، ملي او دیني موخې له منځه ځي او کرار کرار د دې پر ځای چې خلک د ټولیزو ګټو له پاره کار وکړي، ټولنې ته د خپلو شخصي او مادي موخو له پاره د یوې وسیلې په سترګه ګوري چې ټولیز ارزښتونه او وفاداري په کې له منځه ځي او

1. Philip Van Mess Myers; Rome: Its Rise and Fall; pp 11-12

2. Jerome Carcopino; Daily Life in Ancient Rome; pp 78, 97,100

ټولنه د فلاکت لور ته کاږي. په دې اړه په اتلانتیا کې د موهوز پوهنتون رییس دوکتور بنجامین (Morehouse Colledge) وایي: *موږ د تاریخ په اوږدو کې ډېر زده کوونکي لرل، ډېر لېسانس وګړي مو فارغ کړي دي خو انسانیت مو ناروغ دی. موږ پوهې ته اړتیا نه لرو ځکه پوهه لرو، بلکې زموږ انسانیت، معنویت ته اړتیا لري*[1].

په غرب کې معنویت له منځه تللی او د معنویت د له منځه تلو یو ستر لامل له دیني ارزښتونو او دین سره د غربي عصري تمدن علني او دایمي مبارزه ده چې معنوي تشه د ټولنیزو ګډوډیو، پوچ پالنې او د ټولنې د زوال لامل ګرځي. عیاشۍ د روم امپراتوري د زوال لور ته یوړه او د حیرانتیا وړ هم دا ده چې د غرب عصري تمدن هم، عیاشۍ ځنګ ته کړی دی.

تر دویمې نړیوالې جګړې وروسته افرد ایسنستید (Alfred Eisenstaedt) مشهور امریکایي عکاس د امریکا د سمندري قواوو کښتۍ چلوونکي، یو عکس چې د ټایمز په میدان (Times Square) کې په سپین لباس سره یوه ښځه چې اوس پر جاپان د بریا د ورځې په نامه یادېږي ښکلوي، چاپ کړ او غربي رسنیو دغه انځور چې د جنسي ازادۍ ښکارندوی دی، دومره خپور کړ چې اوس د غربي عصري تمدن د پېژندلو یو عنصر همدا په عام محضر جنسي ازادي او جنسي عملونه دي.

غربي ځوانان یې عیاش کړي دي او دا عیاش ځوانان د ګډا د شپو، شرابو بوتلونو او نامشروعو جنسي اړیکو له لرلو پرته له ژونده بل څه نه غواړي او ټوله دنیا یې همدا شیان دي چې ټولیزو ارزښتونو ته هېڅ ډول وفاداري نه لري څرنګه چې کارل ویلسن د خپل کتاب عنوان ټاکلی دی، غربیانو خپله نڅا په مرګ بدله کړه[2].

د غرب نړۍ په بېرته نه راګرځېدونکي اقتصادي زوال کې قرار لري، په دې اړه د لندن د اقتصاد د پوهنتون انګلیس اقتصاد پوه لیکي: *هېڅ عالم نه غواړي دا رد کړي چې په څو وروستیو کلونو کې د نړۍ په اقتصادي بنیه کې د اندازه کولو وړ بدلونونه راغلي دي*[3].

امریکا د ناټو په مشرۍ خپل ځان له تروریزم سره د جګړې په پلمه په اسلامي نړۍ کې د اسراییلو پر ستراتیژیکو جګړو بوخت کړ او دې جګړو د امریکا په مشرۍ د غربي

---

1. Michgan Alumnus; Oct 1963; p 148

2. Carl W. Wilson; Our Dance turned to Death

3. International Relations; 26 (4); p 372 (Power Shifts, Economic Change and the Decline of the West?; Michael Cox)

امپراتوری د پای ته رسېدو له پاره پیل رامنځته کړ. لـه اسـلام سـره د امریکـا جگـړې، دا هېواد دومره پوروړی کړی چې د پور ببرته ورکول ناشوني دي.

په دې اړه د امریکا د خزانې وزارت د معلوماتو پر بنسټ *له ۲۰۰۰ زېږدیز کال څخـه تر ۲۰۱۵ زېږدیز کال پورې د امریکا پور له ۵تریلیونه ډالرو څخـه ۱۸تریلیونـه ډالـرو تـه رسېدلی*[1] او د منځني ختیځ، افغانستان او نورو ستراتیژیکو سیمو د جگړو د ترسره کولـو له پاره د امریکا د پوروړي کېدلو د لوړوالي کچه لا هم مـخ پـه لـوړوالي ده، څرنگـه چـې مایکل کاکس لیکي: *د امریکا متحده ایالات له یوه نه مقاومت کـوونکي اقتصـادي زوال سره مخ شوی دی، چې که داسې ادامه وکـړي یـا د امریکـا لـه دې کمـزورۍ څخـه نـور خلک گټه اخلي او یا به امریکا د خپلې مشرۍ قدرت له لاسه ورکړي*[2]. د امریکا سـیالانو د امریکا له دې کمزورۍ گټه واخیسته او په داسې حال کـې چـې امریکـا د جگـړې پـر سوداگرۍ بوخت دی، سیالان یې په ځانگړې توگه چین پـه سـوداگرۍ بوخـت دی او د نړیوالې اقتصادي مشرۍ له پاره تیاری نیسي.

د امریکا په واسطه د نړیوال اقتصاد د کنټـرول تـر ټولـو د قـوت مولفـه، د امریکـا تـر مشرۍ لاندې نړیوال سـازمانونه لکـه د پیسـو نړیـوال صـندوق او نړیـوال بانـک دی. پـه وروستیو لسیزو کې لومړی د نـړۍ پنځـو سـترو اقتصـادي هېوادونـو د برازیـل، روسـیې، هندوستان، چین او جنوبي افریقا په گډون نوی نړیـوال بانـک (BRICS) او بیـا چـین د اساسـي بنسـټونو (زېربنـاوو) د پـانگونې د بانـک (AIIB) پـه نامـه د مـالي او اقتصـادي سازمانونو د بدیل په توگه د واشنگټن تر مشرۍ لاندې جوړ کړ. یو بـل مهـم عنصـر چـې امریکا ته یې نړیـوال اقتصـادي قـدرت ور وبانبـه، د امریکـا د ډالـر او پطروډالـرو نړیـوال کېدل دي چې د چین او روسیې په څېر سیال هېوادونه یې د امریکا پـه کمـزوري کولـو او د غربي بدیلو ټولنو پر جوړولو له غرب او پـه ځـانگړې توگـه ډالـرو سـره یـې اقتصـادي جگړه پیل کړې ده، ځکه دا هېوادونه پرته له دې چې خپلې ډالري ذخیرې یې بـازار تـه وړاندې کړې دي.له سرحد ور اخوا سوداگریو کې په خپل او د متحدانو تر مـنځ د ډالـرو پر ځای له سرو زرو او یا خپلو ملي پیسو څخه کار اخلي، دا کار د دې لامل گرځي چـې ډالرو ته نړیواله غوښتنه راټیټه شي او چاپ شوي ډالر یـو وار بیـا پـه امریکـا کـې ښـکته پورته شي چې په دې هېوادونو کې به د پیسو تورم او د ډالرو سقوط له ځانه سره ولـري، په دې اړه شیخ عمران نظر حسین لیکي: *د غرب د پولي نظام د تکامل وروستـی صحنه*

1. US Treasury Direct; Historic Debt Outstanding-Annual 2000-2015 (www.treasurydirect.gov)

2. International Relations; 26 (4); p 372 (Power Shifts, Economic Change and the Decline of the West?; Michael Cox)

*به له نن ورځې څخه د بدې نړيوالې الکترونيکې پيسې د رامنځ ته کېدو شاهده وي چې کاغذي پيسې له نننۍ چل سره د دې ځای نيسي. په حقيقت کې، وروستۍ صحنه پيل شوې ده او د پيسو ټول نړيوال مجرمين، اوس يو نړيوال کړکېچ ته اړتيا لري (لکه پر ايران د اتومي حملې په څېر چې تر اوسه نه ده پيل شوې) څو امريکايي ډالر او وروسته د نړۍ ټولې کاغذي پيسې سقوط وکړي او د سرو زرو لـه بيې سره په پرتلې د ډالرو سقوط کولای شو چې د دې پيسو پر وړاندې ورځ تر بلې د زياتېدو په حال کې وګورو*[1].

د وروستيو کلونو سياسي سترې پېښې په نـړۍ کـې د غربـي سـلطې پـالنې او اغېـز ښندنې د کموالي ښکارندوی دي. تر ټولو ستره بېلګه يې د ۲۰۱۴زېږديز کـال اوکـراين دی چې د *بارک اوباما د وينا له مخې، امريکا د قدرت د انتقال لـه پـاره يـوه معاملـه*[2] د غرب د پلوي دولت د نصب له پاره له هغه دولت څخه چې د روسې متحـد و، وکـړه، خـو روسيه د ظهور په حال کې ده او اوس مهال د امريکا يو ستر سيال هېواد دی چې نـړۍ يې دوه قطبه کړې ده.

روسيې لوبه په خپلې ګټې کړه او د يوې ټولپوښتنې په ترسره کولو سره يـې کريميـا چې د کمونېستانو پر مهال په اوکراين پلورل شوې وه، يو وار بيا يې روسيې ته ورکـړې او هغه امريکا ته چې تر سړې جګړې وروسته د واک په نشه کې وو او ځان يې په نړۍ کـې تر نورو بېل ګاڼه، ستره خپکۍ يې ور وښوده.

غربيانو د روسيې دا حرکت ونه زغمه، ځکه چې کريميا د سمندري ځواکونو لـه پـاره يوه مهم او ستراتيژيک بندر دی او د روسيې په واسطه د کريميا نيول په نه باورېـدونکې ډول د روسيې نظامي قدرت زياتوي، نو ځکه غربيانو د اقتصادي تحريمونو د وضعه کولو هڅې وکړې او ويې غوښتل چې له دې بنديزونو څخه په کار اخيستو، د روسـيې پرېکـړو ته په خپله ګټه بدلون ورکړي؛ خو روسيه تر سړې جګړې وروسته کمزورې نـه شـوه او نـه هم غرب تر سړې جګړې وروسته خپل قدرت وساته او روسيې پـه دې ډول شـرايطو سـره تر سړې جګړې وروسته غربيانو ته يوه هلاکوونکې لومړنۍ ضربه ورکړه.

په سوريه کې هم چې امريکا د اوو اسلامي هېوادونو په ړنګولو اخته وه او غوښتل يې د سـوريې دولـت ړنـګ کـړي، روسـيې لاسـوهنه وکـړه او د امريکـا اوږدمهـالی پـلان يـې ونګاوه او ناکام يـې کـړ، لـه بلـې خـوا چـين چـې د روسـيې پـر وړانـدې يـې د غربيـانو

1. Imran N. Hosein; The Gold Dinar and Silver Dirham; Islam and the Future of Money; p 9

2. Edited by J. L. Black and Michael johns; Assisted by Alanda D. Theriaulf; The Return of the Cold War; p 20

کمزوري ليدلې وه، د چين، تاپوان، فليپين او ويتنام د ځمکو په اړوند اوبو کې يې د مصنوعي نظامي جزيرو پر جوړولو پيل وکړ او د غربيانو د تشو خبرداريو سره سره يې، د چين د جنوب په سمندري اوبو کې د خپل هېواد ځمکنۍ پراختيا ته ادامه ورکوي.

د غرب اوږدمهاله متحدان چې د غرب امپراتوري د زوال په حال کېويني، کرار کرار د غرب له اتحاده لاس اخلي او د نوي راڅرگندېدونکو قدرتونو پر لور لکه چين او روسيې ته لاس اوږدوي چې تر ټولو ستره بېلگه يې فليپين دی. همدارنگه په غرب کې عام خلک د نظامي او سياسي حاکمو سازمانونو، ټولنو او تشکيلاتو له امله بې اعتباره او بدبين شوي دي؛ د بېلگې په توگه له اروپايي اتحاديې څخه د برتانيې له وتلو /طلاق *(Brexit)*[1]، په نورو هېوادونو کې د ناټو د لاسوهنو پر وړاندې لاريونونه او په غربي هېوادونو کې د پاپولېستانو[2] *(Populists)* له شهرت څخه يادونه وکړو.

الله ﷻ هم په خپل قران کريم کې د غرب او د غرب په څېر ټولنو د زوال زېری ورکړی دی. الله ﷻ خپل بشريت ته نصيحت کوي چې د پخواني تاريخ او قومونو له داستانونو څخه د عبرت درس واخلي، په دې اړه الله ﷻ فرمايي: *ورته ووايه: په ځمکه کې وگرځئ راوگرځئ نو له تأمل سره وگورئ چې د گنهکارانو عاقبت څه ډول و.*[3] الله ﷻ فرمايي: او کله چې وغواړو کوم ښار هلاک کړو، نو خوشگذره خلک يې دې ته هڅوو چې پکې انحراف (او فساد) ته لمنه ووهي او په پايله کې پر هغه (ښار) عذاب حتمي کېږي نو هغه له يوه مخه زير او زبروو[4].

---

۱. له اروپايي اتحاديې څخه د برېتانيې وتل چې ډېر مهال په برگزيت (Brexit) سره رالندېږي، يوه سياسي موخه ده چې په برېتانيه کې د سياسي حزبونو، مدافعينو او خلکو له خوا له ۱۹۷۳ کال د اروپا له اتحاديې سره د يو ځای کېدو له مهال پيل وه. د اروپا د اتحاديې د تړون له مخې د اروپا له اتحاديې وتل د هغې د غړو هېوادونو له حقونو څخه دي. په هغې ټولپوښتنه کې چې د ۲۰۱٦م کال د جون په ۲۳ مه نېټه په برېتانيه کې ترسره شوه، تر ۱۷ ميليونو زياتو وگړو په اروپايي اتحاديه کې د نشتون له پاره رايه ورکړه (پر وړاندې يې په اروپايي اتحاديه کې د پاتې کېدو له پاره تر ۱٦ ميليونو ډېرو وگړو رايه ورکړې وه) او د برگزيټ گوند بريا ته ورسېد. ځينې کارپوهان له اروپايي اتحاديې څخه د برېتانيې د وتلو په څېر پېښې په دغه هېواد کې د نيوناسيونالېزم (Neo-Nationalism) د پراختيا له امله گڼي او دا د دې اتحاديې د تيتېدو پيل گڼي.

۲. عوام پالنه يا (Populism) يوه سياسي طريقه او اموزه ده چې د پوهانو د ډلې پر وړاندې د عامه خلکو له حقونو او علايقو د پلويتوب له پاره فعاليت کوي. په شلمه پېړۍ کې د عامه پالنې ډېری حرکتونه د لاتينې امريکا او هند په حرکتونو سره پېژندل کېدل خو له ۱۹۸۰م را وروسته دا حرکتونه په کاناډا، ايټاليا، هالنډ، سکانډويانا او متحده ايالاتو هېوادونو کې هم د بريا يو څه درجې ترلاسه کړې.

۳. النمل سوره؛ ايه ٦٩، قُلْ سِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَانظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُجْرِمِينَ ﴿٦٩﴾

٤. الاسراء سوره، ايه ١٦، وَإِذَا أَرَدْنَا أَن نُّهْلِكَ قَرْيَةً أَمَرْنَا مُتْرَفِيهَا فَفَسَقُوا فِيهَا فَحَقَّ عَلَيْهَا الْقَوْلُ فَدَمَّرْنَاهَا تَدْمِيرًا ﴿١٦﴾

اوس مهال غربیان له فساد او فحشا سره سره د هلاک شوو قومونو ټول صفات چې قران ترې یادونه کړې ده په ځان کې لري چې شرک، زنا، لواطت، بې عدالتي، فساد، ماده پالنه او نور عمده یې پکې شامل دي، نو باید د پخوانیو قومونو په څېر الهي عذاب ته هم په تمه وي.

همدارنګه غربیانو د سود په نړیوالولو سره له الله ﷻ او د هغه له رسول ﷺ پر وړاندې جګړه اعلان کړه چې دا به هغوی هلاک کړي، په دې اړه الله ﷻ فرمايي: *نو که مو (ربا) پرېنه نښوده نو خبر اوسئ چې له الله ﷻ او د هغه له پیغمبر ﷺ سره جنګ کولو ته پاڅېدلي یئ.*[1] غربي نړۍ د سقوط په حال کې ده او زموږ زمانه یو وار بیا له یوې امپراتورۍ څخه بلې ته د واک د انتقال او یا پر څو نورو د وېشل کېدو شاهده ده. تجربوي تاریخ ښیي چې د تاریخ په اوږدو کې د واک هېڅ لېږد د ټکر له پېښېدو پرته نه دی پیل شوی څرنګه چې اوګانسکي لیکي: *د واک دا انتقال به هم د نړۍ د سختو جګړو لامل وګرځي*[2]. صهیونېستان فکر کوي چې د اتومي نړیوالې جګړې په پیلېدو او د نړیوالو قدرتونو او د نړۍ د ډېر نفوس په راکمېدو سره به د هغوی زرین وخت را ورسېږي، خو لکه څنګه چې الله ﷻ فرمايي: *او (یهود او د مسیح دښمنانو، د هغه او د لارې او طریقې لمنځه وړلو لپاره یې) نقشه جوړه کړه، او خدای ﷻ (د هغه او د لارې او طریقې د ساتنې لپاره یې) نقشه جوړه کړه، او الله ﷻ تر ټولو ښه نقشه جوړوونکی دی.*[3] دا وار به بیا تاریخ تکرار شي او الله ﷻ د مسیحي – یهودي (صهیونېستانو) د اتحاد له پاره نقشه لري څو هغوی بریا ته په نږدې کېدو سره ناکام، تورمخي او تعذیب کړي، نو مسلمانان باید یقین ولري چې تر اتومي جګړې وروسته نړۍ، د اسلام زرین عصر له ځانه سره راوړي.

## تر اتومي جګړې وروسته نړۍ

الله ﷻ په قران عظیم الشان کې فرمايي: او په اسماني کتاب (تورات) کې مو بني اسراییل په دې خبر کړل چې قطعن تاسې به په ځمکه کې دوه ځله فساد وکړئ او قطعن یوې ډېرې لویې سرغړونې ته به پاڅېږئ. نو هغه وخت چې دوو لومړیو د

۱. البقره سوره، ۲۷۹ ایت؛ فَإِن لَّمْ تَفْعَلُواْ فَأْذَنُواْ بِحَرْبٍ مِّنَ اللّهِ وَرَسُولِهِ ﴿۲۷۹﴾

2. International Relations; 26 (4); p 371 (Power Shifts, Economic Change and the Decline of the West?; Michael Cox

۳. ال عمران سوره؛ ۵۴ ایه؛ وَمَكَرُواْ وَمَكَرَ اللّهُ وَاللّهُ خَيْرُ الْمَاكِرِينَ ﴿۵٤﴾

(تحقق) وعده راورسېږي، خپل هغه بندګان چې ډېر قوي دي پر تاسو يې ګمارو تر څو ستاسو په کورونو کې (ستاسو قتل او غلا کولو ته) په لټه کې شي او دا ګواښ حقيقت کېدونکی دی. که نيکي وکړئ ځان ته مو نيکي کړې او که بدي ومړئ نو ځان ته (مو بدي کړې) او کله چې وروستی ګواښ راورسېږي (راشي) څو تاسو غمجن کړي او په معبد کې (مو) ځرنګه چې لومړی ځل دننه شول (په زور) دننه شي او هر څه ته يې چې لاس ورسېږي (هغه) له مخې له منځه يوسي.[1]

د لومړي ځل له پاره له ميلاد څخه ۵۸۷ کاله مخکې، د نبوکد نصر پر مشرۍ پوځ له بابل څخه بيت المقدس فتح کړ، ښار يې وسوځاوه، اوسېدونکي يې قتل عام کړل، د سليمان عليه السلام په واسطه جوړ شوی مسجد يې وران کړ او پاتې يهوديان يې غلامان کړل. تر هغې وروسته، کله چې هغوی يو وار بيا په بيت المقدس کې ژوند اختيار کړ نو په فساد يې پيل وکړ، حضرت ذکريا يې په مسجد کې وواژه او په خپل زعم يې حضرت عيسی عليه السلام هم په صليب کړ، دا ځل هم د الله سبحانه وتعالی له وعدې سره سم د دويم ځل له پاره د رومي جنرال تيتوس (TITUS) تر مشرۍ لاندې پوځ بيت المقدس ته ننوت، اوسېدونکي يې په عام ډول ووژل او دويم مسجد يې وران کړ.

بيا الله سبحانه وتعالی بني اسراييلو ته خبرداری ورکوي او فرمايي: کېدای شي چې پروردګار مو پر تاسو رحم وکړي خو که بيا (ګناه ته) وګرځئ (موږ به مو هم ستاسو د سزا لپاره) درګرځو.[2] لکه څنګه چې په لومړي او دويم ځل د الله سبحانه وتعالی وعده ترسره شوه، دا ځل هم د فساد او د اسراييلو د غوروالي غوښتنو له امله په ځمکه او مقدسه ځمکه کې، د الله جل جلاله وعده به رښتيا شي او دا وار به مسلمانان د حق په بيرغونو پر اسراييلو بريالي شي، څرنګه چې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم فرمايي: تر هغې وروسته به د مشرق له لوري تور بيرغونه راپورته شي او تاسې به داسې وژني چې هېڅ قوم تر اوسه نه وي وژلي، بيا يې څه ياد کړل چې زما په حافظه کې نه دي پاتې... کله مو چې هغوی

---

۱. الاسراء سوره؛ له ۴ څخه تر ۷ ايتونه؛ وَقَضَيْنَا إِلَى بَنِي إِسْرَائِيلَ فِي الْكِتَابِ لَتُفْسِدُنَّ فِي الأَرْضِ مَرَّتَيْنِ وَلَتَعْلُنَّ عُلُوًّا كَبِيرًا ﴿٤﴾ فَإِذَا جَاء وَعْدُ أُولاهُمَا بَعَثْنَا عَلَيْكُمْ عِبَادًا لَّنَا أُوْلِي بَأْسٍ شَدِيدٍ فَجَاسُواْ خِلاَلَ الدِّيَارِ وَكَانَ وَعْدًا مَّفْعُولاً ﴿٥﴾ ثُمَّ رَدَدْنَا لَكُمُ الْكَرَّةَ عَلَيْهِمْ وَأَمْدَدْنَاكُم بِأَمْوَالٍ وَبَنِينَ وَجَعَلْنَاكُمْ أَكْثَرَ نَفِيرًا ﴿٦﴾ إِنْ أَحْسَنتُمْ أَحْسَنتُمْ لِأَنفُسِكُمْ وَإِنْ أَسَأْتُمْ فَلَهَا فَإِذَا جَاء وَعْدُ الآخِرَةِ لِيَسُوؤُواْ وُجُوهَكُمْ وَلِيَدْخُلُواْ الْمَسْجِدَ كَمَا دَخَلُوهُ أَوَّلَ مَرَّةٍ وَلِيُتَبِّرُواْ مَا عَلَوْاْ تَتْبِيرًا ﴿٧﴾

۲. الاسراء سوره؛ ۸مه ايه؛ عَسَى رَبُّكُمْ أَن يَرْحَمَكُمْ وَإِنْ عُدتُّمْ عُدْنَا وَجَعَلْنَا جَهَنَّمَ لِلْكَافِرِينَ حَصِيرًا ﴿٨﴾

ولیدل ورسره بیعت وکړئ، که څه هم پر واورې په سینه تګ هم وي، په تحقیق سره دالله خلیفه مهدي (په دې لښکر) کې شته.[1].

همدارنګه انحضرت ﷺ په یو بل حدیث کې فرمایي: *هرکله مو چې د خراسان له لوري تور بیرغونه ولیدل، ورسره یو ځای شئ که د واورې پر مخ په سینه تګ هم وي، په تحقیق سره په دوی کې د الله ﷻ خلیفه (مهدي) شته*[2].

په یو بل روایت کې راغلي چې له دې لښکر سره به د بیت المقدس تر فتحې پورې څوک مقاومت ونشي کړای او د بني اسراییلو د تعذیب په اړه د الله ﷻ وعده د دریېیم ځل لپاره د امام مهدي په مشرۍ حقیقت مومي.

د هغه تلپاتې نړیوال حکومت خوب چې صهیونېستانو د یهودو د زرین عصر په توګه او د ستر اسراییل د پروژې د تطبیق خوب ویني د حضرت امام مهدي او حضرت عیسی علیه السلام له لوري به د یهودو له پاره یو بد خوب او د بشریت او اسلام له پاره به په زرین عصر بدل شي، څرنګه چې حضرت محمد ﷺ فرمایي: *که د دنیا له عمره یوه ورځ هم پاتې وي خدای ﷻ به هغه ورځ لویه کړي څو چې یو سړی (یا یې وفرمایل: زما له اهل بیتو څخه) راپورته کړي، د هغه نوم بهزما په څېر او د هغه د پلار نوم به زما د پلار په څېر وي، هغه به نړۍ له عدالته ډکه کړي لکه څنګه چې له ظلم او ستم څخه ډکه شوې وي*[3]. په یو بل حدیث کې انحضرت ﷺ وفرمایل: *زما د امت په اخر کې به مهدي رانښکاره شي، خدای ﷻ به د هغه په وخت کې باران وکړي، ځمکه به بوټي شنه کړي، هغه به د خلکو ترمنځ مال په مساوي توګه وویشي، څاروي به ډېر شي، امت به مهم ګڼل کېږي، هغه به اووه یا اته کاله ژوند کوي*[4]. د حضرت امام مهدي پر مهال دجال په

---

۱. ابن کثیر وایي د دې حدیث اسناد قوي او صحیح دي، او بوصیری په المصباح؛ ۴ ټوک؛ ۲۰۴ مخ کې وایي: د دې حدیث په اسنادو کې ثقه سړي دي او صحیح حدیث دی، حاکم په المستدرک، ۴ ټوک، ۴۶۳-۴۶۴ مخونو کې ذکر کړي دي او ویلي یې دي چې دا حدیث د شیخینو (بخاري او مسلم) په شرط صحیح دی او همدارنګه ذهبي هم تایید کړی دی.

۲. حاکم په المستدرک علی الصحیحین ۴ ټوک، ۵۴۷ مخ کې ویلي دي چې دا حدیث د شیخینو (بخاري او مسلم) په شرط صحیح دی.

۳. سنن ابو داود؛ حدیث ۴۲۸۲، طبرانیګ معجم الکبیر؛ ټوک ۱۰، مخ ۱۳۵، حدیث ۱۰۲۲۴ او صحیح ابن حبان؛ حدیث ٦٨٢۴ همدارنګه شیخ الباني هم دا حدیث په صحیح ابو داود حدیث ٣٦٠١ کې صحیح ګڼلی دی.

٤. حاکم په المستدرک، ۴ ټوک، ۵۴۴مخ کې ویلي دي: د دې حدیث اسناد صحیح دي، ذهبی هم د حاکم وینا تایید کړې ده او شیخ الباني په سلسله الاحادیث الصحیحه کې په ۷۱۱ حدیث کې ویلي دي: د دې حدیث اسناد صحیح دي او سړي یې هم ثقه دي.

فزيکي توګه زمونږ مادي نړۍ ته راځي او له حضرت امـام مهـدي سـره بـه پـه جګـړه لاس پورې کړي چې د حق او باطل تر منځ وروستۍ جګړه ګڼل کېږي.

د رويتونو له مخې به په کعبه کې د ابراهيم د مقام او حجرالاسود ترمنځ خلـک امـام مهدي د بيعت منلو ته مجبور کړي او د خليفه په توګه به يې وګماري او په همدې وخت کې به هغه وايي: زه مهدي يم. حضرت محمد ﷺ فرمايي: *هغه امت چې پـه پيـل کـې يې زه، په پای کې يې حضرت عيسی او په منځ کې يې مهدي وي، هېڅکلـه بـه هـلاک نشـي*[1]. دجال په دمشق کې حضرت امام مهدي او د هغه ملګري محاصـره کـوي او کلـه چې دجال او د هغه پيروان فکر کوي چې حضرت امام مهدي يې محاصـره کـړی دی او په جګړه کې بريالي شول سم لکه د فرعون په څېر چـې فکـر يـې کـاوه موسـی عليه‌السلام يـې محاصره کړی دی او په هغه به بريالی کېږي، اللـه سبحانه وتعالی لکـه څنګـه چـې پـه خپـل الهـي قدرت سره حضرت موسی عليه‌السلام ته د اوبو په څيرلـو سـره نجـات ورکـړ، حضـرت عيسـی د امام المهدی مرستې ته رالېږي او حضرت عيسـی عليه‌السلام دجـال وژنـي چـې پـه ادحـاديثو کې داسې راغلي دي: *دجال هغه مهال راوځـي چې د خلکو په زړونو کې کينـه او بغـض حاکم وي. دين بې ارزښته شوی وي او د خلکو ترمنځ اړيکې خرابې شوې وي؛ نو که پـه هره لاره راننوځـي، ځمکه ورته د پسه د پوستکي په څېر راټولېږي، تر دې چې مدينـې ته نږدې کېږي، له مدينې په بهر خلکو مسلط کېږي خـو مـدينې تـه لـه د ننـه کېـدو منـع کېږي او بيا د ايلياء غره ته ځي او د مسلمانانو يوه ډله محاصره کوي، د مسلمانانو مشـر هغوی ته په خطاب کې وايي: د دغې محاصرې پر وړاندې د څه شـي انتظـار کـوئ؟ لـه هغه سره وجنګېږئ تر دې چې شهيدان شئ او خدای جل جلاله ته ورسېږئ يا دا چې د هغـه پر وړاندې بريالي شئ، نو د امر له مخـې د سهار پر مهال لـه هغـه سـره جګـړه کـوي، د سهار پر مهال حضرت عيسی عليه‌السلام ورته را رسـېږي، دجـال وژنـي او د هغـه ملګـري ماتـه خوري تر دې چې ونې، ډبرې او دېوالونه مسلمانانو ته غږ کوي او وايـي: اې مؤمنـه! زمـا تر شاه يهودي پټ شوی دی، هغه ووژنه*[2]. د رسول الله ﷺ په يو بل حديث کې راغلـي دي: ابو امامه باهلي رضي الله عنه وويل: پيغمبر عليه‌السلام موږ ته خطبه وويله او په دې خطبه کـې د تېر نه په زياته کچه يې د دجال په اړه خبـرې وکـړې او مـوږ يـې د هغـه لـه شـر څخـه وګواښولو. ام الشريک بنت البی العکر وپوښتل: ای د الله پيغمبره هغه مهـال بـه عربـان

---

۱. المنار المنيف؛ ۱۵۲ مخ. که څه هم د دې حديث په اړه د ځينو په سند کې کمزورتيا او غرابت د ليدو وړ دی خو ځيني نور بيا ځيني برخې پياوړې کوي (اتحاف الجماعه، ۲ ټوک، له ۳۰۳ نه تر ۳۰٦ مخونو)

۲. حاکم به المستدرک، ۴ ټوک، ۵۵۳ مخ کې دا حديث روايت کړی دی او ويلي يې دي: دا حديث د شيخينو د شرطونو له مخې صحيح دی او هغو دواړه دا حديث نه دی روايت کړی او ذهبي له حاکم سره ورته دی.

چېرته وي؟ پیغمبر ﷺ وفرمایل: هغوی بـه هغـه مهـال لـږ وي، ډېـری بـه یـې پـه بیت المقدس کې استوګن وي او امام به یې صالح او وړ سړی وي، یوه ورځ به یې امام مخ ته کېږي څو د سهار لمونځ ادا کړي چې ناڅاپه عیسی ؈ د مریم زوی راځي، هغـه امـام به خپله شاته راځي څو حضرت عیسی ؈ یې امـام شـي، حضـرت عیسـی ؈ خپـل لاسونه د هغه د دوو اوږو ترمنځ ږدي او وایي: مخکې لاړ شه او لمونځ وکـړه ځکـه چـې د دې لمانځه اقامه تاته نیـول شـوې ده، نـو امـام یـې لمـونځ اداء کـوي کلـه چـې لمـونځ خلاص کړي حضرت عیسی ؈ فرمایي: دروازه خلاصه کړئ، دروازه خلاصـوي، ناڅاپـه دجال له اویا زره یهودو سره د دروازې تر شا ولاړ وي او هر یو توره او سپر پـه لاس لـري ، کله چې دجال ورته ګوري لکه څنګه چې مالګه په اوبو کې ویلې کېږي همدغسې هغـه هم ویلي کېږي او تېښته کوي او حضرت عیسی ؈ فرمایي: تـا داسـې پـه ضـربه وهـم چې نه شې کولای له ما نه مخکې شې، نو شـرقي غـاړې تـه هغـه تـه وررسـېږي او هغـه وژني، په پایله کې یهودیان ماته خوري او په ځمکه کې داسې څه نـه پـاتې کېـږي چـې یهودیان یې تر شا پټ شوي وي، خو دا چې خـدای ﷻ یـې پـه خبـرو راولـي او چیغـې وهي چې ای د خدای مسلمان بنده دا یهودی دی چې زما تر شا یې ځان پټ کړی دی نو راشه او هغه ووژنه... پیغمبر ﷺ وفرمایـل: *عیسـی ؈ د مـریم زوی بـه زمـا د امـت ترمنځ به عدالت کوونکی حاکم او رهبر وي، صلیب ماتوي خنځیـران لـه منځـه وړي، پـر ځمکه د جزیې قانون له منځه وړي خو صدقه له منځه نه وړي. بغض او کینـه لـه منځـه وړي، له هر نېش لرونکـي څخه نېش اخیستل کېږي تـر دې چـې ماشـوم هـم د مـار پـه خوله کـې لاس ننه باسي، زیان ورته نه رسوي، ماشـوم زمـري پیسـې ځـي خـو ورتـه هـېڅ زیان نه رسېږي، ځمکه له سولې او ارامۍ ډکېږي لکه څنګه چـې لـه اوبـو څخـه لوښـي ډکېږي.*

*جګړه خپل درانه باورونه په ځمکه ږدي...، وانبه هم د ادم د وخت په څېر زرغونېږي تر دې چې د خلکو یوه ډله به د انګورو په یوې خوشې راټولېږي او ټول پرې مړېږي*[1]. په نورو رویتونو کې راغلي دي چې حضرت امام مهدي د سهار د لمانځه لـه پـاره د سـوریې په اوسني مرکز دمشق کې په هغه مسجد کـې چـې سـپینې منـارې لـري د دجـال او د هغه د پیروانو په واسطه محاصره کېږي او حضرت عیسی ؈ هم په همدې مسجد کې راکوزېږي چې دجال په اوسنیو اسراییلو کې د لُد تر سـیمې ښـاري او بیـا یـې هماغلتـه

---

۱. ابن ماجه؛ حدیث ۴۰۷۷؛ ځینې علماء دا حدیث کمزوری ګڼي خو د هغې خاوندان ټول د باور وړ ګڼي پرته له عمرو بن حضر څخه چې ابن حبان هغه ثقه نه بولي، خو دا حدیث نور شواهد لري چې هغه تقویه کوي.

وژني، د دجال تر وژنې وروسته د الله ﷻ له لوري حضرت عيسی ﷷ ته ويل کېږي چې داسې بندګان يې پيدا کړي دي چې پرته له خپله يې  څوک ورسره د جنګېدو توان نه لري، څرنګه چې په حديث شريف کې راغلي دي: *تر اوسه په هماغه حال دی چې د خدای جل جلاله له خوا فرمان ورته را رسېږي چې ما داسې بندګان پيدا کړي دي چې څوک ورسره د جنګېدو توان نه لري، نو بندګان مې غره ته يوسه بيا الله ﷻ ياجوج او ماجوج رالېږي او هغوی له هرې لورې په عجلې سره تيتېږي. لومړنۍ قافله يې له طبريه سيند څخه تېرېږي، او ټولې اوبه څښي او هغه داسې پرېږدي چې کله دويمه قافله راشي د سيند ځای وچ ويني او وايي: يو وخت دلته اوبه وې. حضرت عيسی ﷷ له ملګرو سره د طور غره لوري ته پناه وړي. او د غوا سر ورته په هغه ورځ تاسو ته د دې وخت له سلو دينارو څخه به غوره وي. حضرت عيسی ﷷ له خپلو ملګرو سره د دې مصيبت د لرې کېدو له پاره د خدای ﷻ درګاه ته دعا کوي او پر ياجوج او ماجوجو د وبا په توګه ناروغي نازلوي. په لږه موده کې ټول ياجوج او ماجوج مري، بيا حضرت عيسی ﷷ له خپلو ملګرو سره له طور غره څخه رابنکته کېږي اوويني چې د ځمکې مخ د يو وجب په اندازه خالي نه دی او د جسدونو سخت بوی خپور شوی دی.*

*حضرت عيسی ﷷ او د هغه ملګري دعا کوي او الله تعالی د اوښمرغه په څېر څټونو سره مرغان رالېږي، هغوی دا جسدونه پورته کوي او هغه ځای ته چې خدای يې غواړي وړي.*[1]

د جليل يا طبريه سيند (د تيبرياس بحيره يا Sea of Galilee) په فلسطين کې د خوږو اوبو تر ټولو ستر سيند دی چې شاوخوا ۲۱ کيلومتره اوږدوالی او ۱۳ کيلومتره سور لري او د هغې تقريبي مساحت ۱٦٦ کيلومتر مربع ته رسېږي چې تر ټولو زيات ژوروالی يې ۴۳ متره او ۴۱۲ متره د ازاد سيند تر سطحې لاندې دی.

ياده بحيره تر يوه حده د تر ځمکو لاندې چينو په واسطه تغذيه کېږي او  د تغذيې اصلي سرچينه يې د اردن سيند دی چې د هغه په اوږدو کې له شمال څخه جنوب لور ته روان دی. جليل سيند د اوسنيو اسراييلو د څښاک د اوبو تر ټولو مهمه سرچينه ده چې په وروستۍ زمانه کې يې وچېدل په درې واړو ابراهيمي دينونو کې ارزښت لري.

يهوديان په دې باور دي چې د دې سيند په وچېدو سره د يهوديت مسيحا چې د دوی د ويناوو له مخې د داود ﷷ اولاده ده، راځي او له بيت المقدس څخه پر نړۍ

---

۱. صحيح مسلم؛ حديث ۲۹۳۷

*حکومت کوي او عیسویان په دې باور دي چې د دې سیند له وچېدو سره سم عیسی* ﷺ *د دویم ځل له پاره راځي*[1].

هغه مهم ټکي چې حدیثونه ورته اشاره کوي د یاجوجو او ماجوجو په واسطه د ابو د زیاتې ګټې اخیستنې له امله د جلیل د سیند وچېده دي او همدارنګه د دې بحیرې د وچېدو پایله به د حضرت عیسی ﷺ راتګ وي.

اسراییل د خپل هېواد د شینوالي او د اوبو څښلو له پاره له دې بحیرې ګټه اخلي او اسراییلو ګټه اخیستل تر دې زیاته ده چې طبیعت دې وکولای شي هغه بېرته پوره کړې او له وچېدو یې مخنیوی وشي، نو له دې امله د دې بحیرې اوبه د ښکته کېدو په حال کې دي او پوهانو خبرداری ورکړی چې اسراییل به د دې بحیرې له وچېدو سره سم ډېر ژر د اوبو له کړکېچ سره مخ شي. په دې اړه امریکایي چاپېریال پېژندونکی لستر براون لیکي: *هغه جهیلونه چې د ورکېدو په حال کې د نړۍ تر ټولو غوره جهیلونه دي چې په مرکزي افریقا کې چاد جهیل، په مرکزي اسیا کې ارال بحیره او د جلیل (همدارنګه د تیریاس په نوم مشهور دی) په کې شامل دي*[2]. همدارنګه د اسراییلو خبري شبکه (Breaking Israel news) د ۲۰۱٦ زېږدیز کال د سپټمبر په ۷مه نېټه د دې بحیرې په منځ کې د کوچنیو جزیرو د پیداکېدو خبر ورکړ او اسراییلیانو ته د مسیحا د راتګ زېری ورکوي.

*د دې خبر له مخې د دې بحیرې اوبه ۴۰ انچه ټیټې شوې دي چې له سرې کرښې څخه ۱۵ انچه ټیټې دي او په داسې حال کې چې د چاپېریالي کړکېچ لامل به ګرځي، د مسیحا راتګ به له ځانه سره ولري*[3].

د اسلام ځینې عالمان په دې باور دي چې د اسراییلو او اروپایي یهودیانو په واسطه چې د خزر له قوم څخه د دې اوبو استفاده همغه د یاجوجو او ماجوجو په واسطه د دې بحیرې د اوبو څښل دي.

خو د اسلام ځیني علماء په دې نظر دي چې خزران یاجوج او ماجوج نه دي بلکې یاجوج او ماجوج د حضرت عیسی ﷺ تر راښکته کېدو وروسته له بنده خلاصېږي او په افسانوي توګه د یوې بحیرې اوبه د څښلو په واسطه وچوي (والله اعلم).

---

1. Breaking Israel News; Island Appearing in Sea of Galilee Could Presage Messiah Son of David; Dated: Sep 7 2016

2. Lester R. Brown; Plan B 4.0: Mobilizing to Save Civilization; p 77

3. Breaking Israel News; Island Appearing in Sea of Galilee Could Presage Messiah Son of David; Dated: Sep 7 2016

په هر صورت مسلمانان باید درک کړي چې د دجال د فتنو په وخت کې ژوند کوي او د دې فتنو د چل ښکار نه شي ځکه دا فتنې ورځ تر بلې د زیاتېدو په حال کې دي او په داسې حال کې چې راتلونکې پېښې او په ځانګړې توګه اتومي جګړه به د دښمنانو د ختمېدو پیل وي (ان شاء الله) له سختۍ ډکې، ستونزمنې او له فتنو څخه ډکې ورځې به د مسلمانانو د زرینې دورې تر راتګه له ځان سره ولري همدارنګه مسلمان باید یقین ولري چې د دې جګړو پای چې صهیونېستانو او د اسلام دښمنانو په ټولو اسلامي هېوادونو کې پیل کړې دي د مسلمانانو په ګټه او د دوی د خپلو ځانونو په بربادۍ به پای ته ورسېږي ځکه الله ﷻ فرمايي: الله ﷻ ستاسې هغو کسانو ته چې ایمان یې راوړی او ښه عملونه یې کړي دي، وعده ورکړې ده چې هغوی په ځمکه کې (د نورو) ځای ناستي کړي، څرنګه چې له هغوی څخه تېر شوو خلکو هغوی یې د (نورو) ځای ناستي کړل او قطعن دین یې چې د هغوی لپاره یې غوره کړی ورته یې ثبات ښنې او ډار یې په امن بدلوي (نو له دې کبله) یوازې زما عبادت وکړئ او له ما سره شریک مه نیسئ او څوک چې له دې څخه وروسته کافر کېږي نو همغوی فاسقان دي.[1]

## الله ﷻ ښه پوهېږي!

---

۱. النور سوره؛ ۵۵ ایت؛ وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا مِنكُمْ وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَيَسْتَخْلِفَنَّهُم فِي الْأَرْضِ كَمَا اسْتَخْلَفَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ وَلَيُمَكِّنَنَّ لَهُمْ دِينَهُمُ الَّذِي ارْتَضَى لَهُمْ وَلَيُبَدِّلَنَّهُم مِّن بَعْدِ خَوْفِهِمْ أَمْنًا يَعْبُدُونَنِي لَا يُشْرِكُونَ بِي شَيْئًا وَمَن كَفَرَ بَعْدَ ذَٰلِكَ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ ﴿۵۵﴾